# تفسیر ایوبی حنفی

تالیف

علامۃ العصر وحید الدہر ابو الفضل مولانا محمد عبد اللہ الشہید الایوبی

القندھاری السلیمانخیلی الحنفی النقشبندی عفی عنہ

الناشر

مکتبۃ القراءۃ والتجوید

کانسی روڈ شالدرہ کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحيم

په پښتو ژبه کښي اولنی او په افغاني تاریخ کښي بې ساری
په زر گونو جدیدو مسئلو باندي مشتمل

# تفسیر ایوبي حنفي

## قَالَ الْمَلَأُ ... وَاعْلَمُوْٓا

اتم ټوک ٨

تالیف او تصنیف

د علامة العصر ابو الفضل شیخ التفسیر والحدیث فقیه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبد الله الایوبي

الکندهاري السلیمانخېلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالی

مکتبة التراث والتجرید

کانسي روډ شالدره کوټه

# د کتاب پېژندنه


د کتاب نوم ............... تفسیر ایوبي پښتو اتم ټوک

مؤلف ............... الحاج مولنا محمد عبید الله الایوبي الکندهاري السلیمانخیلي الحنفي حفظه الله تعالی بفضله الوهبي

کمپوزر ............... حبیب الحق حقاني (مینګل)

ټایپ ............... حقاني کمپیوټر اداره

نشر کوونکې اداره ............... مکتبة القراء ت والتجوید کانسي روډ کوټه

د چاپ ځای ............... لاهور پاکستان


# یو نظر دې خوا

**هیڅ یو مسلمان هم په قرآن مجید، احادیثو یا د فقهي په کتابو کې په قصده سره غلطي نه کوي، زموږ اداره تر خپله وسه پورې د کتابو تر لیکلو وروسته تصحیح نه زیاته پاملرنه کوي، چې ددې په وجه زموږ کتابونه معیاري دي، خو بیا هم بنده بنده دی، یو نه یو ځای څه ناڅه غلطي په املاء کې یا په یوه جمله کې څنې صادره سي، نو زموږ د ټولو ناظرینو څخه دا خواست دی چې که ستاسي تر نظر داسې غلطي تېره سي لطفاً زموږ سره تماس ونیسئ، تر څو د کتاب د دوهم وار په چاپ کې د هغې تېروتنې اصلاح وسي**

**په درناوي ستاسي ورور شمس الحق شمس**

بسم الله الرحمن الرحيم




الطبعة الاولى

١٤٢٩ هجري - ٢٠٠٨ ميلادي

مكتبة القراءة و التجويد
شارع كانسي كوئته - باكستان
رقم الهاتف ٠٣٠٢-٢٨٨٥٥٢٥

MAKTABTUL-QIRRAT
WALTAJWEED
KANSI ROAD QUETTA
BALOCHISTAN

ISBN 2-7451-3140-0





الحمد لله الذي انزل القرآن، ليكون هداية للانس والجان. والصلوة والسلام على رسوله محمد النبي الامي الذي هدانا سبل الرشد والايمان.

وبعد: دا يو خلاند حقيقت دی چي د ټولو علومو سرچينه قرآن مجيد دی، او ټوله مروجه علوم طالبان د قرآن مجيد په اسرارو او حكمتونو باندي د پوهېدلو لپاره وايي. لكه چي شاعر وايي:

جميع العلم في القرآن لكن
تقاصر عنه افهام الرجال

الله تعالى لره دي حمد وي چي دا دی ستاسو د مستجابو دعاگانو په وجه د قرآن مجيد نهمه سپاره "قال الملأ" او لسمه سپاره "واعلموا" له چاپه څخه راووتل.

او حضرت ايوبي مدظله العالي هم الحمد لله د تفسير وكار ته خپل ټوله وختونه وقف كړي دي، او نور ټوله مصروفيتونه او مشاغل يې ورته پريښي دي، خو څرنگه چي حضرت ايوبي په هفته كښي څومره ليكي، سمدستي يې مونږ هم ورسره ليكو او

چاپ ته یې چمتو کوو

## دا تفسیر ایوبي ولې ځنډېږي؟

او دا حقیقت هم ستاسي په وړاندي ایږدو، چي حضرت ایوبي چي څرنګه څه لیکلي سمدستي یې موږ په کمپیوټر باندي لیکو داسي نه ده چي حضرت ایوبي مدظله العالي ټوله تفسیر لیکلی دی او موږ یې په کرار کرار چاپوو، بلکې څرنګه چي دده لخوا تفسیر پوره کېږي فوراً یې وچاپ ته اماده کوو، خو ددې ټولو کارونو تر شا ستاسي دعاګاني هم دي، که چېري حضرت ایوبي د نوې کالو په عمر کښېي لیکل کوي او بالکل د صحت او جوړتیا په حالت کښېي دی، او همدارنګه موږ ته الله تعالی د لیکلو او چاپولو توفیق راکوي. نو دا ستاسي همکاري ده چي له دعاګانو څخه مو نه هېروئ.

## د تېري ورځي خاطره

تېره ورځ چي و ملاقات ته ورغلم، نو یې راته وویل چي دعاګاني کوه چي د ژوند دا یو ارمان مي خدای ﷻ پوره کړي، ولي چي زما هم داغه یو ارمان دی نور ارمانونه مي خدای ﷻ پوره کړي دي.

نو مي په ځواب کي ورته وویل چي دا هم د خدای تعالی توفیق او د عامو مسلمانانو دعاګاني دي، ولي چي ستا د عمر خلګ چي ستا همزولي دي هغه ټوله یا خو د ضعف په حالت کي دي، او یا یې حواس باطنه ؤ او یا یې حواس ظاهره ؤ کار پرې ایښی دی او یا یې ورته ځواب ویلی دی.

خو تاسي چي الحمدلله ټوله حواس ظاهري او باطني مو هم کار کوي او هم یې تر اوسه پوري په ضعف نه پوهېږئ، نو دا یو روښانه دلیل دی چي خدای تعالی د خپلو بندګانو د لارښوونې او رهنمایي کار در څخه اخلي.

نو حضرت ایوبي مدظله العالي او همدارنګه د مکتبة القرائت والتجوید کارکوونکي هم خپل له دعاګانو څخه مه هېروئ.

والسلام

ستاسي ورور قاري فضل الحق حقاني

د مکتبة القرآئت والتجوید ناظم

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله الذي وفقني لتفسير الاجزا الثمانية للقرآن المجيد والفرقان الحميد والصلوة والسلام على سيد المرسلين محمد وعلى آله وصحبه اجمعين وقد حان وقت تفيسر الجزء التاسع وارجو من فضله العميم ان يوفقني لتفسير هذا الجزء بالخير والصحة والسلامة بحرمة القرآن العظيم وبحرمة سيد المرسلين عليه من الصلوات اكملها ومن التسليمات اشرفها وعلى آله وصحبه اجمعين، اللهم بفضلك وكرمك وفقني لتفسير جميع القرآن بالصحة والسلامة واجعله خيراً باقياً الى يوم القيامة انه تعالى على كل شئ قدير وبالاجابة جدير. وشرعت في تفسير هذا الجزُ بعد صلوٰة الفجر من يوم الجمعة (۱۵) شهر جمادي الثاني من شهور سنه ۱۴۲۸ هجري قمري وبلغ عمري اذ ذاک الى (۹۰) او اقل منه او اكثر.

بیت

ودر یاب ته دا خلېږم د قرآن    په توفيق العزيز الرحمن
که جهول یم که ظلوم یم په عصیان    په امید سره د فضل د رحمن
زما د عمر سرمایه به دا تفسیر وي    که پوره کړي العزيز الرحمن

روز محشر هرکس حاضر میشود تصویر جانان دربغل
ما نیز حاضر میشوم تفسیر قرآن در بغل

که عاصي یم که فاسق یم که فاجر    وخدمت ته د تفسير يمه حاضر

وقد ورد في الحديث الصحيح النبوي ان الله قد يؤيد هذا الدين بالرجل الفاجر. واظن ان اكون انا ذالک الرجل الفاجر ومع ذالک باب الرحمة العامة من الله ﷻ مفتوحة وباب التوبة للعصات مكشوفة ورجا الشفاعة من سيد المرسلين يوم القيامة معلومة. ومع كل تلک الامور ورد في الحديث الصحيح النبوي ان الله ليستحى من ذى الشيبة المؤمن ان يعذبه او كما قال وانا مومن حقا وغاية ذى الشيبة ايضاً.

الٰهی یا الٰهی یا الٰهی — ندارم جز امیدت تکیه گاهی
زکن موجود کردی جمله عالم — کرم کن برمن گم کرده راهی
ندارم طاعت مقبول درگاه — بجز اشک نداامت آه آهی
بحق وحرمت فرقان اعظم — مرا از ذنب خود کن عذر خواهی
ندارم توشها راه قیامت — بجز شرمندگی وروه سیاهی

مناجات بدرگاه قاضی الحاجات

آلهي عبدک العاصي اتاکا — مقراً بالذنوب وقد دعاکا
فان ترحم فانت لذاک اهل — وان تطرد فمن یرحم سواکا

بیت

اے باد صبا مدینے میں مصطفیٰ کو ہم غریبوں کا سلام کہنا
نہیں ہے بجز تمھاری بس میرا اتنا پیام کہنا

آے ہم مثل بلبل سیر گلشن کرچلے
دیکھ مالی باغ اپنا ہم تو اپنے گھر چلے

**درویش وایي:** چي عالم ته خصوصاً ومؤمن ته عموماً لازم ده چي همت لوړ وساتي او صرف وحطام الدنیا ته یې مبذول نه کړي لانها فانیة. بلکې مقصود عمده خپل دار آخرت وګرځوئ او هغه کار ته همت خپل مبذول وګرځوئ چي یوم القیامة یې توښه وي. مرزا غالب وایي

همت بلند دار که نزد خدا وخلق — باشد بقدر همت تو اعتبار تو
آنانکه ذره وار بصورت محقر اند — فردا زخیال وناز بفردوس نه گرند

بسم الله الرحمن الرحيم

رب يسر وسهل ولا تعسر وتممه بالخير

قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِنْ قَوْمِهِ

وويل هغه اشرافو او رئيسانو هغه كسان چي كبر يې كاوه له قبول څخه د قول د شعيب، له قومه څخه دده. وشعيب عليه السلام ته راداً لدعوته لهم الى الايمان والتوحيد.

**پوه سه**: چي دا جمله مستانفه ده "ملأ" مشتق دى له "ملئ" څخه چي معنا يې ډكوالى دى، نو اشرافو او رئيسانو ته په دې ملأ وايي چي د خلكو زړونه ددوى له هيبت څخه ډك وي. او لفظ يې مفرد او معنا يې د جمعي ده لكه قوم او رهط. دا خبره هلته ملأ وكړه چي مواعظ بليغه د شعيب عليه السلام په باره كي د توحيد وغيره له ده څخه واورېدله.

لَنُخْرِجَنَّكَ يَا شُعَيْبُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَكَ مِنْ قَرْيَتِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا

قسم په خداى جل جلاله چي موږ به وباسو تا او هغه كسان چي ايمان يې له تا سره راوړى دى زموږ له قريې او وطن څخه، او يا به تاسي داخلېږئ بېر ته زموږ په دين كي يعني يو ددې دوو كارو به خامخا كېږي يا اخراج يا عود زموږ په دين كي.

**پوښتنه**: شعيب عليه السلام خو ددوى په ملت او دين كي نه ؤ لان الانبياء يستحيل عليهم الكفر. نو دوى څرنګه دى مخاطب كړى په عود سره؟

**ځواب**: بعض مفسران وايي چي "الذين آمنوا" خو ددوى په ملت يعني شرك كي داخل وه، نو هغو ته يې تغليب وركړى او نسبت د عود يې وشعيب والذين آمنوا ته وكړى. او بعض مفسران وايي چي عاد په معنا د صار دى اى لتصيرون وتدخلن في ملتنا.

**پوه سه**: چي "والذين آمنوا" عطف دى پر كاف د "لنخرجنك" او يا شعيب لفظ معترض بين المتعاطفين. او نسبت د اخراج چي يې اولاً وشعيب ته وكړى وروسته والذين آمنوا تنبيه پر دې ده، شعيب اصل دى په اخراج يا عود كي او والذين آمنوا يې تبع ده.

**فائده**: له دې آیت مبارک څخه دا معلومه سوه چي د متکبرو او متجبرو کسانو عادت استعلاً ده پر بې چاره ګانو، او یا ددوی عادت دی چي ان یخرج الاذل، ولې چي ددوی په دماغو او زړو کې د دنیا کبر او د استغناً سر کښې وي وحب الدنیا الذي رأس کل خطیئة کما ورد في قول الصادق المصدوق ﷺ، نو څکه خدای ﷻ دغه کسان سبب د هلاک د قومو او قریو ګرځولي، قال الله تعالی "اذا اردنا ان نهلک قریة امرنا مترفیها ففسقوا فیها الآیة" حافظ وایي.

ایمن مشو زعشوه دنیا که این عجوز... مکاره می نشیند ومحتاله میرود

**درویش وایي**: چي صاحب د روح المعاني په څواب کې د سوال سابق علی قولهم او لتعودن آه چي دا قول جاري پر ظن د کافرانو د قوم شعیب و، ولې چي شعیب ﷺ دمخه تر نبوت پر دوی انکار نه کاوه، نو ددوی دا خیال ؤ چي شعیب زمونږ پر ملت دی، نو څکه یې لتعدن ورته ووایل، او بل څواب روح المعاني دا راوړی چي دا خبره بناً ده پر تلبیس د رئیسانو پر خلګو چي شیعب دمخه زمونږ په دین ؤ، او یو بل څواب چي هغه هم روح المعاني راوړی دی او ډېر په زړه پوري او محقق څواب دی هغه دادی چي دا آیت پر طریقه د هغه آیت دی چي خدای پاک وایي "الله ولي الذین آمنوا یخرجوهم من الظلمات الی النور والذین کفروا اولیاٰهم الطاغوت یخرجونهم من النور الی الظلمات" ولې چي اخراج خو هم دخول سابق غواړي په دواړو ځایو کې، او سره ددې چي اخراج له ظلمات څخه د کفر ونور ته څو په ایمان مؤمن اصلي کې نسته، او داغه رنګه اخراج له نور څخه وه ظلماتو د کفر څو په کافر اصلي کې نسته، لکن چونکه هر یو د مؤمن اصلي او د کافر اصلي قدرت درلودی مؤمن اصلي پر کفر لکونه مختاراً او چون مؤمن اصلي سره د قدرته پر کفر ایمان مختاره کړی په توفیق د خدای ﷻ، نو ګویا خدای ﷻ دی راوه ایستی له تاریکیو څخه د کفر ممکن له وه نور ایماني ته، او داغه رنګه کافر اصلي چونکه قدرت پر نور ایماني درلودی لکونه مختاراً من عنده تعالی لکن چونکه ده کفر مختار کړی نو ګویا طاغوت او شیطان دی راوه ایستی له نور ایماني ممکن څخه و ظلماتو ته د کفر، غور کول په کار دی څواب ډېر دقیق او تطبیق د مانحن فیه یعني او لتعودن آه پر هغه څواب مذکور ادق دی.

قَالَ اَوَلَوْ كُنَّا كٰرِهِيْنَ

شعیب علیه السلام ورته وویل که څه هم موږ په جبر او زور سره د کراهت زموږ عود وملت ته ستاسي وي.

قانون نحوي: هر ځای چي په قرآن مجید کي وروسته تر همزه د استفهام حرف عطف یا واو یا فا یا ثم راسي، همزه خو د پاره د انکار دی او حرف عطف خو تر همزه دمخه پر یو شي نه سي عطف کېدای. ولي چي د همزه صدارت فوتېږي نو معطوف علیه به یې د مقام سره مناسب محذوف او مقدر وي. والتقدیر هکذا اتعیدوننا في ملتکم لو کنا طائعین وهذا هو المعطوف علیه المقدر، ولو کنا کارهین وهذا هو المعطوف.

**سوال:** تا خو دا خبره په خپل تفسیر کي نور ځایونه هم کړې ده، نو تکرار ته ددې خبره څه ضرورت ؤ؟

**ځواب:** هو! دا خبره ما دمخه هم کړې ده. لکن تکرار یې په سبب ددې دی چي طالبانو او مطالعه کونکو د تفسیر ته دا ښه ټینګ او مقرر سي، ولي چي ډېرو طالبانو بلکې بعض امامانو دا قانون تر اوسه نه دی اورېدلی.

قَدِ افْتَرَيْنَا عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اِنْ عُدْنَا فِيْ مِلَّتِكُمْ

نو به موږ پر خدای جل جلاله دروغ ویلي وي که چېري موږ عود وکړو ستاسي وملت ته. یعني ما خو تاسي ته ویلي وه چي زه نبي د خدای یم او زه یې امر کړی یم چي تاسي ته تبلیغ د توحید د خدای جل جلاله وکړم. نو که زه بالفرض والتقدیر عود ستاسي وه ملت ته د شرک وکړم، نو هغه دمخه خبري چي ما تاسي ته دمخه کړي دي، هغه نو ټوله ما پر خدای جل جلاله دروغ ویلي وه.

بَعْدَ اِذْ نَجّٰىنَا اللّٰهُ مِنْهَا

وروسته تر دې چي خدای پاک موږ ته نجات را په برخه کړی وستاسي له ملت څخه

**پوه سه:** چي ځواب د شرط محذوف دی په دلیل د ماقبل یعني قد افترینا آه، او کلمه د افترینا که څه هم ماضي ده لکن دلته په معنا د مضارع ده، ولي چي عود که وي خو آئینده به وي.

وَمَا يَكُونُ لَنَآ أَن نَّعُودَ فِيهَآ

ای ما صح و ما ثبت لنا چي موږ به گرځو په ملت ستاسي.

**درويش وايي**: چي په دې عبارت سره شعيب عليه السلام خپل او د اصحابو اظهار د استقامت وکړی پر اسلام او اجتناب عن الشرک. لکن چونکه په دې اظهار کښي شبه د نفس د تذکيه او د ملګرو وه او اظهار د خوف د مايؤل اليه الامر نه ؤ لان الخاتمة مستورة، دستي د تدارک اظهار وکړی په دې قول سره.

إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ رَبُّنَا

مګر که خدای جل جلاله اراده زموږ د خذلان وکړي "لان الکفر بمشيته تعالى يضل من يشآء ويهدي من يشآء لامرد لمشيته تعالى.

**فائده**: استثنا دلته مفرغ ده مستثنی منه يې محذوف دی يعني في حال من او وقت من الاوقات الا حالة مشيته تعالى ذالک او وقت مشيته تعالى ذالک ای العود الى ملتکم.

**درويش وايي**: چي انبيا عليهم الصلوٰة والسلام په اجماع سره مامون العاقبة دی لکن مع هذا دوی تزکيه د نفس نه کوي او کارونه ټول حتی کفر او اسلام وه مشيت ته د خدای جل جلاله سپاري ولهذا ورد في دعا سيد المرسلين صلى الله عليه وسلم يا مقلب القلوب ثبت قلبي على دينک.

**درويش وايي**: چي صاحب د روح البيان ددې استثنا داسي ترجمه کړې ده چي شعيب عليه السلام د ربنا لفظ ووايه او عنوان د ربوبيت د خدای جل جلاله يې ذکر کړی تنبيه يې پر دې وکړه چي مشيت د خدای جل جلاله د ارتداد دده محاله ده قطعاً. لکن دا توجيه دده ضعيف ده على مامر من توجيه الاستثنا على رائ المحققين فافهم هداک الله.

وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا

او فراخه دی رب زموږ از روی علم.

**پوهه**: چي "علما" منصوب دی بنا پر تميز دی چي دمخه فاعل ؤ او تقدير يې داسي دی چي "وسع علم ربنا کل شئ" نو حاصل ددې آيت دادی چي خدای جل جلاله خبر دی په حالاتو د بندګانو او په ما يؤل الله امر العباد من الکفر والايمان وبالعکس، په

حديث كي د بخاري او مسلم داسي راغلي دي قال رسول الله ﷺ "الذي لا اله غيره" قسم په خداى ﷻ چي يو ستاسي عمل كوي په عمل د اهل النار حتى چي دده او د اور تر منځ يو گز ځاى پاته وي مگر په نېږ د خداى ﷻ جنتي ليكل سوى. نو هغه كتاب سبقت پر وكړي، نو بيا دى عمل مختاره كړي د اهل الجنة يعني ايمان راوړي او عمل صالح مختاره كړي. نو جنت ته داخل سي.

**درويش وايي:** چي عكس يې كېداى سي كما جاء ايضاً في كتاب البخاري فتامّل في عكسه.

## عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا ؕ

خاص پر خداى ﷻ دى توكل زموږ چي پر ايمان مو ثابت ولري. او يقين مو پر خداى ﷻ ډېر كړي، او د اشرارو او د كفارو له شر څخه مو وساتي. بيا چي شعيب عليه السلام د قوم له ايمان څخه نا اميده سو، نو په مناجات د رب العالمين سره يې شروع وكړه.

## رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَاَنْتَ خَيْرُ الْفٰتِحِيْنَ ﴿۸۹﴾

اې زموږ خدايه ته حكم او قضاوت وكړې زموږ يعني شعيب واتباعه او په منځ كي د قوم زموږ يعني الكفار په حق فيصله سره چي محق او مبطل سره جلا كړي او ته اې خدايه خير د حكم كونكو او د فيصله كونكو او د قضاوت كونكو يې. سعدي شيرازي وايي.

چون فرو آيد بلائى بى دفعى　　　جز تضرع نبود ديگر دافعى

## وَقَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لَئِنِ اتَّبَعْتُمْ شُعَيْبًا اِنَّكُمْ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ﴿۹۰﴾

او وويل هغه رئيسانو چي كافران وه له قوم څخه د شعيب عليه السلام يعني وخواري طبقې ته د قوم كه چېري تاسي متابعت وكړئ شعيب په دين كي دده او خپل دين شرك پر پرېږدئ په تحقيق تاسي ياست په دغه وخت كي په تاوان كي، ولي چي تاسي بدل كړى خپل هدايت چي شرك دى، ددوى په زعم په ضلالت د شعيب ددوى په فاسدو فكرو سره.

**يوه سه**: چي په دې آيت کي قسم محذوف سته چي لام موطئه د قسم د لالت پر وکړي او بل ان شرطيه سته چي دا دواړه جواب غواړي. نو "انكم اذاً لخاسرون" ساد مسد د دواړو د جواب ده ومثله في القرآن كثير.

**يوه سه**: چي دا جمله يعني "قال الملأ" عطف ده پر هغه جمله "وقال الملأ الذين استكبروا الآية" دا خبره دوی هلته وکړه چي کلکوالی د شعيب عليه السلام ومن معه من المؤمنين يې وليدی او اشراف د قوم د شعيب عليه السلام ويرېدل چي خواره طبقه د قوم د شعيب متابعت ونه کړي په دين کي دده د پاره د نفرت د خواري طبقې له دين څخه د شعيب عليه السلام پر طريقه د توكيد قسمي لئن تبعتم الآية.

فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جَاثِمِينَ ﴿٩١﴾

نو دوی ونيول زلزلې، قال الكلبي رحمه الله نو دوی وګرځېدله په خپله مدينه او وطن کي ټوله مړه.

**يوه سه**: چي ابن عباس رضي الله عنه او نور راويان د واقعې وايي چي يوه دروازه د جهنم خدای پاک پر دوی را خلاصه کړه، نو ډېره سخته ګرمي پر دوی مسلطه سول. چي تنفس ددوی به بند سو نه سايې فائده ورته کول او نه د غسل اوبو فائده ورته کول، نو دوی په زېر خانو يا په غارو د غرو ننوتل، نو هغه ځايونه به د پر تاوده وه تر بانديې، نو دوی ټوله ولوی دښت ته وتښتېدل. نو خدای پاک يوه وريځ پيدا کړه چي ددوی د سرو سايه وان سوه او ښه يخ باد هم چلېدی، نو يو وبل ته يې سره ناري کړې چي راسئ ښه يخ پيدا سو او ښه يخ باد هم چلېږي، نو دوی چي ټوله سره غونډ سوه "رجالهم ونسائهم، صغيرهم وكبيرهم" نو خدای پاک له وريځي څخه پر دوی باندي اور ورباشه يعني د اور باران شروع سو، نو ټوله وسوځل سوه.

**پوښتنه**: کلبي رحمه الله خو وويل چي زلزله پر شروع سوه؟

**ځواب**: دا دوه روايته منافات نه سره لري ولي چي هم د اور باران شروع سو او هم زلزله، د زلزلې فايده دا وه چي پر ځمکه کښېنني او يوې او بل خوا ته ونه ځغلي. او قتاده رحمه الله وايي چي شعيب عليه السلام نبي ؤ د اصحاب الايكة او د اهل مدين دواړو، نو اصحاب الايكة په اورېدلو د اور خدای پاک هلاک کړه چي يوم

الظلة يې بولي ورځ د هلاک ددوی، او پر اهل مدين زلزله او صيحة د جبرائيل مسلطه سوه فهلکوا جميعاً.

**درویش وايي:** چي دا جمع د رواياتو په زړه پوري ده، هلاک د قوم د شعيب، او هغه روايت چي جريري کړی دی چي اووه ورځي پر دوی باد چلېدی او بيا پر دوی ګرمي مسلطه سوه کمار، بيا دوی له ليري ځخه يو غر وليدی دو غره ته پناه ورووړه تر غره لاندې ښې ولې او چيني وې، نو دوی ټول تر غره لاندې سره جمع سول، نو خدای پاک غر پر راوه نړاوه فذالک يوم الظلة.

**درويش وايي:** چي ددې قول نه د دمخه رواياتو سره جمع ممکنه ده او په صحيح نقل د ثقاتو ثابت دی والعلم عند الله تعالى.

الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا فِيهَا ۚ

هغه کسان چي تکذيب يې د شعيب عليه السلام کاوه داسې وګرځېدل ګويا دوی په خپل وطن اقامت او استوګنه نه وه کړې يعني استيصالاً هلاک سوه.

**بوه سه:** چي عرب وايي "غنيت بالمکان اذا اقمت به والمغاني المنازل مفردها مغنى" الذين سره د صلې مبتدأ ده "کان لم يغنوا الخ" يې خبر دی.

**فائده:** الذين کذبوا آه" جمله مستانفه ده لبيان شوم قولهم لنخرجنک يا شعيب والذين آمنوا معک من قريتنا آه.

الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا كَانُوا هُمُ الْخَاسِرِينَ

بل استيناف دی لپاره د بيان د عقوبت د قول اخير ددوی يعني او لتعودن في ملتنا آه، والمراد چي شعيب عليه السلام او من معه ددوی ملت ته نه ورواوښتل چي دوی به نو خاسرين وای، بلکې اعدا د شعيب عليه السلام خسر الدنيا والآخرة سوه، د دنيا خسران هلاک بالاستيصال سو، او د آخرت خسران يې اوسېدل په دوږخ کي ابد الآبدين.

فَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ يَا قَوْمِ لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَاتِ رَبِّي وَنَصَحْتُ لَكُمْ ۖ فَكَيْفَ آسَىٰ عَلَىٰ قَوْمٍ كَافِرِينَ

نو روی ګرداني وکړه شعيب عليه السلام چي ولاړ ؤ ددوی په منځ کي چي پر دوی عذاب نازل سو، او شعيب عليه السلام وويل چي ای قومه زما والله ما تاسي ته په

تحقيق رسول وكړه د رسالت د خداى زما. يعني ما ارسلت به من التوحيد وترك الشرك وغيرهما ولهذا جمع لفظ الرسالات. او نصيحت مي درته وكړى.

**پوه سه**: چي دا خبره شعيب عليه السلام له جهته د شدت غم وكړه پر هلاك د قوم بيرته يې پر خپل ځان انكار وكړى يعني تأسف پر هلاك د قوم نو زه څه غم او غصه كوم پر هلاك د قوم چي كافران وه. ولي چي كافران اهل ددې نه دي چي سړى غمجن سي پر هلاك د هغو. ولي چي مستحق د داسي عذاب استيصالي وه. وفي المثنوي المعنوي.

چون شوم غمگين كه غم شد سرنگون — غم شمابوديد اى قوم حرون
كژ مخوان اى راست خواننده بين — كيف آسى خلف قوم ظالمين

وَمَآ أَرْسَلْنَا فِى قَرْيَةٍ مِّن نَّبِىٍّ إِلَّآ أَخَذْنَآ أَهْلَهَا بِالْبَأْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَضَّرَّعُونَ

او موږ نه دى استولى په يوه قريه كي (قريه عام لفظ دى ښار او كلي دواړو ته وايي) "من نبي" "د "من" لفظ زائد دى د پاره د تاكيد د نفي او دلته دا محذوف دى "وكذب اهلها" يعني چي تكذيب د هغه اهل د قريې "الا اخذنا"

**پوه سه**: چي "الا" استثناً مفرغ ده من اعم الاحوال. والمعنى ما ارسلنا في قرية من القرى المهلكة نبياً من الانبيا في حال من الاحوال. موږ نه دى استولى په يوه قريه كي چي هلاك سوى وي اهل ددې يو نبي له انبياو څخه په هيڅ حال كي د احوالو مګر په داسي حال كي چي موږ نيولي دي اهل د هغې قريې په بأسا سره يعني په مسكنت او فقر سره او په ضرا سره يعني په امراضو سره يا د خپل ځان يا د اهل او اولاد. د هغه قريې اهل شايد او د پاره ددې چي دوى به عجز مختاره كړي او ذليل به سي. او د كبر او استغنا من امر الله عزوجل كالي به وكاږي او د نبي امر او نهي به قبول كړي.

**فائده**: له دې آيته دا ښكاره سوه چي ځيني علما چي وايي چي لفظ د "عسى. كاد او لعل" چي په قرآن كي راسي واجبة الوقوع هغه كار چي په هغه كي دا دري لفظه استعمال سوي وي غلطه ده. ولي چي په دې آيت كي لفظ د لعل استعمال سو او تضرع د كافرانو واجبة الوقوع نه سوه كما لا يخفى.

ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ السَّيِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتَّىٰ عَفَوا وَّقَالُوا قَدْ مَسَّ اٰبَآءَنَا الضَّرَّآءُ وَالسَّرَّآءُ

وروسته چي موږ بدل کړو سیئه یعني فقر او ناجوړي په حسنه سره یعني په فراخي د رزق او جوړوالي د بدن، او په بارانو وغیره.

**پوه سه**: چي دوه امره چي خدای پاک پر کفارو راولیي د امتحان لپاره په دوارو شیانو سره یعني سیئه او حسنه حتی چي دوی ډېر سي ازروی عدد النفوس والاموال، نو دوی دا امتحان الهي نه بولي او دعوت د ایمان ته یې نه بولي بلکي دوی وایي رسېدلي وو پلرو او نیکه ګانو ته زموږ ضرا او سرا یعني دا د زماني عادت دی چي ګاهي سرا نازل سي او ګاهي ضرا پر هل د زماني ونسوا خالق الارض والسما یعني دا ضرا او سرا زموږ ابتلا او امتحان نه دی له طرفه د خدای ﷻ.

**پوه سه**: چي سختي، فقر او مرض ته سیئه وایي، ولي چي دا سړی په غم کي اچوي، او فراخي ته رزق او جوړوالي ته حسنه وایي، ولي د هغې د خوشالي اثر پر انسان محسوس کېږي، ورنه د سیئه اصله معنا فعل قبیحه دی، والله تعالی منزه عن الفعل القبیح.

**فائده**: سیئه او حسنه له هغو الفاظو څخه دي چي ذکر د موصوف یعني فعلة نه غواړي نه په حال کي د افراد او نه د جمع خواه دوی صفت د اعمالو واقع سي او که د حالت من الرخا والشدة. یو شاعر وایي:

عفوا من بعد اقلال وکانوا زمانا لیس عندهم بعیر

**پوه سه**: چي اعفا اللحیة چي په حدیث شریف کي راغلي ده هم له دغه عفوا څخه مأخوذ ده.

فَأَخَذْنَٰهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ

نو دوی موږ ونیول یعني عذاب مو پر نازل کړی ناببره او دوی علم نه درلود پر وخت د نزول د عذاب.

**پوه سه**: چي نزول د عذاب ناببره اقطع او اشد دی، ولي څوک چي علامات د نزول د عذاب ووینې نو څه ناڅه سره یې علاقه پیدا کېږي بخلاف بغتة.

## وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰٓى اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا

او كه چېرې اهل د قريو يعني چې انبياؤ ور استول كېږي، فالام في القرى للعهد الخارجي ايمان يې راوړی وای پر انبياؤ او بېره د خدای ﷻ څخه به يې كولای او معاصي به يې هم نه كولای.

## لَفَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ

موږ به خلاص كړي وا پر دوی بركتونه د اسمان له خوا يعني بارانونه به پر وخت د ضرورت پر اورېدلای، او بركتونه د ځمكي اى النباتات والزروع والثمار. واصل البركة الزيادة والمواظبة على شئ.

**درويش وايي:** چي موږ داسي وويل چي بارانونه پر وخت، ولي باران چي پر وخت د حاجت نه وي هغه مېوو ته زيان رسوي، كلي او نړۍ والو ته هم ضرر عظيم په ارمغان راوړي لكه په سنه ١٢٢٨ هـ د جمادي الاول والثاني پر پاكستان او افغانستان او نورو ځايو د دوبي په ځيله كي پرله پسې بارانونه شروع سوه انګور او نوري مېوې چي پختيا ته رسېدلي وې تولي يې ورستې كړې او ډېر كلي او بانډې يې يوړه او لوی لوی سړكان يې قطع كړه چي آمد رفت پر ممكن نه ؤ د موټرانو، حتى چي لوی پيپ لائن د قدرتي ګاز يې هم له بلوچستان څخه قطع كړی او خلګ يې د ډېرو مشكلاتو د ډوډۍ او د كتغ پخېدلو سره مخامخ كړه چي په تاريخ كي د پاكستان او افغانستان د ډېرو كلو را ايسته دومره درنې واقعاتي نه وې روه نما سوي، ولي باران كه نعمت دی خو پر ځپل وخت باندي، ونعلم يقيناً ان للحكيم المطلق في مثل هذه الواقعات حكم لاتخفى، منها تخويف الناس من عذاب الدنيا بسبب المعاصي، ومنها عدم التكبر بالاموال والزروع والنباتات والثمار، ومنها اظهار الله ﷻ قدرته التامة على الحسنة والسيئة الى غير ذالك مما لم يعلمه الا الله ﷻ.

## وَلٰكِنْ كَذَّبُوْا فَاَخَذْنٰهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۹۶﴾

لكن دوی تكذيب وكړی د رسولانو زموږ، دوی ونيول په عقوبت سره د ماكانوا چي دوی يې كسب كاوه من الكفر والمعاصي.

أَفَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَىٰ أَن يَأْتِيَهُم بَأْسُنَا بَيَاتًا وَهُمْ نَائِمُونَ ﴿٩٧﴾

آيا په امن کي دي اهل د قريو . يعني هغه قريې چي رسولان ورغلي وي او دوی يې تکذيب کړی وي. فاللام للعهد الخارجي. له دې څخه چي رابه سي ودوی ته عذاب زموږ د شپې او په داسي حال کي چي دوی بيده وي.

**يوه سه:** چي دا جمله عطف ده على قوله "فاخذناهم بغتة" او نوري جملې اعتراضيه دي بين المعطوفين. والحاصل چي وروسته تر دې چي موږ په عذاب ونيول اهل القرى من الكافرين السابقين. آيا په امن کي دي اهل القرى من مكة وماحولها من القرى الكافرين بنبوة خاتم المرسلين محمد ﷺ.

**يوه سه:** چي له "نائمون" څخه مراد حقيقت نوم نه دی بلکي مراد څني غفلت دی که بيده وي او که نه وي.

أَوَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَىٰ أَن يَأْتِيَهُم بَأْسُنَا ضُحًى وَهُمْ يَلْعَبُونَ ﴿٩٨﴾

او يا په امن کي دي اهل د قريو المكذبين للرسل چي دوی ته راسي عذاب زموږ په وخت کي د څاښت يعني د ورځي. يعني که حقيقت څاښت که څه کم يا څه بالا وي په داسي وخت کي چي دوی به غافله وي په لهو ولعب به اخته وي.

أَفَأَمِنُوا مَكْرَ اللَّهِ ۚ فَلَا يَأْمَنُ مَكْرَ اللَّهِ إِلَّا الْقَوْمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٩٩﴾

آيا په امن کي دي اهل القرى له استدراج څخه د خدای ﷻ کافرانو لره چي تر يو وخته دروازې د نعمتو پر خلاصي کړي وروسته يې په عذاب ونيسي من حيث لايحتسبون او نه په امن کي له استدراج څخه د خدای ﷻ مګر هغه قوم چي په خسران کي واقع وي.

أَوَلَمْ يَهْدِ لِلَّذِينَ يَرِثُونَ الْأَرْضَ مِن بَعْدِ أَهْلِهَا أَن لَّوْ نَشَاءُ أَصَبْنَاهُم بِذُنُوبِهِمْ ۚ وَنَطْبَعُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ﴿١٠٠﴾

**يوه سه:** چي استفهام دلته لپاره د توبيخ او سرزنش دی او هدايت يې په لام سره متعدي کړی ولي چي د هدايت معنا دلته تبيين دی ای لم تبين لهم. او مفعول د "يهدی" محذوف دی ای العاقبة. او فاعل يې "ان لو نشا" دی او تر استفهام وروسته معطوف عليه د "ولم يهد" محذوف دی ای اغفلوا ولم يهد لهم

او معنی د "یرثون الارض آه" چي دوی قائم مقام د هغو کسانو دي چي تېر دوی دمخه تېر سوي من الامم المهلكة او دیار او کورونه و دوی ته په میراث پاته سوي دي، والمراد بالموصول اهل مکة ومن حولها، والمعنی اولم يتبين لهم ويوضح لهم عاقبة امرهم ان سلكوا طريق اسلافهم والمراد بالعاقبة ان يهلكوا كما هلک اسلافهم. او کلمه د "ان" مخفف ده مثقل دی او اسم یې ضمیر شان محذف دی، او خبر یې جمله شرطیه ده یعني لو نشا آه او د بذنوبهم سره مضاف محذوف دی ای بجزأ ذنوبهم کما اصبنا من قبلهم.

سلیسه معنا په پښتو: آیا غافله دي دوی یعني اهل مکه ومن حولها. او دوی ته نه ده معلومه سوې دا چي شان دادی که موږ وغواړو دوی ته به موږ ورسوو جزأ او عقوبت او عذاب د دوی د گنهو لکه چي موږ جزأ او عذاب د گنهو تر دوی دمخه کسانو ته ورکړی ؤ. او موږ به مهر ولگوو پر زړو د دوی د پاره د عقوبت ددوی پر اصرار پر کفر باندي. نو دوی به نه اوري اخبار د تېرو امتو فضلاً عن التدبر فيها.

**پوښتنه**: مهر خو ددوی پر زړو لگېږي، نو پر دې باندي تفریع د عدم سماع څرنگه ده؟

**ځواب**: زړه رئیس دی د ټولو اعضاؤ د بدن، نو مهر پر زړه سبب دی د عدم السماع بالقبول للموعظة.

**درویش وايي**: چي مقصود دادی چي د تېرو سوو امتو له عذابه څخه پر کفر دي وروسته امتو نه پند او عبرت واخلي او هغه کارونه دي نه کوي. قال الشاعر

پند گیر از مصائب دیگران تا نگیرند دیگران زتو پند
نرود مرغ سوی دانه فراز چودیگرمرغ بیند اندر بند

کاشفي رحمه الله په تفسیر حسیني کي وايي: گوش دل از استماع سخن حق فائده دارد نه گوش آب وگل. وفي المثنوي.

این سخن از گوش دل باید شنود گوش گل اینجا ندارد هیچ سود
گوش سر باجمله حیوان همدم است گوش دل مخصوص نسل آدم است

تِلْكَ الْقُرٰى نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ اَنْۢبَآئِهَا ۚ

دغه قریه یعني وطنونه د قرٰی ماضیه وو لکه قوم نوح، قوم عاد، قوم ثمود، قوم لوط، او قوم شعیب، موصول سره د صلې مبتدأ او "نقص" یې خبر دی، مونږ قصې کړي دي بعض خبرونه د هغو نه تولـه. نو "من" د پاره د تبعیض دی یعني چې تاسې عبرت ځنې واخلئ.

وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ۚ فَمَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا بِمَا كَذَّبُوْا مِنْ قَبْلُ ۚ

او په قسم او تحقیق راتګ کړی ؤ رسولانو ددوی په معجزاتو چې ښکاره شاهد دي ددوی پر صدق په رسالت کې، نو دوی نه وه چې ایمان دي راوړي.

**پوه سه:** چې "لیؤمنوا" منصوب دی په حذف د نون اعراب په سبب د "ان" مقدره وروسته تر لام د انکار او جحود.

**سوال:** وروسته تر نون مصدري خو دا لفظ مصدر ګرځي، نو بیا حمل پر ضمیر د کانوا څرنګه روا دی؟

**ځواب:** مصدر په معنا د فاعل دی او یا محمول دی په تقدیر د ذو، والتقدیر ماکانوا مؤمنین، او ماکانوا ذوی ایمان بعد مجئ الرسل بالبینات.

**پوه سه:** چې په "بما" کې کلمه د ما موصوله ده او عائد یې محذوف دی ای بما کذبوه من قبل ای من قبل مجئ الرسل یعني التوحید بلکې دوی مستمر وه پر اشراک وتکذیب الرسل، او یا یې معنی داده فما کانوا لیؤمنوا مدة عمرهم بما کذبوا به اولاً یعني بالرسالة والشرائع کلها حین جاءتهم الرسل ولم یؤثر فیهم دعوتهم المطاولة والآیات المتتابعة.

كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۱﴾

"کذالک" لکه دغه سخت مهر چې پر زړو د امم ماضیه وو چې خدای ﷻ اینښی ؤ یعني په سبب د محبت د دوی د شرک سره او د تقلید د آباؤ او اجدادو. خدای ﷻ مهر لګولی دی پر زړو د کافرانو یعني من قومک، نو دوی هم ایمان نه راوړي او زړونه یې نه نرم کېږي په آیاتو او معجزاتو ستا او په انذار ستا یعني یا محمد ﷺ او په دې سره تسلي ده و نبي ﷺ ته.

وَمَا وَجَدْنَا لِأَكْثَرِهِم مِّنْ عَهْدٍ

او موږ نه دي موندلي اکثرو لره د کفارو د مکې من عهد ای الوفا بالعهد الذي عاهدوا مع النبي ﷺ حين نزل عليهم ضر ومخافة، نو دوی به عليه الصلوة والسلام ته ويل چي دعا وکړه که دا مصيبت او قحط وغيره خدای دفع کړي، نو به موږ ايمان راوړو قال الله تعالى فلما کشفنا مابهم من ضر للجوا في طغيانهم يعمهون" او يا به يې وخدای ﷻ ته زاري کولې "لئن انجينا من هذه لنکونن من الشاکرين" که ته نجات راکړې موږ ته له دې مصيبت څخه موږ به ګرځو د شاکرانو بندګانو څخه. خدای پاک چي به هغه مصيبت څني دفع کړی دوی به بيرته خپل کفر ته دوام ورکړی او وفا به يې نه وکړه.

**درويش وايي**: چي په موږ مسلمانانو کي هم دا رواج موجود دی چي يو سړی چي په يوه ګناه اخته وي مثلاً زنی، شرب الخمر، لواطت وغيرها نو په يو مصيبت مبتلاً سي لکه ناجوړي، فقر وغيره نو خدای ﷻ ته زاری کوي که دي زه له دې مصيبت څخه خلاص کړم زما پر هغو ګناهو چي ما کولې توبه ده. نو چي خدای پاک هغه مصيبت څني پورته کړي څو ورځي وروسته بيرته په هغه ګناه اخته سي. اللهم احفظنا من مثل هذه التوبة من اجل المصيبة لا من خوف الله ﷻ. په ترجمه کي د جلد اخير د فتوحات مکيه داسي راغلي دي چي موسیٰ عليه السلام ته خدای پاک وحي وکړې چي هر چا چي تاته اميد دروری بې برخي کوې به يې نه، او هر چا چي ستا څخه امان وغوښتی امان به ورکوې، موسیٰ عليه السلام په سياحت کي ؤ چي ناببره يې کوتره پر وږه کښښستله. د کوترې غرض خو امان ؤ له موسیٰ عليه السلام څخه ولي چي وروسته باز په پسې ؤ، او تر کوترې وروسته باز راغلی د موسی عليه السلام پر وږه کښښستی چي غرض يې د کوترې ښکار ؤ، کوتره په قصد د امان د موسی عليه السلام په لستوڼي ننوتله. باز په فصيح ژبه و موسیٰ عليه السلام ته وويل چي اې ابن عمران ما بې برخي مه ګرځوه او زما او زما د رزق چي کوتره ده جدايي مه اچوه يعني پرې مې ږده چي خپل کوتره وخورم، موسیٰ عليه السلام وويل چي څرنګه ژر امتحان راباندي راغلی يعني چي که

اوس کوترې ته امان ورکوي باز بې برخې کېږي او که د باز امید ور پر ځای کوي
د کوترې امان قطع کېږي. نو يې له جېبه څخه چاقو را وکښې په دې قصد چې
خپل د ورانه څخه به غوښه پرې کوي او باز ته به يې ورکوي، نو هم به د باز امید
پر ځای سي او د کوترې امان به هم پوره سي، نو باز او کوترې په فصیح ژبه ورته
وویل چې اې د عمران زویه تلوار مه کوه موږ ملکې یو ستا د امتحان د پاره
راغلي یو چې ته وفا بالعهد کوې او که نه. ابیات

ایا سامعاً لیس السماع بنافع اذا انت لم تفعل فما انت بسامع
اذا کنت في الدنیا عن الخیر عاجزاً فما انت في یوم القیامة صانع

**درویش وایي**: چې پر دې خبره خو اجماع ده چې ټولو انبیا علیهم السلام
وفا په خپلو وعدو سره کړې ده یعني په اداکې د رسالت او په تبلیغ کې د
احکامو د خدای ﷻ او پر دې هم اتفاق دی چې فساقو که کافران وي او که
مسلمانانو نقض العهد يې کړی دی وان کان في نقض عهودهم تفاوت. خبره په
هغه چا کې ده چې دعوه د ایمان او فرمانبرداری کوي. لکن یوه ورځ يې هم وفا
بالعهد نه وي یعني په ایمان راوړلو سره، او په صحیح حدیث کې چې روایت يې
عبدالرحمن بن عوف بن مالک الاشجعي ﷺ کړی دی داسې راغلي دي "کنا عند
رسول الله ﷺ (سبع او ثمانیة او تسعة نفر) فقال رسول الله ﷺ الا تبایعون رسول
الله ﷺ (آیا د خدای ﷻ د رسول سره بیعت نه کوئ. او زموږ لږ زمانه کېده چې
موږ ده سره بیعت کړی و، نو موږ ورته وویل) قد بایعناک یا رسول الله (نو
اوس موږ پر څه شي ستا سره بیعت وکړو؟ ده مبارک راته وویل) تعبدالله
ولاتشرکوابه شیاً وتقیموا الصلوة الخمس وتطیعوا یعني الله ورسوله (یوه
خبره يې کرار وکړه) ولاتسئلوا الناس (له خلکو څخه به سوال نه کوئ. راوي
وایي چې ماځنې دغو کسانو ولیدله چې پر آس به سپور و غمچینه به يې
ولوېدله او کښته به خلګ هم وه له هغو یوه څخه يې دا سوال نه کاوه چې زما
غمچینه راکړه یعني خوفاً من نقض العهد واهتماماً بامر الوفا. نو وګوره اې
مخاطبه وحال ته ددغو کسانو چې غمچینه به يې له لاسه ایله سوه له چا څخه به

يې سوال نه کاوه، نو نور د دراهمو او متاع سوال به يې څرنګه کاوه، لکن په اوسنی زمانه کي د پاره د د جمع المال والنقود د مخ غوښي يې توی کړي وي او تول عمر په سوال اخته وي مع غنائه اللهم صبراً.

وَإِن وَجَدْنَا أَكْثَرَهُمْ لَفَٰسِقِينَ

**درويش وايي:** چي ددې آيت په تفسير کي کوفيان وايي چي کلمه د "ان" نافيه ده او لام په "لفسقين" کي په معنا د الا دی يعني ماوجدنا اکثرهم الا فسقين يعني ناقضي عهودهم. او بصريان وايي چي "ان" مخفف د مثقل دی نو پر دې مذهب "وجدنا" په معنی د علمنا دی لان کلمة د مخففه من المثقله لاتدخل الا علی الافعال الداخلة علی المبتدا والخبر وهو ههنا علمنا، نو د بصريانو په نېز معنی د آيت داسي ده انه شان دادی علمنا اکثرهم لفاسقين.

ثُمَّ بَعَثْنَا مِنۢ بَعْدِهِم مُّوسَىٰ بِـَٔايَٰتِنَآ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ

**پوه سه:** چي ضمير د "من بعدهم" راجع دی و "رسل" ته في قوله تعالی "جاتهم رسلهم آه" والمراد نوح و هود و صالح ولوط وشعيب و موسی عليهم السلام "بآياتنا" په معجزاتو سره چي ذکر به يې وروسته راسي و فرعون ته.

**پوه سه:** چي فرعون د معين سړي نوم نه دی بلکې د عمالکه وو هر بادشاه ته فرعون وايي، لکه د فارسيانو هر باچا ته چي کسری وايي، او د روميانو هر باچا ته قيصر وايي او د چنايانو باچا ته خاقان وايي او د يمن باچا ته تبيع وايي او د حبشې هر باچاته نجاشي وايي او قيل و هر باچاته د عربو وايي، او خليفه و هر باچاته د بغداد وايي، او سلطان و هر باچا ته د اهل سلجوق وايي، او د امريکايانو هر رئيس جمهور ته جارج وايي، او د مسلمانانو هر امير ته چي د اهل وعقد په مشوره سره وټاکل سي امير المؤمنين وايي يعني که په توپک سالاری، او زور سره چي مسلط سي هغه ته امير المؤمنين نه وايي بلکې هغه ته رئيس جمهور وايي، او د فرعون موسی اصلي نوم بعض وايي چي قابوس ؤ او بعض وايي چي نوم مصعب بن وليد بن ريان ؤ وهو الاشهر عند اهل التواريخ.

وَمَلَإِيْهِ فَظَلَمُوْا بِهَا

او و اشرافو او رئیسانو ته د فرعون "فظلموا بها" ای بالآیات، نو دوی ظلم وکړی په آیاتو سره د خدای ﷻ.

**پوه سه**: چي ظلم وضع ده په غیر کي د خپل ځای، نو دلته هم حق د آیاتو او معجزاتو خو دا ؤ چي دوی قبولي کړي او ایمان يې راوړی وای وهم کفروا بها مکان الایمان بها، ولهذا قال اللهﷻ ظلموا بها موضع کفروابها.

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ

ته وګوره چي څرنګه سو اخیر کار د مفسدینو یعني فرعون وقومه وهو الغرق في الیم کلهم اجمعین.

وَقَالَ مُوْسٰى يٰفِرْعَوْنُ اِنِّيْ رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ

او وویل موسیٰ چي د فرعون په دربار کي اجازه تر لاسه کړه، اي فرعونه زه رسول یم له جانبه څخه د رب العالمین یعني ته او ستا قوم به عبادت کوئ د رب العالمین او ته به دعوه د خدایي پرېږدې، فرعون ورته وویل کذبت ما انت برسول، نو موسیٰ علیه السلام ورته وویل.

حَقِيْقٌ عَلٰٓى اَنْ لَّآ اَقُوْلَ عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ

**پوه سه**: چي نافع رحمه الله له قراء سبعه وو څخه د "علی" لفظ "عليّ" وایي په تشدید د یا ای واجب عليّ، نو دا جمله مستأنفه ده په ځواب کي د تکذیب د فرعون د موسیٰ في دعوی الرسالة کما مر آنفاً او نور قاریان يې تولـه په الف مقصوره وایي، نو اصل د علی عليّ ؤ په شد سره کما في قرائة نافع رحمه الله نو یا مشدده يې په الف سره بدله کړه والله اعلم بالصواب في مراده في القرآن. او بعض مفسران وایي چي علی دلته حرف جر دی په ځای کي د با راغلی لافائدة التمکن والقدرة کما هو لازم لمعنی اللام. فالمعنی حقیق بان لا اقول آه لکه په دې محاوره کي د عربو رمیت القوس مکان رمیت بالقوس، ددې توجیه تائید کوي قرائت د ابي بن کعب، او د اعمش حقیق بان لا اقول آه بایراد صریح البا موضع علی.



Scanned by CamScanner

قَدْ جِئْتُكُمْ بِبَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَأَرْسِلْ مَعِيَ بَنِيْ إِسْرَآءِيْلَ ﴿۱۰۵﴾

په تحقیق سره ما راتنگ کړی دی په معجزه ښکاره سره چي زما د رسالت شاهده ده، نو زما سره واستوه بني اسرائیل یعني پرېږده چي زما سره ولاړ سي ارض مقدسه ته چي ددوی آبایي استوګن ځای دی، دا خبره موسی ﷺ ددې د پاره وکړه چي فرعون بني اسرائیل په مصر کي د مریانو په توګه استعمالول په چا به یې خښتي جوړولې به څینو به یې دپوالونه وهل په څینو به یې خاورې چلولې الی غیر ذالک من الاعمال الشاقة، او د بني اسرائیلو ښځو به د فرعونیانو د کورو جارو کښي او نان وایي او اشپزي الی غیر ذالک کولې.

قَالَ إِنْ كُنْتَ جِئْتَ بِآيَةٍ فَأْتِ بِهَآ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۱۰۶﴾

فرعون په ځواب کي وویل که ته یې چي راتنگ دي کړی وي په آیت سره یعني معجزه پر صدق د رسالت ستا، نو ته یې راوړه یعني ښکاره یې کړه که ته یې د ریښتیا ویونکو له ډلې څخه.

**پوه سه:** چي "ان کنت" شرط دی پر جزا باندي ماقبل دلالت کوي.

فَأَلْقٰى عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۰۷﴾

نو موسی ﷺ لکړه له لاسه څخه ایله کړه، نو ناببره لکړه آیي مار سو.

**پوه سه:** چي ضمیر مونث و "عصا" ته راجع دی چي مونث سماعي ده، او ثعبان و لوی نر مار ته وایي.

**پوښتنه:** په بل ځای کي د قرآن کریم راغلي دي "کانها جان" او جان خو نري مار ته وایي چي په پښتو یې کوچه مار بولي او په انسان پسي غورځي؟

**ځواب:** دا لکړه په جسد کي ثعبان مار وګرځېدله او په سرعت کي لکه جان داسي وه، او بعض مفسرین وایي چي اول وار به لکړه لکه جان مار داسي سوله کرار کرار به لوېدله ثعبان به ځني جوړ سو.

**درویش وایي:** چي سید المفسرین عبد الله بن عباس رضی الله عنه او سدي رحمه الله وایي لکړه چي موسی ﷺ ایله کړه نو ژړ مار به سوه او پر شا یې وېښتان وه

لکه لوی ښېرې، نو ثعبان خوله خلاصه کړه اتیا گزه او لاندې ژامه يې پر مخکه کښېښول او لوړه ژامه يې پر دېوالهٔ د قصر فرعون کښېښول او د فرعون پر خوا ور روان سو، فرعون څنې میدان کړه او په پرتاګه کي اودس يې اختیاره څنې مات سو، او خلګو له ببرې يو او بل په ډګو سره وهل او په دې ازدحام کي پينځه ویشت کسه مړه سوه، فرعون په منډه منډه کي موسی ﷺ ته ورناري کړې چي زه تاته د هغه خدای روی قسم چي ته يې را استولی يې لکړه دې واخله زه به پر تا ایمان راوړم او بني اسرائیل به ستا سره ازاد کړم هره خواته چي يې بیا يې بو يه څه، موسی ﷺ چي مار ته ورحمله کړه هغه پخوانی ښرۍ لکړه سوه. بیا فرعون ورته وویل "هل معک" یعني ته بله معجزه لرې.

وَنَزَعَ يَدَهُۥ فَإِذَا هِىَ بَيْضَآءُ لِلنَّٰظِرِينَ ﴿١٠٨﴾

بیا موسی ﷺ وروسته تر دې چي لاس په ګرېوان دننه کړې راوه يې کښې لاس، نو ناببره لاس دده سپین ؤ وکتونکو ته. یعني په داسي سپین والي سره چي خارج عن العادة ؤ، لها شعاع غلب نور الشمس یعجب الناظرین. وروسته يې بیرته لاس په ګرېوان دننه کړی چي راوه يې ایستی پر پخواني حالت ؤ غنم رنګه.

قَالَ ٱلْمَلَأُ مِن قَوْمِ فِرْعَوْنَ إِنَّ هَٰذَا لَسَٰحِرٌ عَلِيمٌ ﴿١٠٩﴾

وویل اشرافو له قوم څخه د فرعون په تحقیق سره دا موسی سحر ګر او ډېر ماهر دی په علم سحر کي، ولي دی چشم بندي کوي د خلګو چي ددوی په سترګو کي لکړه په صورت د مار ښکاره کوي وفي الحقیقة لیست العصا حیة، او غنم رنګه لاس د خلګو په نظر کي سپین ښکاره کوي ولیست الید في الحقیقة کذالک کما هو معنی السحر یعني ارائة الشئ علی خلاف ما هو علیه في الواقع.

**سوال:** په دې آیت اسناد د قول مذکوره و ملاً ته وکړی او په سورة الشعرا کي و فرعون ته، ولي او سبب يې څه دی؟

**ځواب:** دا قول له فرعون او ملاً دواړو څخه صادر دی ددوی په مشوره کي. نو خدای ﷻ حکایت د فرعون د قول وکړی په سورة الشعرا کي او دلته يې حکایت د ملاً د قول وکړی. او یا دا خبره اولاً فرعون وکړه او ملاً يې متابعت وکړی او ملاً دا خبر تر تابعانو پورې ورسول.

يُرِيدُ اَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ ۚ فَمَاذَا تَأْمُرُوْنَ ﴿١١٠﴾

دا سړی یعني موسیٰ علیه السلام اراده لري چې تاسي وباسي له خپلې مځکې څخه یعني مصر، او په ځای کي زموږ بني اسرائيل پر سر د قدرت راولي، نو تاسي څه امر کوي.

**پوه سه**: چي "ما" په "ماذا" كي په محل كي د نصب دی مفعول ثاني د "تأمرون" دی بحذف الجار ای فبما ذا والمفعول الاول محذوف، والتقدير باي شئ تأمرونني، وکلمة فا جزا للشرط المحذوف ای اذا کان الامر کذالک يعني دا سړی يريد الخ فما ذا آه.

**فائده**: احتمال لري چي دا کلام دي هغه باقي کلام د مشاورینو و فرعون ته وي نو امر پر خپل حقيقت دی ولي چي فرعون خو آمر وُ پر دوی او يا د تأمرون معنی دي تشيرون وي، او يا دا خبره اشرافو د فرعون په خپل منځ کي سره کوله، نو پر دي تقدير يا معنی د تأمرون تشيرون ده، او يا پر خپل حقيقت دی، ولي چي مستشار منه د حيثيت معلم دی او مرشد دی نو گويا امير دی پر مسترشد، او قائل ددوی فرعون دی و خپلو خواصو خلگو ته چي په ملأ سره تعبير ځني وسو، نو بيا حتماً تأمرون په معنا د تشيرون دی، ولي چي فرعون خو ملأ آمرين خپل نه گڼل فافهم.

قَالُوْٓا اَرْجِهْ وَاَخَاهُ

دوی وويل فرعون ته چي ته د موسیٰ او دده د ورور کار ځنډوه يعني مه ايمان پر راوړه او مه يې وژنه او مه عذاب ورکوه، حتی چي دده حقيقت حال معلوميږي چي رسول دی که ساحر.

**پوه سه**: چي اصل د "ارجه" ارجئه بهمزة ساکنة و ها مضمومه. ومعنی الارجا التاخير ثم حذف الهمزة تخفيفاً وحذف ضمة الها بالجزم لکونه امراً فصار ارجه.

وَاَرْسِلْ فِى الْمَدَاۤئِنِ حٰشِرِيْنَ ﴿١١١﴾

او واستوه و ښارو ته چي په نواحي کي د مصر واقع دي چي په هغو ښارو کي استاذان د سحر موجود وه، مراد له حاشرين څخه عساکر د فرعون، او نور خلگ چي تولوونکي د ساحرانو دي د موسیٰ علیه السلام د مقابلي د پاره جمع راولي.

يَأْتُوكَ بِكُلِّ سَٰحِرٍ عَلِيمٍ

تاته راولي هر ساحر چي فـائق وي پـه علم سحر كي وكلمة عليم صيغة المبالغة ځكه درويش په ترجمه كي فائق وواييه.

**پوه سه**: چي يأتوک جواب د امر دی یعنی ارسل غرض ددوی دا و كه موسى غالب سو پر ساحرانو نو موږ به دده تصديق وكړو او ايمان به پر راوړو، او كه ساحران غالب سوه پر موسى، نو موږ به پوه سو چي رسول نه دی بلكي ساحر دی، نو د ساحر كاذب په دعوى كي د رسالت به چال چلند ور سره وكړو يعني يا قتل يا حبس يا تعذيب، بغوي رحمه الله وايي چي ابن عباس رضي الله عنه او سدي او ابن اسحاق وايي چي فرعون چي د خدای جل جلاله قدرت د موسی عليه السلام په لكړه كي وليدی، نو يې وويل چي موږ پر موسی نه سو غالب كېدای مگر دده د قوم بني اسرائيلو په نفرو، نو يو څو ځوانان د بني اسرائيلو يې واستول يوې قريې ته چي عزما يې نوم وه چي هغو ته سحر وښيي، نو دوی و هغو ته ډېر سحر ور وښوودی، او فرعون د موسى عليه السلام د مقابلې د پاره يو وخت ټاكلی و، نو فرعون و هغو ته سړی ور واستاوه چي تاسي څه وكړه هغه سره د معلم راغله او فرعون ته يې وويل چي موږ دومره سحر زده كړی چي د ځمكي تولـه ساحران زموږ سره مقابله نه سي كولای مگر د مقابل طرف كار د اسمان له خوا څخه دی يعني رسول بالحق دی لانه لاطاقة لنا به چي د مقابل طرف څخه موسی عليه السلام و، بيا فرعون په خپل سلطنت كي نفر واستول چي هر ځای چي لوی ساحر وي حاضر يې كړئ، مقاتل رحمه الله وايي چي د فرعون عسكرو دواوويا (٧٢) ساحران راوستل چي دوه د قبط د قبيلې وه چي يو په هغو دوو كي رئيس و او نوم يې شمعون و او اوويا كسه د بني اسرائيلو څخه وه.

**درويش وايي**: چي د دوشپېته (٦٢) روايت د تفاسيرو په او تواريخو په كتابو كي ډېر مشهور دی ويالقبول جدير، او كعب وايي چي دوولس زره كسه وه او سدي وايي چي ديرش زره كسه په څو زره بالا وه، او عكرمه وايي چي اوويا زره كسه وه، محمد بن المنكدر وايي چي اتيا زره كسان وه، درويش وايي والله اعلم بعددهم.

وَجَآءَ السَّحَرَةُ فِرۡعَوۡنَ قَالُوٓاْ إِنَّ لَنَا لَأَجۡرًا إِن كُنَّا نَحۡنُ ٱلۡغَٰلِبِينَ

څه وخت چې ساحران سره د حاشرانو ددوی حاضر سوه فرعون ته دوی وویل دا جمله مستأنفه ده چې ساحران فرعون ته ورغله، نو یې څه ورته وویل.

ترجمه: ساحران چې فرعون ته ورغله نو یې ورته وویل چې موږ لره غتېه مزدوري پر تا واجب ده که موږ سوو غالبین پر موسی باندې.

**بوه سه:** چې نافع او ابن کثیر او حفص رحمهم الله "ان لنا لاجراً" په یوه همزه وایي چې جمله خبریه سي او معنی یې ایجاب الاجر سي، کانهم قالوا لابد من اجر، او تنکیر د "اجراً" د پاره د تعظیم دئ، او نور قاریان یې په دوو همزو وایي یعنې "أ إن لنا آه" نو معنا یې استفهام دی یعنې آیا موږ ته به لویه مزدوري راکړې که موږ غالب سوو پر موسی:

قَالَ نَعَمۡ وَإِنَّكُمۡ لَمِنَ ٱلۡمُقَرَّبِينَ

فرعون ورته وویل هو! اجر خو به وي او په تحقیق تاسي زما په دربار کې د نژدې کسانو څخه یاست.

**بوه سه:** چې ځواب د فرعون پر تقدیر د اخبار دا یې معنا ده چې اجر عظیم ستاسي خو پر ما واجب دی، او پر تقدیر د استفهام خو یې معنا ظاهره ده.

**درویش وایي:** چې که څه هم په ځواب کې د ساحرانو خو یوازې د نعم لفظ کافي ؤ د فرعون له خوا، لکن فرعون د ډېر باعثه کولو د ساحرانو دا پیغام ورزیات کړی "وانكم آه" حقیقت حال دادی چې فرعون په ډېره بېره کې د موسی د لاسه په دې سبب چې زما د زوال د سلطنت ونه ګرځي، نو له دې کبله یې کوشش هم ډېر کاوه او ساحرانو د انعام د "انکم آه" هم پېش کړی. لکن گفته اند که التقدیر یضحک علی التدبیر، قال الله تعالی وانا لننصر رسلنا. پس شک نیست که درجای مقابله حق وباطل حق غالب می آید وباطل مضحل میگردد.

قَالُواْ يَٰمُوسَىٰٓ إِمَّآ أَن تُلۡقِيَ وَإِمَّآ أَن نَّكُونَ نَحۡنُ ٱلۡمُلۡقِينَ

ساحرانو وویل یا موسی یا به ته لکړه اچوې پر مځکه او یا به موږ خپلې لکړې او رسۍ اچوو پر مځکه باندې.

**یوه سه**: چي سبب د تخير د موسیٰ علیه السلام اظهار د جلادة او قوة خپل ؤ یعني زمونږ باک نه کیږي که ستا القا دمخه سي او که زمونږ.

قَالَ اَلْقُوْا

موسیٰ علیه السلام ورته وویل چي تاسي (القا) اچول وکړي ددې لپاره موسیٰ علیه السلام دا ورته وویل چي دوی دا ده وه په خپل غلبه سره.

**سوال**: سحر خو گناه کبیره ده نو موسیٰ علیه السلام دوی څرنگه امر کړه په القا؟

**ځواب**: دا اجازه او امر د سحر نه دی، ولي چي دوی خو سحر کاوه البته صرف خبره یې په تقدیم او تأخیر کي ده نو دوی ته یې وویل القوا.

فَلَمَّآ اَلْقَوْا سَحَرُوْٓا اَعْيُنَ النَّاسِ

چي ساحرانو خپلي لکړي او رسۍ پر مخکه واچولې دوی سحر وکړی پر سترگو د خلگو، یعني سترگي یې د خلگو په واړولې له ادارک څخه د حقیقت د لکړو او د رسۍ، بلکې د خلگو په سترگو داسي معلومېدلې چي دا لکړي او دا رسۍ ددوی افعي ماران دي لکه غرونه په یوه میل مځکه کي او دلته چي شبله هغه ددوی د جعلي مارانو څخه ډک سوه.

وَاسْتَرْهَبُوْهُمْ وَجَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ

او خلگ یې وبېرول او راتگ یې وکړی په لوی سحر سره.

وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اَنْ اَلْقِ عَصَاكَ

مونږ وحي وکړې وموسیٰ علیه السلام ته هغه وخت چي په زړه کي د موسیٰ بېره پیدا سوه په دې معنی چي ژه که لکړه ورغورځوم زما لکړه به هم یو افعي مار سي، نو حق او باطل به څرنگه سره جلا سي په بل ځای کي د قرآن مبارک راغلي دي" الق ما في یمینک تلقف ما صنعوا انما صنعوا کید ساحر ولا یفلح الساحر حیث اتی" نو بیا ره موسیٰ خپله لکړه ومیدان ته ور وغورځول.

فَاِذَا هِيَ تَلْقَفُ مَا يَاْفِكُوْنَ

نو ناگاه لکړه د موسیٰ لوی مار سو چي ځغاستی، ابن زید وایې چي اجتماع

د دوی په اسکندریه کې وه، او لکۍ د مار تر بڅېرة وه آخوا ته تېره سوه خوله یې وازه کړه اتیا ګزه.

فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ

چې د لکړې د موسی ﷺ چې دونه عظیم مار څنډې جوړ سو په خوله نه نیستي او تیر یې هغه ماران چې په دروا غوجوړ سوی وه یعني په سحر یعنې هغه لکړې او رسۍ چې د خلګو په سترګو کې ماران ایسېدله.

**پوه سه**: چې کلمه د "ما" موصوله ده او عائد یې محذوف دی ای ماکانوا یعملونه، او یا مصدریه دی مصدر یې په معنی د مفعول دی، راوي وايي چې وروسته لکړې هغه سحر ساخته ماران وخوړل، نو پر حاضرينو یې مخ راواړوی خلګو په ډېر ازدحام سره میدان کړه حتی چې ډېر کسان د ازدحام له سببه هلاک سوه بیا ره موسی ﷺ ورحمله کړه فصارت عصی کما کانت، نو سحر ګرانو سره وویل که دا سحر وای نو باید زموږ لکړې او رسۍ پر ځای پاته وای که څه هم چشم بندي د خلګو د منځه تللې وای اوس چې هغه ټولې نیست او نابود سوې نو معلومه سوه چې دا کار په قدرت عظیمه د خدای وسو او دا ثابته سوه چې موسٰی لکه چې وايي رسول د خدای ﷻ دی.

فَغُلِبُوا هُنَالِكَ وَانْقَلَبُوا صَاغِرِينَ ۝ وَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سَاجِدِينَ

نو حق ثابت سو او باطل سوه هغه څه چې ساحرانو یې په سحر سره عمل کړی وُ، نو فرعون او قوم دده مغلوبه سوه په دې مقابله کې د موسی ﷺ او وګرځېدی خپل ښار ته ذلیل او خوار.

**پوښتنه**: چې القی مجهوله صیغه ده، نو معلومه صیغه یې ولې نه راوړه؟

**ځواب**: بعض وايي چې اظهار الحق دوی مجبوره کړه وسجدې ته او بې اختیاره یې سجده وکړه، او بعض مفسرین وايي چې خدای ﷻ ودوی ته الهام وکړی چې سجده وکړئ، نو دوی سجده وکړه.

قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا بِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ۝ رَبِّ مُوسَىٰ وَهَٰرُونَ ۝

نو سحره وو وويل چي مونږ ايمان راوړى دى پر رب العالمين چي رب د موسىٰ او هارون دى.

**يوه سه**: چي رب ثاني بدل دى د رب اول څخه او وجه ددې ابدال داده چي څوک توهم ونه کړي چي مراد له رب العالمين څخه فرعون دى چي هغه خو هم دعوه د ربوبيت کړې وه، ابن عباس رضي الله عنه وايي چي سحرګرانو چي ايمان راوړى شپږ لکه خلګو د بني اسرائيلو هم اعلان د متابعت د موسى عليه السلام وکړى.

قَالَ فِرْعَوْنُ ءَامَنتُم بِهِۦ

وويل فرعون و سحرګرانو ته چي تاسي ايمان راوړى که په يوه همزه آمنتم وي چي جمله خبريه سي، او که په دوو همزو وي "اامنتم" نو جمله استفهاميه ده، والمعنى آيا تاسي ايمان راوړى، او دا دواړه قرائتنه متواتره دي او ضمير د به راجع يا و لفظ الله ته دى او يا و موسى ته دى.

قَبْلَ أَنْ ءَاذَنَ لَكُمْ ۖ

دمخه تر دې چي ما اجازه درکولاى تاسي ته يعني په حيث د مشر تو ب زما، بايد تاسي زما سره صلاح په ايمان راوړو کي کړې واى.

**درويش وايي**: چي فرعون چي په دومره لويه اجتماع کي خجل سو او پوهېدى چي قبط به هم ايمان راوړي، نو د خجالت د رفع د پاره يې و سحره وو ته په حضور د قوم داسي وويل.

إِنَّ هَٰذَا لَمَكْرٌ مَّكَرْتُمُوهُ فِى ٱلْمَدِينَةِ لِتُخْرِجُوا۟ مِنْهَآ أَهْلَهَا ۖ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ۝

په تحقيق دا يو چم و، ستاسي او د ده په مشوره تاسي دا چم په ښار کي د مصر وکړى، چي تاسي وباسئ له دې ښار څخه اهل د دې ښار چي قبطيان دي، او ښار به و تاسي ساحرانو او بني اسرائيلو ته پاته سي، ژر دى چي تاسي به پوه سئ يعني زه په تاسي څه کوم دا يو اجمالي پېش رو د فرعون و ساحرانو ته، او په تفصيل کي فرعون دوى ته داسي وويل.

لَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ

هر آینه زه به درپرې کړم لاسونه ستاسي او پښې ستاسي پر مخالف طرف، یعني راسته لاس او چپه پښه.

**پوښتنه:** په "من خلاف" پرېکولو کي حکمت څه دی؟.

**ځواب:** د فقهي شريفي د سرقه په بحث کي وايي كه يو چا غلا وکړه اول دې راسته لاس ور پرېکړي. نو كه يې عبرت واخستی خو ښه، او كه يې بيا غلا وکړه چپه پښه دې ور پرېکړي حکمت يې دا بيان کړی دی چي که د سړي لاس او پښه دواړه پر يوه طرف پرېسي بيا پر لکړه هم نه سي تلای، او که يې جهت مخالف وُ بيا پر لکړه تلای سي، نو د فرعون هم شايد دا مطلب و، چي من خلاف لاسونه او پښي پرې سي، نو كه له متابعت څخه د موسی يې لاس واخستی او مو پرېښوله هغه به پر لکړه تګ کولای سي، او كه مو عبرت نه واخستی. نو بيا فرعون ورته وويل.

ثُمَّ لَأُصَلِّبَنَّكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿۱۲۴﴾

وبما قلنا ظهر وجه د ايراد د ثم په صلب کي فافهم. وروسته به مو زه په دار کړم ژوندي او په نسو کي به مو نېزه وهم تر څو چي مړه کېږئ كما هو معنی الصلب في كتب اللغة. دا ظلم چي فرعون وکړی نو دا سي يې وکړه چي پر غاړه د نهر مصر پر درختو د خرما يې دوی په دار کړه وهو اول من سن الصلب. نو چونكه دا يو سخت عذاب وُ نو ځکه شريعت پاک د قطاع الطريق چي لوی مجرمان دي د پاره دغه صلب جزا ټاکلې ده. فرعون دوی ته وويل چي دا به ستاسي رسوايي وي او نورو ته به عبرت وي.

**درويش وايي:** چي چونکه په زړو کي د مؤمنانو د سحره فرعون قوي ځای نيولی وُ، نو ځکه يې داسي ورته وويل.

قَالُوا إِنَّا إِلَىٰ رَبِّنَا مُنقَلِبُونَ ﴿۱۲۵﴾

موږ چي په هر ډول مړه سو و خدای ﷻ ته راجع کېږو. خدای پاک به موږ ته ثوابونه د قتل فظيع ستا راکړي. قال المولوي المعنوي في مواضع شتى من مثنويه

جا نها بسته اند ر آب و گل — چون رهند از آب و گلها شاد دل
د رهوا يي عشق حق ر قصان شوند — همچو قرص بدربی نقصان شوند
چون نقاب تن برفت از روی روح — از لقای دوست دارد صد فتوح
میزند جان د رجها ن آب گو ن — نعر ه یالیت قو ی یعلمون

وَمَا تَنْقِمُ مِنَّا إِلَّا أَنْ آمَنَّا بِآيَاتِ رَبِّنَا لَمَّا جَاءَتْنَا

او ته اې فرعونه مبغوض او منکر نه بولې زموږ څخه مګر دا فعل چې موږ ایمان په دلائلو سره د قدرت د رب زموږ چې موږ ته راغلې او موږ ولیدلې پر لاس د موسی ﷺ نو موږ ایمان راوړی یعنون لا اله الا الله وموسیٰ رسول الله. او دا فعل خو سبب د نفرت نه دی بلکې په عوض د عذاب کي باید تا موږ ته احسنتم ویلای وای او ته هم زموږ پر لار روان سوی وای.

**درویش وایي:** چي ساحران د فرعون چي هر څو وه د زړه له کومې یې ایمان راوړی ؤ. او د فرعون د سخت عذاب سره مخامخ سوه او پر ځان بېرېدله چي نباید د عذاب د فرعون له کبله بیرته ایمان له لاسه ورنه کړو. نو یې خدای ﷻ ته تضرع او خواست او زاري د صبر شروع کړې او د ثبات پر ایمان خدا داده یې داسي ورویل.

رَبَّنَا أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَتَوَفَّنَا مُسْلِمِينَ

اې زموږ خدایه پر موږ توی کړې لکه اوبه چې پر سرې توی کړې یعنې لوی په ډکه پیمانه موږ ته صبر راکړې پر عذاب موعوده د فرعون، چې خدای ناخواسته دا عذاب مفضي و ارتداد ته زموږ نه وسي. او موږ وفات کړې ثابتین پر دین اسلام. سعدي رحمه الله درباب تضرع الی الله وقت الابتلاء چنین گفته

چون فرود آید بلابی دافعی — جز تضرع نبود دیگر شافعی

**درویش وایي:** چې معرفت الهي او عشق الهي چي سحره وو ته حاصل سو. لکن مصرع که عشق آسان نمود اول ولي افتاد مشکلها. حافظ شیرازي رحمه الله.

وَقَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ أَتَذَرُ مُوسَىٰ وَقَوْمَهُ لِيُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ

او وويل د فرعون د قوم اشرافو آيا ته پرېږدې (استفهام انکاري دی) موسى او قوم دده ددې د پاره چې فساد وکړي په مځکه کې (يعني ارض مصر) يعني خلګو ته دعوت ورکوي ستا و مخالفت ته يعني ستا ربوبيت نه مني.

**يوه سه**: چې مراد له قوم څخه د موسى هغه کسان دي چې بني اسرائيل وه او پر موسى عليه السلام يې ايمان راوړی ؤ که څه هم دوی کار صلاح لکن ملأ فرعون له جهته د صلابت په ربوبيت کې د فرعون کارکردګي د موسى عليه السلام او قوم چې عين صلاح وه په نامه د فساد نامزده کړه.

وَيَذَرَكَ وَآلِهَتَكَ

چې تا پرېږدي يعني ستا عبادت، او ستا معبودات فلا يعبدون لک ولالهها "وليذرک" عطف دی پر "يفسدوا" باندي.

**درويش وايي**: چې ددې آيت په تفسير کې اختلاف دی، بعض مفسران وايي چې فرعون يوه غوا درلوده ډېره ښائسته وه د هغې عبادت يې کاوه، نو قوم فرعون چې به يوه ښه غوا پيدا کړه نو د هغې عبادت به يې کاوه، وهذا القول وان كان مروياً عن ابن عباس رضي الله عنه لكن روايته عنه فيه ضعف في الاسناد فهو غير مرضي لان فرعون مع دعواه انا ربكم الاعلى كي يعقل ان يعبد بقرة ويأمر قومه بعبادة البقرات، او بعض مفسران وايي چې د فرعون په غاړه صليب ؤ د هغه عبادت يې کاوه، وهذا القول ايضاً ضعيف، او صحيح تفسير هغه دی چې له سدي رحمه الله څخه روايت دی او برسوي او الوسي هم دغه تفسير صحيح بللی دی. چې فرعون خپل د شکل ډېر بتان جوړ کړل او قوم ته يې وويل چې تاسو ددغو بتانو عبادت کوئ ولې چې وهر سړي ته زما د شخص عبادت ګران دی. نو عمومي خلګ چې ددغو بتانو عبادت کوئ نو لکه زما عبادت چې کوي. نو له "الهتک" څخه دغه بتان مراد دي نو ځکه فرعون به ويل انا ربكم الاعلى يعني دغه بتان خو ستاسي آلهة او معبودات دي في الوقت وانا ربكم الاعلى والله اعلم.

قَالَ سَنُقَتِّلُ اَبْنَآءَهُمْ وَنَسْتَحْيٖ نِسَآءَهُمْ وَ اِنَّا فَوْقَهُمْ قٰهِرُوْنَ

فرعون وویل وخپلو اشرافو ته د قوم چي مونږ به وژنو زامن یعني نوی نسل د بني اسرائیلو او ژوندي به پرېږدو ښځینه عیال ددوی د پاره د خدمت زمونږ.

**پوه سه:** چي تسمیه په نسا سره په اعتبار د مایؤل الیه ده کما في قوله تعالی في سورة یوسف "اني اراني في المنام اني اعصر خمراً" ای عنباً یؤل الی الخمر یعني کما فعلنا ببني اسرائیل من قبل، او په تحقیق مونږ پردوی غالب او لاس لوړي یو . او بني اسرائیل لکه ښخوا مغلوب دي، ابن عباس رضی الله عنه وایي چي فرعون نوزائده زامن د بني اسرائیلو وژله په سبب ددې چي کاهنانو ورته ویلي وه چي په بني اسرائیلو کي یو هلک زېږي چي ستا د سلطنت د زوال سبب به هغه ګرځي، هغه وخت چي فرعون خوب لیدلی ؤ چي پر مصر یو اور راوګرځي چي قبط ټوله وسوځي او بني اسرائیل ژوندي پاته سي، نو اوس فرعون وخپل قوم ته وویل چي بیا از سرنو قتل الابنا راګرځوم تاچي بني اسرائیل په دې پوه سي چي مونږ پر خپل قهر او غلبه پاته یو او دا توهم څوک ونه کړي چي موسی هغه مولود دی چي سبب زما د زوال د مملکت دي وګرځي لکه کاهنانو چي ماته زما د خوب په اثر کي ویلي وه، نو بیا یې قتل عام د ابنا د بني اسرائیلو از سرنو شروع کړی، نو بني اسرائیلو و موسی علیه السلام ته داسي شکایت کوی له کار او عذابه د فرعون.

قَالَ مُوْسٰی لِقَوْمِهِ اسْتَعِیْنُوْا بِاللّٰهِ وَاصْبِرُوْا

موسی علیه السلام وخپل قوم ته وویل چي مرسته وغواړئ له خدای جل جلاله څخه په تضرع او عاجزۍ سره او دعا او توکل پر هغه باندي وکړئ. او صبر وکړئ پر هغه ازار چي تاسي ته رسېږي د فرعون او د قوم له خوا څخه، ولي چي دا ټوله په اراده د خدای جل جلاله دي او ستاسي د پاره امتحان دی.

اِنَّ الْاَرْضَ لِلّٰهِ یُوْرِثُهَا مَنْ یَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِیْنَ

په تحقیق ځمکه د خدای جل جلاله ده په میراث یعني په تصرف او ملکیت یې هغه چاته ورکوي چي د خدای جل جلاله خوښه یعني کافراً کان او مؤمناً لا اعتراض علیه تعالی لاحد کما قال في موضع آخر لا یسئل عما یفعل وهم یسئلون، او

جزا د حسناتو او ابدي نېک بختي او جنت وغيرها د پاره د هغو کسانو دی چي
خپل حيات فاني په ببره کي د خدای پاک تېر کړی وي چي هغه ببره سبب دی د
امتثال د اوامرو د خدای ﷻ او پرهېز له منهياتو څخه. نو بايد مؤمن صبر وکړي
پر مصائبو د دنيا په طلب د اجرت او ثواب باقي د دار الآخرة.

**فائده**: جزا ته د فعل عقبى او عاقبت وايي له دې کبله پر عقب د عمل راځي
لکن عقبى او عاقبت په ثواب او ښه جزا د حسناتو سره خاص دی او دغه رنګه عقب
مختص بالثواب دی او عقوبت او عاقبت او عقاب خاص په عذاب او سوء جزا د
سيئاتو پوري خاص دی فتأمل في هذه الآيات القرآنية تدرک تلک الخصوصية.
قال الله تعالى اولئک ای المؤمنين لهم عقبى الدار ونعم عقبى الدار ايضاً في
المؤمنين وخير عقباً في ثواب المؤمنين فحق عقاب في الكافرين شديد العقاب
ای للكافرين وان عاقبتم فعاقبوا بمثل ماعوقبتم في اجزية السيئات. احتمال سته
چي ان الارض لله الى اخيره وعده د خدای دي د اسرائيلو سره چي مځکه د مصر به
تاسي ته ميراث ورروسته تر هلاک د فرعون و تاسي ته به خدای ﷻ درکړي کومک
او ظفر پر فرعون باندي وقد کان كذالک اذ لاخلف في وعده.

**قَالُوٓا۟ أُوذِينَا مِن قَبْلِ أَن تَأْتِيَنَا وَمِنۢ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا ۚ**

بني اسرائيلو موسى ﷺ ته وويل چي موږ ته ازار رسېدلی و د فرعون له
خوا يعني بقتل الابناء دمخه تر دې چي موږ ته راتلې په نبوت او رسالت سره. او
وروسته تر دې چي ته موږ ته په رسالت راغلې باعادة فرعون قتل الابناء علينا وهو
المعنى الاظهر من سياق الآيات. او بعض مفسرين وايي چي له دې آيت څخه مراد
دادی چي فرعون مسخر کړي وه بني اسرائيل په سختو کارو سره تر نصف نهار
پوري بلا اجر او ښځي به يې وهلي له مځکي څخه د فرعون او چي موسى راغلی
تو له ورځ به يې سخت کارونه په کول او د خپلو مځکو ښځي به يې په مبتلي.

**قَالَ عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يُهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ ۝**

وويل موسى ﷺ وبني اسرائيلو ته چي شکايت د ازار د فرعون يې
وموسى ته وکړی بقولهم ومن بعد ماجئتنا چي شايد ستاسي دښمن به هلاک

کړي يعني فرعون او تاسي ته به خلافت د مځکي د مصر درکړي او خدای ﷻ به وګوري چي تاسي څرنګه عمل کوئ. يعني چي د خدای ﷻ شکر وباسئ او د خدای طاعت کوئ او ناشکري او معصيت کوئ.

**پوه سه**: چي خدای پاک په دې آيت وعده وکړه د بني اسرائيلو سره په نصر او بري پر فرعون، او اشاره يې ودې ته هم وکړه چي پر تاسي شکر واجب دی چي دا نعمت د خلافت د مصر تاسي ته وسپاري لکه په مخنه آيت يعني "واصبروا" سره اشاره يې و واجب والي ته د صبر کړې وه عند ابتلاء بالشر، او خدای ﷻ خپله وعده پر ځای کړه چي فرعون يې غرق کړی او خلافت د مصر يې ودوی ته وسپاری لکن دوی په شکر کي ددې نعمت ناکامه سوه هين عبدوا العجل.

تاريخ خبري کوي او وايي چي څه وخت چي ساحران د فرعون مغلوبه سوه او رسالت د موسی عليه السلام واوج ته د قبول ورسېدی او لکه لمر په اسمان کي درخشان سو، نو د بني اسرائيلو شپږ لکو کسانو ايمان پر راوړی او وعده د تقوی له شرک څخه يې د موسی عليه السلام سره وکړه، نو خدای ﷻ ددوی په باره کي په مخکني آيت کي "والعاقبة للمتقين" وعده ورکړه.

**فائده**: له دې آيتو څخه دا معلومه سوه چي استعانت بالله او صبر پر اذی له باب د تقوی دی، حافظ شيرازي وايي.

آنکه پيرانه سرم صحبت يوسف بنواخت
اجر صبر بيست که کلبه احزان کردم

او د فرعون د لوی جاه و جلال سره سره د هلاک او غرق څخه بني اسرائيلو لوی پند او عبرت بايد اخستی وای او په خلاف کي د دين سماوي د موسی عليه السلام يې بايد هيڅ وخت قدم نه وای پورته کړی لکن دوی داغسي ونه کړه، سعدي رحمه الله

پند گير از مصائب ديگران تانگيرند د يگران زتو پند
نرود مرغ سوی دانه فراز چو ديگر مرغ بيند اندر بند

**وَلَقَدْ اَخَذْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ بِالسِّنِيْنَ**

لام موطئه د قسم محذوف دی ای والله لقد اخذنا او په قسم موږ آل د فرعون

يعني قوم د فرعون او اهل دين دده لان آل الرجل هو خاصة يعني پر دوی مسلط كړه قحط بعد قحط كما يدل عليه لفظ سنين بصيغة الجمع.

**پوه سه**: چي سنين جمع د سنة ده چي مطلق كال ته وايي لكن په غلبه د استعمال د كاختي كال ته وايي لكثرة ذكره في افواه الناس چنانچه يو ويل ته وايي د فلاني كاختي كال دي په ياد دي مثلاً، او تاريخ گرځېدلي دي خلګ وايي خلګ وايي چي زه د لوی كاختي په كال زيږېدلی يم مثلاً حتى چي سنة لكه نوم د كاختي دی لكه لفظ د النجم غلب على الثريا يعني پېروني.

وَنَقْصٍ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ﴿۱۳۰﴾

او په كم والي سره د ډول ډول مېوو كما يدل عليه لفظ الجمع په سبب د ډېرو آفتو لكه پېوخته بارانونه. قتاده رحمه الله وايي چي لوی تاثير د كاختي پر اهل بوادي وو دی او لوی تاثير د نقص الثمرات پر اهل د ښارو او پر اهل د هغو قريو چي ثمرات پكښي ډېر وي.

**پوه سه**: چي اصل د "يذكرون" يتذكرون" و تا يې په ذال بدله كړه او په ذال كي يې مدغمه كړه يعني چي شايد دوی به پند واخلي او فكر به ووهي چي دا مذكوره آفات په سبب د كفر ددوی او د گناهو ددوی او زړونه به يې نرم سي. او رجوع و خدای جل جلاله ته وكړي او گناهونه به پرېږدي.

فَاِذَا جَآءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ قَالُوْا لَنَا هٰذِهٖ ۚ

پس هغه وخت چي را به غله يعني وبه رسېدله ودوی ته يو ښه خصلت لكه فراخي د رزق او عافيت، نو دوی به وويل چي موږ لره دغه حسنه يعني موږ يې مستحق چي عادت زموږ دادی چي ارزاق به مو فراخه وي يعني دا يې نه ويل چي دا احسان دی د خدای جل جلاله تاچي شكر يې ويلای پر هغو د رب جل جلاله.

وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّطَّيَّرُوْا بِمُوْسٰى وَمَنْ مَّعَهٗ ؕ

او كه به دوی ته ورسېدی يو خصلت سيئه يعني بد لكه كاختي يا امراض وغيره دوی به بد فالي گڼله په موسی ومن معه يعني المؤمنين بموسى عليه السلام، او

دوی به ویله چې موسی ومن معه چې پیدا سوه موږ په بلا وو مبتلاً سوو یعني وخپلو بدو ته یې نسبت نه کاوه، سعید بن الجبیر او محمد بن المنکدر وایي چې بادشاهي د فرعون څلور سوه کاله وه او ټول ژوند یې شپږ سوه او شل کاله و، او په زمانه کې د سلطنت ده هیڅ مکروه رنځ وغیره نه ولیدلی، او نه یې تبه، لوږه لیدلې وه ولي که یې دا مکروهات لیدلي وای د خدایي دعوه به یې نه کولای.

**درویش وایي**: چې څه وخت چې موسی ﷺ مبعوث سو و فرعون او قوم ته دده او ده یې له ایمان راوړلو څخه انکار وکړی او خدای ﷻ عذاب د سنین او نقص من الاموال پر مسلط کړی د پاره ددې چې دوی به شاید فکر وکړي چې دا دومره وخت دا آفات نه وه چې موسی راغلی او موږ انکار وکړی، نو ددې آفاتو مخ سو، نو سبب به یې زموږ کفر او عصیان دی، نو به ایمان راوړي لکن دوی هغسې ونه کړه بلکې بالعکس یې تسلسل د آفاتو د موسی ﷺ او مؤمنانو شوم وباله دا ددوی غایت حماقت و او اغراق ددوی په دریاب کې د غباوت او قساوت قلبي و، ولي چې دوی ته تر مشاهده د معجزات باهره وو د موسی ﷺ په دې نه سوه پوه چې د حسناتو تسلسل پر موږ صرف او صرف تفضل او احسان الهي وو او په عین حال کې زموږ د شکر امتحان و، لکن دوی هغسې ونه کړه او دعوت ته د موسی ﷺ او معجزاتو باهره وو ته دده یې په نظر د سحر وکتل او وعصیان او کفر ته یې دوام ورکړی. اخذتهم السنة وغیرها من الآفات لشوم اعمالهم عقوبة، نو دوی ته څکه خدای پاک ددوی د تطیر بموسی داسې وویل.

﴿أَلَآ إِنَّمَا طَٰٓئِرُهُمْ عِندَ ٱللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾

آګاه اوسه چې طائر او شوم ددوی عندالله دی چې کفر او عصیان دی لکن ډېر خلګ په خپل شوم نه پوهېږي چې خپل شومي په بل پورې تړي کما قال قوم فرعون.

**فائده سنیه**: في لفظ الطائر والطیرة، پوه سه! چې د طیر معنی بدفالي ده والاسم المشتق منه الطیرة وهو الفال الردي واصلي ذالک ان العرب في الجاهلیة یو کار یا سفر چې به یې کاوه په مرغه یې فال کاوه، نو یو سړی چې به یو مقصد ته تلی او یو مرغه به یې خپل ولاړ کړی، نو هغه مرغه پر راسته طرف دده تېر

سو نو ده به مبارک او نېک فال وباله یعني دا کار کېږي او زما مقصد تر سره کېږي، دې ته دوی سانح وایه. او که به مرغه پر چپه (کیڼ) طرف دده تېر سو دوی به بد فالي په کوله او دا به ویل چي دا کار نه کېږي. او دې ته دوی بارح ویل نو دی بیرته کور ته راتلی. لکن دا لفظ که څه هم په مرغه کي مستعمل سو لکن وروسته عام سو و هر شي ته چي نېک فالي او بد فالي په کېږي که څه هم مرغه نه وي. لکن علیه الصلوة والسلام طیره باطله بللې ده او داسي یې ویلي دي "الطیرة شرک" درې واره یې دا خبره وکړه.

**پوه سه:** چي شرک یې په دې اعتبار وبلله چي ددوی دا عقیده وه چي طیره ودوی ته جلب د نفع او دفع د ضرر کوي. نو چي دوی په مقتضی د طیره عمل وکړی. نو خدای پاک ته یې شریک پیدا کړی. وفي المحیط اذا صاحت الحمامة فقال رجل یمیت المریض الذي في الدار المذکورة کفر القائل عند بعض المشائخ. واذا اخرج الرجل من داره الی السفر فصاح العقعق فرجع من سفره کفر ایضاً عند بعض الفقهاً، په حدیث صحیح کي راغلي دي "الشوم في المرئة والفرس والدار، شوم المرئة سؤخلقها او غلاً مهرها وقیل ان لاتلد چي وچه وي، وشوم الفرس عدم انقیاده لصاحبها. وقیل ان لایغزی علیه وشوم الدار ضیقها او سؤ جارها" عکرمه وایي چي په نېز د ابن عباس ﷺ کارګه تېرېدی او د کاغ کاغ نارې یې وهلې، نو سړی دلته ناست ؤ هغه وویل خیر خیر. یعني بد فالي یې په وکړه ابن عباس ﷺ ورته وویل لاخیر ولا شر.

**درویش وایي:** چي فقهاً تو له اجماعاً لاباٌس ان یتفائل بالفال الحسن، ویدل علیه ما روی باٌسانید کثیرة ان رسول الله ﷺ یحب الفال ویکره الطیرة" فال حسن دادی چي یوه کلمه حسنه له یو چا څخه واوري مثلاً یو مسلمان په طلب کي د یو شي ؤ بل مسلمان ورته وویل یاواجد ویا نجیح ده نېک فالي په وکړه چي خدای ﷻ به دا کر وکړي چي زه یې په طلب کي یم، یا یو مسلمان پر یو خوا په سفر ځي یو بل مسلمان ورته ووایي یا راشد یعني یا واجد دی په خوشاله سي او نېک فالي په وکړي. او یا یو سړی مریض وي بل سړی ورته ووایي یا سالم دی

نېک فالي په وکړي فالتفائل بالامور المشروعة مشروع والطيرة منهي عنها، په حديث کې د بخاري شريف راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام په يوه استقا کې قلب الردا وکړه وذکر في الهداية انه کان تفاولاً من حضرت النبوة يعني قلب علينا قحوط المطر کما قلبنا رداءنا وکيفية ذالک القلب مذکور في الفقه وشروح احاديث البخاري فليراجع.

**د تاريخ واقعې:** په تاريخ کې راغلي دي چې د بعض امرا المسلمين په زمانه کې به د شپې له خوا ستورې ډېر لوېدل، امير وېرېدی چې زما د مملکت د زوال يا د تفرق الرعايا خو به دليل نه وي، نو يې منجمين او علما راوغوښتل او ورته وه يې ويل چې دد ې تساقط النجوم په کثرة تر عادت څه وايئست، نو هغو هيڅ جواب ورنه کړی چې د امير دي زړه په پوره سي، نو جميل چې يو شاعر و داسې يې وويل:

هذی النجوم تساقطت ............... لرجوم اعدا الامير

نو امير نېک فالي وکړه په دې شعر سره او زړه يې مطمئن سو او شاعر ته يې ښه انعام ورکړی.

وَقَالُوا مَهْمَا تَأْتِنَا بِهِ مِنْ آيَةٍ لِتَسْحَرَنَا بِهَا فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ

وويل فرعون او قوم دده و موسی عليه السلام ته هر شی چې ته راتګ په هغه سره وکړې د يوې معجزې او د علامې څخه پر صدق ستا په دعوی کې د نبوت چې ته سحر وکړې په هغه يعني پر سترګو زموږ او اشتباه وکړې پر موږ او موږ واړوې له دينه زموږ، نو نه يو موږ تا لره مصدقين په دعوی کې د رسالت.

**پوه سه:** چې ضمير د مذکر و "مهما" ته راجع کول يعني به او بيا ضمير د مونث ورته راجع کول يعني بها په اعتبار د لفظ مهما چې مفرد مذکر دی او په اعتبار د معنی د مهما چې مراد ځني آيات دی چې جمع مونث ده.

**سوال:** دوی څرنګه و ما آتی به موسی عليه السلام ته آيت ووايه او سره ددې آيت خو معجزې او دليل ته د صدق وايي او دوی خو هغه ما اتی به موسی دليل او معجزه نه بلل؟

**خواب:** تسمیه په آیت سره پر زعم د موسی علیه السلام وه چي آیت یې بللی او یا یې استهزاءً ایت ورته وویل لا لاعتقادهم ذالک، ولذالک قالو التسحرنابها. نو موسی علیه السلام چي دوی دا دردناکه خبره ورته وکړه دوی ته یې ښېرا وکړه.

فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ وَالضَّفَادِعَ وَالدَّمَ آيَاتٍ مُّفَصَّلَاتٍ

نو مونږ راواستوی پر دوی طوفان یعني ډېر باران چي سرې به کور ناست و اوبه به یې حلق ته رسېدلې او ملخان چي ددوی کښتونه به یې خوړله او شپوږې چي ددوی د غنمو په دانو کي به پیدا کېدلې او غنم دانې به یې خوړلې او خالي پوستکي په پاته کېدل، او هر طعام او اوبه چي په دوی خوړل او یا به یې اوبه څیښلې په هغو کي به چنګوښې وې، حتی چي هره ګوله د ښوروا وغیره چي به دوی پورته کړه پر هغه به چونګوښه ناسته وه، او د لوښي سربسته اوبه چي به دوی څیښلې چونګوښه به پکښې وه، او هري اوبه چي به دوی څیښلې سرې وینې به وې او دا آیات مفصلات وه.

**یوه سه:** چي لفظ د آیات مفصلات حال دی له مذکوره شیانو څخه او د مفصلات معنی بعض مفسران داسي کوي لایخفی علی العاقل انها من عندالله ددوی د تعذیب د پاره، او بعض وایي چي مذکوره شیان یو له بله څخه په جلا جلاوختو کي پر دوی راتله چي د هرو دوو تر منځ به یوه میاشت او بعض وایي چي امتداد د هر عذاب خو به یې یوه هفته وه او فصل په منځ کي د دوو آیتو به یوه میاشت و، تفصیل الآیتین (۱) مهما اسم شرط دی دوو فعلو ته جزم ورکوي کقولک ومهما تفعل افعل، هر کار چي ته یې کوې زه یې کولای سم (۲) طوفان هر ډېر باران او سېل ته وایي چي کښتو او کورونه د خلګو خرابوي (۳) د جراد ترجمه حسیني په ملخ پرنده کړې ده قالوا لیس في الحیوة اکثر فساداً د اقوتو د انسانانو تر ملخانو.

**مسئله:** اجمع المسلمون علی اباحة اکله قال الآئمة یحل اکله سواء کان حتف انفه یعني په خپله او یا یې څوک حلال کړي یا یې مجوسي ښکار کړي یا مسلمان. والدلیل علی عموم الحدیث الصحیح قال رسول الله ﷺ احلت لنا

دمان الكبد والطحال وميتتان السمك والجراد (۴) ځيني لکه قبلاً تېره سوه په شپوړي د غنمو چي سبوس يې هم بولي، او تفسير حسيني په ملخ پياده ترجمه کړي ده چي په پښتو يې تمبل ملخ بولي او کرک بازان يې کرکانو ته ورکوي، او ځيني مفسران وايي چي لوی منګوران دي چي قردان يې هم بولي جمع د قرد. دا منګوړان آفت ؤ چي ددوی پر اوښانو به مسلط ؤ، ضرب المثل اسمع من قراد فلانی ښه اوري تر منګوړ، عرب وايي چي منګوړ د اوښ د پښو ترپې د يوې ورځي له منزله څخه اوري، نو لاري ته په حرکت سي چي قافله د اوښانو راسي پوري ومنبلي يعني د ښځو اوښو په غولانځو پوري، او حسن بصري رحمه الله دا لفظ قمل وايي بفتح القاف وسكون الميم چي مراد دغه شپوږي دي چي په بدن او وېښتانو کي د انسانانو پيدا کېږي چي صفايي د بدن او وېښتانو نه کوي.

**تجربه غريبه**: ښځه چي حامله وي او څوک دا غواړي چي دا معلومه کړي چي حمل به نر وي او که به ښځه، نو يوه شپږه راواخله د لوی يا د کوچني په لاس کي يې کښېږده او حامله ښځه دي په زوره شيدې پر ولوشي، نو که شپږه ژوندی تر شيدو ووتل، نو حمل يې ښځينه دی او که نه ووتل حمل يې نر دی، والله اعلم وما جربته انا (۵) ضفادع جمع د ضفدع ده علی وزن خنصر وهو الاشهر الصحيح من حيث اللغة، او بعض خلګ چي يې په فتحه د دال وايي مثل درهم خليل پر هغه انکار کړی دی.

**درويش وايي**: چي د چونګوښي ډېر اقسام دي ابن سيناً وايي که يو کال تر عادت بالا چونګوښي پيدا سي تر هغه وروسته وبا نازلېږي.

**سوال**: دا خبره اخبار بالغيب نه دی که څه رنګه؟

**ځواب**: دا خبره د ابن سينا د تجربې له کبله ده لکه ډاکټران چي وايي چي دا شربت يا ګولی د فلاني مرض دوا ده، وفي الوقعات المحمودية ان روية الضفدع في المنام نقصان خفي في ماله (۶) د طوفان ترجمه دمخه موږ ذکر کړه لکن بعض اصحاب التواريخ الاسلامية وايي چي پر قوم د فرعون اته ورځي مسلسل باران وورېدی سره د ظلمة شديدة چي هيڅ څوک له کوره نه سوای وتلای، او

اوبه ددوی کوروته ورننوتلې حتی چې تر غارو پورې د هر سړي ورسېدلې . او په
کورو د بني اسرائیلو اوبه نه ننوتلې که څه هم کورونه د قوم فرعون او بني
اسرائیلو سره ګډوډ وه او دا د باران اوبه یې پر زراعتي مځکو یعني د فرعون د
قوم ودرېدلې چې دوی یې له کښت څخه منع کړه او اووه ورځې دا سلسله جاري
وه (۷) فرعونیانو او په خپله فرعون هم موسی علیه السلام ته وویل چې ته خواست
وکړه وخدای جل جلاله ته چې دا باران زموږ څخه دفعه کړي موږ به پر تا ایمان راوړو او
بني اسرائیل به درسره کړو هري خواته چې یې بیا یې . نو موسی علیه السلام خواست
وکړی باران ودرېدی نو پر مځکه داسې رنګارنګ وابښه راشنه سوه چې دوی په
ژوند نه وه لیدلي . نو فرعونیانو به په خپلو منځو کې سره ویل چې باران زموږ د
پاره نعمت سو . نو بیا یې و موسی علیه السلام ته وویل چې قسم دی که موږ پر تا ایمان
راوړو ونقضوا العهد او پر خپل کفر سالم یوه میاشت باقي وه (۸) بیا خدای پاک
د موسی علیه السلام په ښېرا پر دوی مچخ مسلط کړل داسې په زرهاو ملخان وه چې یو
پر بل به سره لوېدله یو ګز پورته سوله و اکلوا زروعهم وثمارهم بلکې د لرګو
دروازې یې هم وخوړلې او د فرعونیانو کالي یې هم وخوړله او د بني اسرائیلو په
کورو نه ورننوتل ، په یو حدیث کې چې مظهري نقل کړی داسې راغلي دي چې د
هر ملخ پر څیګر به نوشته وه جند الله الاعظم یعني لوی لښکر د خدای جل جلاله . بیا
دوی لکه مخنی وعده موسی علیه السلام ته ورکړه یعني الایمان بک وارسال بني
اسرائیل معک ، نو موسی علیه السلام صحرا ته ووتی او په لکړه به یې ملخانو ته اشاره
کوله نحو المشرق والمغرب ، نو ټوله مچخ ورک سوه فلم یبق جرادة واحدة چې
ددوی په مځکو کې اووه شبانه روزه تېر کړي وه . نو د فرعونیانو په بعض اطرافو
کې څه وابښه او کښتونه باقي وه ، نو دوی سره وویل چې دا وابښه او کښتونه سږ
کال زموږ بس دي . نو موسی علیه السلام ته یې بیا ځواب ورکړی چې موږ پر تا ایمان
نه راوړو او نه بني اسرائیل درسره کوو ونقضوا العهد . نو بیا د موسی علیه السلام په
ښېرا خدای پاک چونګوښي مسلطي کړې ، نو ددوی کورونه له چونګوښو څخه
ډک سوه او لوښي یې هم ډک سوه . نو یو چا چې به د لوښي سره لګ کړی د اوبو یا

د طعام نو چونګوښي به پکښې وې، او يو سړي چي به ناست و چونګوښي به يې تر زنې پوري وې او که په سړي اراده د خبرو کړې وای، نو چونګوښه به يې خولې ته ورو غورځېدله. او د ددوی په کتو کي به چونګوښي موجودي وې، فيفسد عليهم طعامهم. او يو سړی چي به پرېوتی چونګوښي به پر سپړې سوې خوب يې هم نه سوای ځنې کولای. او سړي چي به خوله خلاصه کړه چي يو طعام وخوري. نو چونګوښه به تر ګولې دمخه په خوله ورننوتل او کتو چي به يې پر اور باندي کړه د چونګوښو به ډکه سوله الی غير ذالک. نو دوی چي له دې عذاب څخه تنګ سوه، نو موسی عليه السلام ته يې بغاري کړې چي ته خدای ته سوال وکړه چي دغه عذاب زموږ څخه دفعه کړي نتوب ونؤمن بک ونرسل معک بني اسرائيل. او بيا رجوع و کفر او عصيان ته نه کوو. نو موسی عليه السلام ددوی وعدې واخستې او سخت سخت قرارداد ونه يې ځني واخستل. نو د موسی عليه السلام په خواست چونګوښي دفع سوې چي د يوې شنبې له ورځي څخه تر بلې شنبې تر ورځي پوري پر دوی مسلطي وې، نو يوه شپه دوی په ښه عافيت کي ژوند وکړی.

(۹) بيا دوی خپل عهود او وعدې د موسی عليه السلام سره ماتې کړې و عادوا الی کفرهم. بيا موسی عليه السلام له خدای پاک څخه بل عذاب وغوښتی هغه چي خدای پاک پر دوی باندي په صورت د وينو مسلط کړی حتی رود نيل به د وينو بهېدی. او ددوی د څښلو اوبه به ويني ګرځېدلې. نو دوی چي به د څاهانو او د ولو اوبه راواخستې وجدوا دماً عبيطاً تازه سرې ويني به وې فشکوا الی فرعون فقال قد سحرکم، نو قوم و فرعون ته وويل کيف سحرنا او موږ نه پيدا کوو په څاهانو او چينو کي مګر خالص ويني. تر دې اندازې پوري چي په يوه لوښي کي به اوبه وې د پاره د تجربې اسرائيلي او قبطي به په يوه وار خوله پر کښېښول د اسرائيلي خوا په خالص اوبه وې او د قبطي خوا به سرې ويني وې، او تر اندازې پوري معامله د وينو ورسېدله چي يوې ښځي به د آل فرعون د ډېري تندې له کبله اسرائيلي ښځي ته وويل چي ته خو ستا له ژې (ګوډي) څخه يو څه اوبه زما ژې ته واچوه يعني اسرائيلي ښځي به خالص اوبه ورواچولې د هغې په ژې کي به خالص سرې

وینې وګرځېدلې، تر دې اندازې پورې د خدای ﷻ قدرت ورسېدی چې قبطي ښځې به اسرائیلي ښځې ته وویل چې ته ستا په خوله کې اوبه راواخله او زما په خوله کې یې واچوه، اسرائیلي ښځې چې په دغسې وکړه نو د قبطي ښځې په خوله کې به اوبه سرې وینې وګرځېدلې، راوي وایي چې فرعون علیه اللعنة تږی سو په اوبو خو خبر ځ چې وینې ګرځي، نو مجبور سو چې د لندو درختو بلګونه به یې ژوول چې د تندې دفعه په وکړي نو چې ویه یې ژوول هغه اوبه به ده ته تروې او سختې ترخې وګرځېدلې فمکثوا في ذالک سبعة ایام من سبت الی سبت (۱۰) بیا فرعون او قوم دده و موسی علیه السلام ته راغله او ورته وه یې ویل چې ته خدای ته سوال وکړه چې دغه عذاب د وینو زموږ څخه پورته کړي، نو موږ به پر تا ایمان راوړو او بني اسرائیل په د تاسره درسره کړو هرچېرې چې ځې، نو هغو چې عذاب د وینو خدای پاک پورته کړی، یوه میاشت یې بیا په عافیت کې تېره کړه وروسته خدای پاک وایي.

فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ ﴿١٣٣﴾

دوی بیا کبر وکړی له ایمان راوړلو څخه پر موسی او دوی وه قوم مجرمین، یعني عادتهم الجرم علی الجرم، والتکذیب علی التکذیب.

**تبصره**: درویش وایي: چې ددغو آفاتو چې پر فرعون او پر قوم دده مسلط ګرځېدلې وه او په قرآن کریم کې ذکر سوي دي، نو که څوک انکار له یوه څخه هم وکړي کفر دی لانه تکذیب للقرآن، واما تفاصیل تلک الآفات لکه موږ چې ذکر کړي په کتابو کې د تفاسیرو مذکور مع الاختلاف بین التفاسیر في الاختصار والاطناب، او د تفاسیرو د اقوال استناد یا و سید المفسرین عبدالله بن عباس رضي الله عنه ته دی یا و قتاده ته یا عکرمه ته یا کلبي ته وغیرهم رحمهم الله تعالی ته دی فالانکار علیها بدعة وغیر جائز.

**سوال**: په تفصیل کې بعض حیرت انګېزه واقعات وي نو د هغو په باره کې ستا څه نظر دی؟

**ځواب**: دا قرآني یعني په قرآن کې ذکر سوي آفات وارده پر فرعونیانو تول‌ه

حیرت انگېزه آفات دي، نو د عقل ادراک قاصر دی، نو درویش ددې په باره کې بې تسلیمه بل څه نظر ظاهر کې لان الافات المذکورة کلها صادرة بقدرة العزيز المتعال لا ينبغي للعاقل بل لايجوز اظهار النظر لان العقل قاصر وقدرة الله تعالى عن امثال هذه اعلى واجل والتسليم اسلم طريقة الناظر.

**یوه سه:** چې بعض جاهلان کتب فروشان او د پلارد ازار عاق کسان پر درویش د حسد ژبه راباسي او سترګي پټې کړي خوله وازه چې عبيدالله په تفسير کي داسي واقعات راوړي، او بيا که څوک نصيحت ورته وکړي چي د عبيدالله يې څه هغه خو نقل له تفاسيرو څخه کړی دی پر ناقل خو تصحيح د نقل لازمه ده وبس، حاسد عذر از گناه بدتر جواب ورکړي چي عبيدالله خو نو سارق دی، خواننده محترم برين جاهل فرق ميان نقل وسرقه پوشيده مانده نميدانند که مبنی دين اسلام همه و همه بر نقل است همگی تفسيرات شما مطالعه فرمائيد مثل تفسير الکبير للعلامة الفخر الرازي رحمه الله وتفسير القرطبي وتفسير روح المعاني وتفسير المدارک وتفسير المظهري وتفسير روح البيان الى غير ذالک در همگی های اين تفاسير نقليات بسيار بنظر شما می آيد شما مهربانی کرده مقدمه درالمختار مطالعه نمائيد که چه قدر از حاسدان ناليده، درويش ميگويد که حسد رسم قديم است اول که حسد همراه کبر سرزدشده از ابليس لعين بوده ثم وثم الى الآن اگر حسد نمی بودی علاج آن بسيد البشر ﷺ خداوند متعال درسورة الفلق نياموختنی "قل اعوذ برب الفلق" الى ان قال ومن شر حاسد اذا حسد.

و لا انا من قيد الحسوبآمن و لا طا عن يعيب و لا يتدبر
هم يحسدونني وشر الناس كلهم من عاش في الناس يوما غير محسود

به تاريخ ابن سعد رحمه الله آمده است که يک شخص از عالم بزرگ وکلان بغداد فرسيد که شما درباره بغداد چه نظر داريد که کدام چيز دربغداد نباشد پس وضع بغداد خوبتر ميگردد آن عالم حاسد گفت شراب خوری وزنا ومذهب ابی حنيفه پس اينچنين علمای کبار صاحب المذهب که زير بار حسد حاسدان آمده اند که

عبید الله درصف تعالی آنانست از حاسدان خود چه گله نماید، بلکه شادان باید باشد که حسنات حاسدان از دفتر ایشان محو شده به او می آید.

در تاریخ بلکه درکتب تفاسیر و احادیث شریفه خوانده باشی که انکار علما یهود که دین حضرت البشر ﷺ قبول نمیکردند مبنی آن حسد وحب الجاه والجلال بوده "یعرفونه کما یعرفون ابنائهم" درشان ایشان نازل شده، دربخاری آمده که وقتیکه عبد الله بن سلام ﷺ که عالم برجسته یهود بودند باپسران عم شان ایمان اوردند، امیر المؤمنین عمر ﷺ روزی از عبدالله ﷺ پرسید درآیت "یعرفونه آه" که شما چه طور بودید عبد الله ﷺ گفت که شناخت من بحضرت الرسالة بالاتر بوده از شناخت پسر خود، عمر ﷺ گفت چرا؟ عبدالله ﷺ گفت که شناخت من بحضرت الرسالة از جهت کتاب الله تورات بوده که درو هیچ گنائش کذب نبوده یعني معرفت من بحضرت الرسالة ﷺ از نعوت او بوده که درتورات مذکور بوده، و اما پسر من چه یقین دارم که درواقع پسر ما است چراکه امکان دارد که ما درپسر من خیانت کرده باشد، یعني زناً، پس عمر ﷺ سر عبدالله ﷺ را بوسیده که ایمان همان طور باید بود. ع... این سخن پایان ندارد

## وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيْهِمُ الرِّجْزُ

**درویش وایي:** چي اکثره مفسرین پر دې رایه دي چي مراد له رجز څخه هغه مذکوره عذابونه من الطوفان وغیره لکن سعید بن جبیر ﷺ وایي مراد له رجز څخه طاعون دی چي شپږم عذاب دی چي دمخه نه دی ذکر سوی چي په دې طاعون اوویا زره کسان په یوه ورځ مړه سوه. نو تر مابنامه یې په دفن اخته وه.

**درویش وایي:** چي دلته بحث د قبطیانو په عذابو کي ؤ، ځکه صاحب د روح البیان په تفسیر کي د رجز وایي ای العذاب المذکور من الطوفان وغیره وهکذا فسره السید الآلوسي، او تفسیر مظهري هم داسي ویلي دي ای جنس العذاب من الطوفان وغیره، واما الطاعون الذي ذکره سعید بن الجبیر ﷺ مخالف دی له هغه حدیث څخه چي روایت یې اسامه بن زید کړی دی، او بخاري، مسلم او ترمذي ذکر کړی دی قال قال رسول الله ﷺ الطاعون رجز علی بني اسرائیل

الی اخیر الحدیث والله اعلم بالصواب وعنده علم ما في الکتاب.

**پوه سه:** چي د سعید بن جبیر ﷺ پر قول دا سوال هم واردېږي چي پر تقدیر د سعید بن جبیر ﷺ دا قول چي دی وایي چي دا شپږم عذاب و چي دمخه نه دی ذکر سوی حاصل د سوال دادی چي په سابقه آیاتو کي خو نهه (۹) عذابه ذکر سوي دي او دا طاعون چي ورسره ضم کړي خو لس عذابه گرځي وهو یخالف صریح قوله تعالی "ولقد آتینا موسی تسع آیات آه"

**درویش وایي:** چي ددې سوال ځواب ځیني مفسرینو په یحتمل ولیت سره ورکړی دی چي په عالم التوجیه کي ډېر بارد جواب دی والله اعلم.

علامه بغداد السید محمود الآلوسي رحمه الله په خپل تفسیر روح المعاني کي وایي په تفسیر کي د رجز د ابي عبدالله ﷺ څخه په روایت چي دا رجز سره واوروه چي هیڅ چا له قوم څخه د فرعون نه ولیدلی نو ډېر خلگ تر لاندي مړه سوه انتهی.

**درویش وایي:** چي پر دې تفسیر هم هغه سوال واردېږي لکه پر تفسیر د ابن جبیر رحمه الله چي دا عذاب خو دمخه نه و ذکر سوی، نو دا عذاب و هغو عذابو ته ورضم کړي، نو خو عذابونه لس گرځي وهو یخالف قوله تعالی ولقد آتینا موسی تسع آیات الخ.

**درویش وایي:** چي د تفسیرو سره سره هغه اول تفسیر اولی او ارجح دی یعني چي مراد له رجس څخه هغه نهه عذابونه دي پر قوم د فرعون مسلط سوي المذکورة في الآیات السابقة من الطوفان والجراد والضفادع الی اخیرها.

قَالُوا يٰمُوسَى ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ

(قالوا) یعني فرعون وقومه یعني في کل مرة من وقوع الرجز هکذا فسره اکثر المفسرین، اې موسی ته دعا وکړه زموږ د پاره یعني په رفع کي د عذاب.

**پوه سه:** چي حرف جر متعلق دی په "ادع" پوري او ما مصدریه دی. والمعنی بعهده تعالی عندک والمراد به هو النبوة کما قال عطا رحمه الله.

**پوښتنه:** نبوت ته ولي عهد وایي؟

**ځواب:** عهد ويل خو له جهته د مبالغې دی، ولې چې اصلاً معهود به دی فانه تعالى لما بعثه رسولاً اوصاه بتحمل اعبا الرسالة والشفقة والرفق بالناس ومن مقتضى الرفق الدعا لهم برفع البلا عنهم، او يا كلمه د ما موصوله ده اى بالذي عهد اليك من اجابة دعوتك او كشف العذاب منا ان آمنا.

لَئِنْ كَشَفْتَ عَنَّا الرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ ﴿۱۳۴﴾

لام موطئه د قسم دی يعني زمونږ دي ستا په نبوت قسم وي كه ته اليري او دفع كړې له زمونږ څخه دغه عذاب يعني ستا په دعا خداى ﷻ را څخه دفع كړي هر آئينه مونږ پر تا باندې ايمان راوړو، او مونږ به ستا سره استوو بني اسرائيل و شام ته، يعني ستا دوې مطالبې وې زمونږ څخه چې ايمان او ارسال د بني اسرائيلو د تا سره وشام ته هغه مونږ پوره كوو.

فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الرِّجْزَ إِلَىٰٓ أَجَلٍ هُم بَٰلِغُوهُ إِذَا هُمْ يَنكُثُونَ ﴿۱۳۵﴾

هروخت چې مونږ په دفع كړې يعني پورته به مو كړې يعني په دعا د موسى له دوی څخه عذاب تر وخته پورې د اجل چې په علم كې د خداى ﷻ ؤ، چې دوی په و هغه اجل ته رسېدونكي دي چې وخت د غرق دی يا د مرگ.

**بوه سه:** چې "اذا هم ينكثون" جواب دی د "لما" يعني بعد كشف العذاب عنهم، نابيره به دوی خپل وعده ماته كړه نه به يې ايمان راوړی بلكې پر كفر به يې اصرار وكړی او نه به يې بني اسرائيل ازاد كړه، د نابيره معنى داده چې بېله تأمله به يې نقض العهد وكړی او په خپلو وعدو كې به يې فكر نه واهه.

فَٱنتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَٰهُمْ فِى ٱلْيَمِّ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا وَكَانُوا۟ عَنْهَا غَٰفِلِينَ ﴿۱۳۶﴾

نو مونږ لقمت وركړی او كسات د كفر مو واخستی، اصل معنى د لقمت عذاب دی، نو مونږ دوی ټوله قبطيان يعني سره د فرعونه غرق كړه په درياب كې چې پای يې چا ته نه دی معلوم، والمشهور هو النيل وقيل بحر قلزوم، دا انتقام په سبب ددې ؤ چې دوی تكذيب د آياتو زمونږ كاوه يعني هغه معجزې چې پر لاس د موسى عليه السلام مونږ ودوی ته ښكاره كړې او دوی وه له هغو آيتو څخه غافله.

**سوال:** دوی هغه آیات په خپلو سترګو ولیدل، نو حکم د غافلین پر دوی څرنګه دی؟

**ځواب:** چونکه دوی په مقتضی د آیاتو چې ایمان دی عمل ونه کړی، نو لکه د هغو څخه غافل کما مر مثل ذالک في سورة البقرة في تفسیر قوله صم بکم عم الخ.

**درویش وایي:** چي ددې پوره مصداق د جزا سیئة سیئة بمثلها، په مجمله توګه بیان د غرق د فرعون او د قبطیانو چي خدای پاک امر کړی موسی علیه السلام چي بني اسرائیل له مصره وباسه، نو په امر د موسی علیه السلام د بني اسرائیلو تولي ښځي امر سوې چي له هغو ښځو څخه د قبطیانو چي تاسي یې د کورو خدمتونه کوئ زیورات په عاریت وغواړئ په بهانه ددې چي په موږ بني اسرائیلو کي یو واده دی. نو هغسي دوی وکړه، نو خدای جل جلاله موسی علیه السلام امر کړی چي په اول کي د شپې تاسي له مصره ووځئ. چي تعداد یې شپږ لکه نر، ښځي، لویان او کوچنیان وه. نو سهار فرعون ته خبر ورسېدی چي بني اسرائیل د شپې ښتېدلي دي. نو فرعون په یو کروړ او دوه لکه نفرو پسي ووتی، چي لمر راوختی د لبري یې سره ولیدل. موسی علیه السلام ته خدای پاک امر وکړی چي دریاب یا رود دوولس ځایه په لکړه ووهه په سبب د اسباطو د بني اسرائیلو حتی وروسته تر ضرب د موسی علیه السلام د خدای په قدرت دوولس وچي کوڅې پیدا سوې، وروسته فرعون او قوم یې را ورسېدل هغه ټوله په دغو کوڅو ورداخل سوه. موسی علیه السلام دریاب په لکړه وواهه او به رواني سوې، فرعون او فرعونیان ټوله همه وهمه غرق سوه.

**پوښتنه:** د فرعون د قوم شمېر تا ډېر لوړ نه کړی بیان؟

**ځواب:** ما خو نه دي شمېرلي لکن د تفاسیرو په کتابو کي هم دومره ښوول سوي دي او باید دغونه وي، ولي چي فرعون خبر سو په تېښته د بني اسرائیلو امان چي دده صدر اعظم وُ د شپږ لکو کسانو پر مقدمة الجیش یې واستاوه او فرعون ورته وویل چي ته چټک ځه "وارسل فرعون في المداین حاشرین ان هؤلاء لشرذمة وانهم لنا الی اخیر الآیة" نو چي فرعون پر مقدمة الجیش چي هغه په اصطلاح د جنګي لښکر یو څو محدود کسان وي تاچي د نور لښکر د پاره کار

سازي وكړي، او ده بيا په خپلو ښارو كي جمع كونكي واستول چي تولـه رعيت را وبولي او د شپږو لكو بني اسرائيلو شرمه قليله يعني يوه كوچنۍ ډله يې وبلل. نو بايد دده تولـه عسكر او رعيت دده دومره وي لكه مفسرينو چي بيان كړي دي او درويش يې نقل وكړى والله اعلم بالصواب.

وَأَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِينَ كَانُوا يُسْتَضْعَفُونَ مَشَارِقَ الْأَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا ۖ

او موږ په ميراث وركړه هغه قوم ته چي مراد ځني بني اسرائيل دي چي په خوا يعني پـه زمانه كي د فرعـون د سلطنت ضعيفان او بېچـاره گـان گـڼل كېدل، يعني لكه مريان فرعون به ددوى نر او ښځي داسي استعمالول او زامن به يې ځني ذبح كـول او پـه ښځـو بـه يې د قبطيـانو د كـورو خدمتونـه كـول. اطراف مشرقي د ځمكي او اطراف مغربي د ځمكي هغه مشارق او مغارب چي موږ بركت ايښى دى پـه هغـو كي په بهانـدو رودو او ولـو او مېوه داري درختـي لكه انگور، انار زيتـون او نوري مېوې او فراخي د رزق او ښـه كلـي يعنـي ارض مصر والشام واردن او فلسطين وغيرها.

**اعرابي فائده:** د "قوم" لفظ مفعول اول دى د "اورثنا" او مشـارق الارض آه مفعول ثاني دى د اورثنا او الذين سره د صلې صفت دى د قوم.

**پوه سه:** چي وروسته تر عمالقه وو او وروسته تر فراغنه وو تولـه مذكوره ځمكي د بنـي اسرائيلو پـه لاس ورغلـې او دوى پـه هغـو كـي قـرار او سـكونت اختيار كړى.

وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنَىٰ عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ بِمَا صَبَرُوا ۖ

**پوه سه:** چي "حسنى" مؤنث ده احسن صفت د كلمې دى، يعني پاى او درجه تكميل ته ورسېدل پر بني اسرائيلو په سبب ددوى صبر پر شدائدو د فرعون، كلمه د بآ سببيه ده او كلمه د ما مصدريه ده، يعني مواعيد چي خداى پاك ددوى سره كړي وې چي عبارت د كومك او تمكين في ارض المصر پوره يې كړې. چي كلمه حسنى په دې عبارت قرآني كي راغلې ده "عسى ربكم ان يهلك عدوكم ويستخلفكم في الارض" په هم دې سورت كي. او په سورت قصص كي

په دې عبارت راغلې ده ﴿ وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا فِي الْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً وَنَجْعَلَهُمُ الْوَارِثِينَ ۝ وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُم مَّا كَانُوا يَحْذَرُونَ ۝ ﴾

**ژباړه:** او مونږ اراده وکړه ددې چې مونږ احسان وکړو د هغو کسانو سره چې دوی ضعیف ګڼل سوي وه په مځکه کې یعنې د مصر، د فرعون او د قبطیانو له خوا څخه چې بني اسرائیل وه او مونږ وګرځول دوی امامان یعني مقتدیان او مونږ یې وګرځوو میراث خواره د فرعونیانو او مونږ قدرت ورکړی و ودوی ته په مصر او اطرافو کې او مونږ وویښو په فرعون او هامان او په لښکرو ددوی هغه شی چې دوی څني بېرېدله.

﴿ وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُ ﴾

او مونږ خراب کړه هغه شیان چې فرعون او قوم دده کوله یعنې القصور العالية كقصر هامان وغيرها.

**پوښتنه:** خدای پاک خو دمخه وویل و اورثنا القوم الآية، نو ددې قصورو د تخریب په څه وجه وي، او څه حکمت الهي دی چې مصر یې سره د قصورو د فرعون وقومه و بني اسرائیلو ته ونه سپاره؟

**ځواب:** هغه مناسب د حاله سره د بني اسرائیلو چې مؤمنان وه هغه خو یې نه دي خراب کړي لکن هغه چې متکبرین وه او متجبرین عمارات عالیه وه هغه یې خراب کړه تاچې په مؤمنانو کې چې بني اسرائیل وه تبجر او تکبر پیدا ای نه سي په سبب د دغو قصورو عالیه ؤ د فرعونیانو لان المسکن والملبس والمفروش لهما تاثیرات.

﴿ وَمَا كَانُوا يَعْرِشُونَ ۝ ﴾

او هغه مېوې پر مناګانو پورته کړي وې من الثمار والاعناب وهذا قول الحسن البصري رحمه الله. او یا معنی داده: ماكانوا يرفعون من الابنية والقصور فهذا بمنزلة البيان كقوله ماكان يصنع فرعون وقومه، وهذا قول مجاهد رحمه الله.

**درویش وايي:** چي تر دې ځايه پورې قصه د فرعون وقومه پای ته ورسېدله او س خدای پاک هغه قصه کوي د امور شنيعه چي بني اسرائيلو احداث کړی و وروسته تر دې چي خدای پاک احسان وکړی پر دوی د لوی لوی نعمتو کمامر او دوی په خپلو سترګو وليدلې معجزات د موسی عليه السلام په وخت کي د مقابلې د فرعون، نو دوی بايد لوی عبرت اخستی وای.

**وَجَاوَزْنَا بِبَنِي إِسْرَائِيلَ الْبَحْرَ**

موږ تېر کړه بني اسرائيل تر درياب.

**پوه سه:** چي "جاوز" له بابه ځخه د مفاعل دی لکن په معنی د جاز مجرد دی يقال جاز وجاوز بمعنى واحد وجاوز الوادي اذا قطعه ومعنى جاوز بغيره البحر عبر به يعني تر پورې يې ايستی. فالبا في قوله ببني اسرائيل آه للتعدية، قال الحسيني وبگذرانيدم بني اسرائيل را از دريا بسلامت.

اختلاف: بعض علما وايي چي مراد له بحر ځخه رود نيل دی وهو المشهور. روح البيان وايي چي دا شهرت غلط دی بلکې مراد بحر القلزوم دی وفي القاموس القلزوم کقنفذ بلد بين مصر ومكة قريب الطور واليه ينسب بحر القلزم لانه على طرفه، په يوه روايت کي راغلي دي چي صحيح روايت دی چي موسی عليه السلام او قوم دده له دريابه په سلامتي تېر سوه هغه ورځ د عاشوره وه. نو ټولو بني اسرائيلو روژې ونيولې شكرا لله تعالى في الانجا من فرعون.

**فَأَتَوْا عَلَى قَوْمٍ**

نو دوی ورغله پر يو قوم چي دا قوم د عمالقه کنعانينو وو. او علامه زمخشري وايي قبيلة بمصر، او بعض وايي چي د لخم قبيله وه من اليمن او له دغي قبيلې ځخه د عربو بادشاهان وه په جاهليت کي.

**يَعْكُفُونَ عَلَى أَصْنَامٍ لَهُمْ**

چي دوی به همېشه کاوه عبادت د دغو بتانو. قيل في تاج المصادر "العكوف" گرد چيزی در آمدن ودر جای مقيم شدن.

قَالُوا يَا مُوسَى اجْعَلْ لَنَا إِلَٰهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ

بني اسرائیلو وویل اې موسی علیه السلام موږ ته هم وګرځوه یو معبود بت چې موږ به یې عبادت کوو لکه دې قوم لره چې معبودان بتان دي.

**سوال:** په دې وینا سره دوی نه سوه کافران چې د بتانو عبادت یې غوښتی او خدای جل جلاله لره یې شریک جائز وباله؟

**ځواب:** بغوي رحمه الله وایي چې ددې خبرې شک نه و د بني اسرائیلو له خوا په وحدانیت کې د خدای جل جلاله بلکې معنی او غرض ددوی دا و چې یو شی زموږ د پاره وای چې موږ یې عبادت کولای او خدای جل جلاله ته مو د هغه په عبادت سره تقرب کولای. وهذا القول صادر منهم لکمال جهلهم ولخفة عقولهم وکذا قال لهم موسی.

قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ ﴿١٣٨﴾

تاسې یو قوم یاست چې ناپوهي خبرې کوئ. موسی علیه السلام دوی ته دا خبره د تعجب له لارې وکړه. یعني وروسته تر دې چې تاسې د فرعون آیات او معجزات ولیدلې، نو اوسنی خبرې ستاسې د جهالت سره ناشي ده.

إِنَّ هَٰؤُلَاءِ مُتَبَّرٌ مَا هُمْ فِيهِ وَبَاطِلٌ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٣٩﴾

په تحقیق دغه قوم چې د بتانو عبادت کوي هلاک کرده شده دي هغه څه چې پکښې بخت دي، یعنې بت فرستي او باطل دی هغه عمل ددوی، که کلمه د ما مصدریه سي او که ما موصوله سي، نو عائد و "ما" ته محذوف دی ای ما یعملونه.

**پوه سه:** چې د "متبر" څخه دا معلومه سوه چې خدای جل جلاله به دغه دین ددوی ورنړوي او بتان به یې ټوټه ټوټه سي بقدرته تعالی او د باطل حاصل دادی چې دا بت پرستي دوی نه نږدې کوي و خدای جل جلاله ته بلکې دا عبادت د بتانو ددوی بعد المشرقین له خدایه لېرې کوي کما قال مشرکوا مکة انما نعبدهم لیقربونا الی الله زلفی. موسی علیه السلام ورته زیاته کړه.

قَالَ أَغَيْرَ اللَّهِ أَبْغِيكُمْ إِلَٰهًا وَهُوَ فَضَّلَكُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴿١٤٠﴾

**پوه سه:** چې د موسی علیه السلام استفهام د پاره د انکار او توبیخ او تعجب دی د دوی وجهل ته.

**ترجمه**: آیا غیر د خدای زه و طلبه یم ستاسي د معبود په توګه او حال هم دادی چي خدای ﷻ تفصیل درکړی دی تاسي ته پر عالمیانو باندي ای عالمي زمانهم، یعني خدای ﷻ تاسي خاص کړي یاست په داسي نعمتو چي بل چا ته یې نه دي ورکړي چي آیات ظاهره د تورات دي او معجزات باهره د موسی ﷺ دي، او خلاص والی له قبطیانو څخه چي تاسي یې لکه مریان تر تصرف لاندي راوستلي واست کمامر من قبل، او تاسي مقابله د ټولو نعمتو د خدای ﷻ چي تفضلاً یې ستاسي سره کړې وه چي پر خدای ﷻ واجب نه وه، او تاسي مقابله په دې سره وکړه چي اخس د مخلوقاتو چي اصنام دي د خدای ﷻ په عبادت طلب د شراکت کوي، حافظ شیرازي رحمه الله وایي.

خلق را نیست سیرت پدران — همه بر سیرت زمانه روند

په حدیث شریف کي راغلي دي چي روایت یې واقد لیثي رضي الله عنه کړی دی. وایي مونږ د علیه الصلوة والسلام سره وه تو د حنین غزا ته فمررنا بسدرة مونږ وویل یا رسول الله مونږ ته وټاکه یوه درخته ذات انواط لکه چي کفار ذات انواط لري او کفارو به خپلي اصلحې پوري ځړولې چي هغې درختي ته یې ذات انواط وایه او بیا به یې پر هغې درختي طواف کاوه. فقال رسول الله ﷺ الله اکبر دا خو تاسي داسي مطالبه وکړه لکه چي بني اسرائیلو و موسی ﷺ ته وویل اجعل لنا الهاً کمالهم آلهة انکم لترکبون سنن من قبلکم رواه البغوي. یعني ذات انواط او طواف پر کول هم شرک دی.

وَإِذْ أَنجَيْنَٰكُم مِّنْ ءَالِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ

او په یاد کړئ یا بني اسرائیلو هغه وخت چي مونږ نجات او خلاصون یې درکړی تاسي ته من آل فرعون یعني د فرعون له قوم څخه د هغه چي قبط وه، نو کلمه د اذ منصوب المحل عامل یې مقدر دی یعني اذکر.

**پوه سه**: چي یسومونکم جمله مستأنفه ده د پاره د بیان د ما انجاکم منه د پاره، او روح البیان وایي بدل دی.

يُقَتِّلُونَ اَبۡنَآءَكُمۡ وَيَسۡتَحۡيُونَ نِسَآءَكُمۡ ۚ وَفِيۡ ذٰلِكُمۡ بَلَآءٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ عَظِيۡمٌ ﴿۱۴۱﴾

دا جمله بيان دى د سوء العذاب چي در وژل يې په كثرت سره كما هو مقتضى باب تفعيل. زامن ستاسي چي زېږېدل به يعني په سبب د فرعون له خوفه كمامر تفصيله. او ژوندى به يې پرېښوولې ستاسي ښځي يعني د پاره د خدمت د كورو د فرعونيانو.

**سوال**: نسا خو لوى ښځي ته وايي او دوى خو په وخت كي د زېږېدلو ژوندى پرې ښولې؟

**ځواب**: دا مجاز دى په اعتبار د مايئول اليه كما في قوله "اني اعصر خمراً" او په دغه مذكور عذاب كي تكليف او محنت وُ پر تاسي يا په دغه انجا كي نعمت وُ.

**بوه سه**: چي د بلاً معنى ابتلاً او امتحان دى، امتحان د خداى ﷻ گاهي په محنت سره وي چي صبر د بندگانو معلوم كړي او گاهي په نعمت سره چي د شكر حال معلوم سي له جانبه څخه د رب ستا لوى.

وَوٰعَدۡنَا مُوۡسٰى ثَلٰثِيۡنَ لَيۡلَةً وَّاَتۡمَمۡنٰهَا بِعَشۡرٍ

او وعده كړې وه موږ د موسى عليه السلام سره يعني د وركړې د كتاب چي تورات دى دېرش شپې او بيا مو پوره كړې دېرش په لسو نورو.

**بوه سه**: چي ابن ابي حاتم د ابي العالية څخه روايت كړى دى چي دېرش شپې د مياشتي او لس نوري د لوى اختر له مياشتي څخه ور ضم كړې.

**بوه سه**: چي محي السنة علامه بغوي رحمه الله وايي چي موسى عليه السلام د بني اسرائيلو سره چي دوى په مصر كي وه وعده كړې وه چي خداى پاک چي زموږ دښمن فرعون هلاک كړى، نو زه به د خداى ﷻ له خوا څخه يو كتاب راوړم چي په هغه كي اوامر او منهيات د خداى ﷻ موجود دي. نو چي خداى ﷻ فرعونيان له منځه يووړه، نو موسى عليه السلام له خدايه د كتاب غوښتنه وكړه، نو خداى پاک دى امر كړى چي يوه مياشت روژې ونسه، نو چي دېرش ورځي پوره سوې، نو د موسى عليه السلام د خولې لږ ساه (بوى) ولاړېدى نو يې مسواک وواهه د پاره د تيارى د كلام الله، نو

ملکو ورته وویل چي ستا د روژو په ایام کي پر موږ بوی د مشک ولاړېدی او تا فاسد کړی هغه بوی په مسواک وهلو سره، نو خدای پاک دی امر کړی چي لس ورځي نوري روژي ونسه، او خدای پاک ورته وویل چي خلوف د خولې د صائم اطیب دی من ریح المسک. او فتنه د بني اسرائیلو چي د سامري له خوا ورته جوړه سوه کما سیأتي بیانها، په دغه لسو زیاتو ورځو کي جوړه سوه فانظر تفصیلها.

فَتَمَّ مِيقَاتُ رَبِّهِ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً

نو پوره سو هغه وخت چي خدای پاک ورکړی ؤ د خبرو د پاره او د کتاب د ورکړي د پاره.

وَقَالَ مُوسَىٰ لِأَخِيهِ هَارُونَ اخْلُفْنِي فِي قَوْمِي وَأَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيلَ الْمُفْسِدِينَ

او وویل موسی علیه السلام چي دی کوه طور ته روانېدی للمناجات و خپل مشر ورور ته چي هارون یې نوم ؤ ته زما خلیفه او جای نشین یې په قوم کي زما او ته اصلاح کوه د امورو د قوم یعني په طاعت د خدای جل جلاله یې امر کوه، او ابن عباس رضي الله عنه وایي چي معنا د اصلح داده چي نرمي ورسره کوه او ته متابعت مه کوه د لاري د فساد کونکو، یعني چي معصیت کوي او یا په منځ کي د قوم فساد کوي یعني د هغو په خوله ته مه کوه بلکې دوی له معصیت څخه ولاړي ته د طاعت رابوله او د افساد څخه یې و وصلاح ته رابوله، د "اربعین" لفظ له "میقات" څخه حال دی او لفظ د "لیلة" تمییز دی د "اربعین"

**پوښتنه:** خدای پاک اربعین لیلة ووایه او یوماً یې نه ووایه حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** قرآن چونکه موافق د کلام او اصطلاح د عربو نازل سوی دی او مدار د عربو د میاشتو پر رؤیت د هلال دی، نو هغه خو مابنام وي، نو ځکه یې لیلة ووایه.

**سوال:** هارون خو شریک ؤ د موسی علیه السلام سره په نبوت کي لکه په بل ځای کي د قرآن مجید چي قوله د موسی په باره کي د هارون داسي ویلي دي "واشرکه في امري" نو ځرنګه موسی علیه السلام پر هارون علیه السلام د خلیفه اطلاق وکړی؟

**ځواب:** دوه کسه چي په یو شي سره مأمور سي لا ینفرد احدهما بفعله الا بامر صاحبه فکذالک قال اخلفني الخ. او بله وجه داده چي اصل په نبوت کي

موسى ؤ هارون العلیہ السلام يې کومکې ؤ، ولهذا ورد في القرآن في موضع آخر نقلاً عن قوله موسى په باره کې د هارون فارسله معي ردئا يصدقني اى معيناً له دې سببه کليم الله موسى العلیہ السلام ؤ او راوړونکې د کتاب هم دى دى، او بله خبره داده چې درجات د انبيا کرامو فرق سره لري کما قال عز من قائل "تلک الرسل فضلنا بعضهم على بعض"

**درويش وايي**: چې دا سوال او جواب د پاره د علماؤ د ظاهر دى لکن لا اعتراض على الاکابر عند الاکابر، ولې چې اکابر يعني صوفيه کرام رحمهم الله په دې پوهېږي چې حرکات د اکابرو يعني الانبيا عليهم السلام په الهاماتو الهيه وو سره او په کشوفاتو قلبيه وو سره دي فحينئذ لا اعتراض على التحقيق حتى يحتاج الى التوفيق، وقصة الخضر العلیہ السلام مصاحبة موسى العلیہ السلام حيث قال الخضر العلیہ السلام لموسى العلیہ السلام مافعلته امري اى عن عند نفسي آه، وتفصيل تلک القصة في موضعه.

## وَلَمَّا جَآءَ مُوسٰى لِمِيقَاتِنَا

نو څه وخت چې موسى العلیہ السلام پر هغه خاص وخت چې خداى پاک ورته تاکلى ؤ وهو تمام الاربعين کمامر، نو لام د پاره د اختصاص دى او په معنا د "عند" نه دى کما توهم بعضهم والميقات بمعنى الوقت.

**پوښتنه**: څه حکمت ؤ د خداى پاک چې د موسى العلیہ السلام د پاره يې غر وټاکى باوجود ددې چې فوق السموات العلى او تحت الثرى يو دى عند حضرته تعالى المنزهة عن الجهات؟

**ځواب**: له دې سببه چې په جبل کې وصف د ثبات سته او د علو او د تفرد عن سائر الارض لان الارض ما استقرت على الما حتى جعل الله الارض او تاداً لها کما ورد في موضع آخر من القرآن، ولهذا قيل الجبال کراسي الانبيا والاوليا کالطور لموسى، وجبل غار حرا لنبينا ﷺ قبل النبوة وغار جبل الثور ايضاً لسيدنا محمد العلیہ السلام حين الهجرة ثلاث ليال، او شرح الصدر د عليه الصلوة والسلام اول وار په غره کې وه چې دى مبارک کوچنى ؤ او د دايي (حليمې) په کور کې ؤ.

**درویش وایي:** چي د ټولو اولیاً الکاملین مزارات او قیام گاه چي ما لیدلي دي اکثره په غرو کي دي.

**وَكَلَّمَهُ رَبُّهُ**

او خدای ﷻ خبري ورسره وکړې من غیر واسطة الملک وکیفیة، او جبرائیل ورسره ؤ لکن د خدای پاک خبري موسی علیه السلام اورېدلي ولذا خص باسم الکلم. ولي چي د نورو انبیاً کرامو سره په واسطه د ملکي او د کتاب خدای پاک خبري کړي دي یعني په مځکه کي.

**درویش وایي:** چي قید د مځکي ما ووایه له دې سببه چي د نبینا محمد ﷺ سره خبري د خدای پاک فوق السموات العلی یعني په شپه د معراج هم بېله واسطې د ملکي وې کما ثبت في شروح الاحادیث الشریفة. او دې ته شیخ سعدي په دې بیتو سره اشاره کړې ده والله دره.

چنان گرم د تیه قربت براند | که درسدره جبرئیل ازو باز ماند
بدو گفت سالار بیت الحرام | که ای حامل وحی بر تر خرام
بگفتا فراتر مجالم نماند | بماندم که نیروی بالم بماند
اگر یک سر موی برتر فرم | فروغ تجلی بسوزد پرم

وفي الحدیث ثم زج بي في النور فخرق بي سبعون الف حجاب الی اخیر الحدیث.

**درویش وایي:** چي تفصیل د معراج نبوي ﷺ به په تفسیر کي د جزء د سبحان الذي اسری آه په زړه پوري تفصیل سره په دې تفسیر کي راسي ان شاً الله تعالی العزیز.

**قَالَ رَبِّ أَرِنِيٓ أَنظُرۡ إِلَيۡكَۚ**

موسی علیه السلام شوقاً الی رؤیة المتکلم جل سلطانه بعد ما سمع کلامه وویل اې ربه زما ته به ووینې خپل ځان چي زه پورته وګورم وتاته. حسن بصري رحمه الله وایي چي په موسی علیه السلام کي جوش د رؤیة الهي پیدا سو په دې گمان چي رؤیة الهي په دې دنیا هم کېدای سي لکه په اخیرت کي.

## قَالَ لَنْ تَرٰىنِيْ

خدای پاک ورته وویل چي هر گز ته ما نه سې لیدلای یعني په دنیا کي ولي که څوک ما په دنیا کي وویني مات من ساعته، موسی ﷺ ورته وویل چي ستا کلام چي مي واورېدی اشقت الی النظر الیک ولان النظر الیک ثم اموت احب الي من اعیش ولا اراک بل من کل محبوب.

**نکته**: خدای پاک چي "لن تراني" وواېه چي معنی یې داده چي ته مي نه سې لیدلای اشاره ودې ته ده چي زما رؤیت که څه هم ممکن دی لکن ته مي نه سې لیدلای یعني في الدنیا، ولي چي بنیه د انسان او اعضاً دده چي په هغه کي بصر هم شامل دی دومره ضعیف دی چي قابل د رؤیت نه دی، که چېري رؤیت د خدای ﷻ نه وای اصلاً نو خدای پاک به په جواب کي داسي ویلي وای لن ارئ بصیغة المجهول یعني زه قابل د رؤیت نه یم. نو په دې آیت کي دلیل پر امتناع د رؤیت في الآخرة نسته کما زعمه المعتزلة حیث قال رئیسهم في التجرید من علم الکلام ورؤیة الله تعالی في الآخرة کما یزعمه اهل السنة والجماعة باطل، بیا نو پر دې باندي یې دلائل عقلیه ویلي دي چي حاصل د ټولو یې دادی چي دوی قیاس د آخرت پر دنیا کړی دی مع انه قیاس مع الفارق. قال المولوي المعنوي رحمه الله.

لن ترانی میر سد از طور موسی راجواب
هر چه آن از دوست میآید سر بنه گردن متاب
قیل: چون مستعد نظر نیستی وصال مجوی
که جام جم نکند سود وقت بی بصری

## وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْجَبَلِ

لکن وګوره وغره ته خدای پاک د موسی ﷺ د قناعت د پاره چي ته ما نه سې لیدلای په دنیا کي دا خبره یې ورته وکړه لکن آه، دا غر یو لوی غر دی په مدین کي چي زبید ورته وایي، مظهري رحمه الله په نقل د سدي رحمه الله وایي چي

داسي يې ويلي دي چي د موسى عليه السلام سره چي خداى پاک خبري وکړي ابليس په مځکه تنوتى او په منځ کي د پښو د موسى عليه السلام راووتى او وسوسه يې وراچول چي دا ستا سره يې خبري کولې دا شيطان وُ، نو ځکه موسى عليه السلام سوال د رؤيت وکړى انتهى.

**درويش وايي:** چي دا وجه ډېره له عقل څخه لېري ده.

**پوښتنه:** موسى عليه السلام په دې پوهېدى چي دا خبري کونکى زما سره خداى پاک دى حتى وروسته يې سوال د رؤيت وکړى؟

**ځواب:** قاضي بيضاوي وايي اورېدي له هره اړخه څخه په دې معنى چي موسى عليه السلام به هر جهت ته مخ واړاوه هغه خبري به يې له هغه جهته اورېدلې وليس كلام الخلائق بهذه الصفة كما لايخفى.

**پوښتنه:** موسى عليه السلام به يا په دې خبر وُ چي رؤيت د خداى پاک په دې دنيا کي نه سي واقع کېداى يا به نه وُ خبر. که خبر وُ نو يې سوال ولي کاوه، او که نه وُ خبر نو دا خو جهل دى په شيون د خداى جل جلاله او دا منافي د مقام سره د نبوت دى؟

**ځواب:** موسى عليه السلام تر دغه وخته پوري چي "لن تراني" له خدايه اورېدلى نه وُ خبر وليس هذا جهلاً بالله تعالى وصفاته بل ببعض احكامه وهذا لاينافي منصب النبوة لکه نوح عليه السلام چي د نجات د پاره د خپل کافر زوى کنعان خواست و خداى پاک ته وکړى حيث كما في قصة نوح ان ابني من اهلي وانت ارحم الراحمين، خداى جل جلاله جواب ورکړى په دې سره چي "انه ليس من اهلک" نو په حکم چي کافر د مؤمن اهل کېداى سي نوح عليه السلام تر دې وخته نه وُ خبر. او ابراهيم عليه السلام سئل مغفرة آباه آذر، ورسول الله ﷺ سال مغفرة عمه ابي طالب حتى نزل هذه الآية "ماكان للنبي والذين آمنوا ان يستغفروا للمشرقين ولو كانوا اولى قربى" وسال عليه الصلوة والسلام مغفرة بعض المنافقين فنزل استغفر لهم او لا تستغفرلهم ان تستغفرلهم سبعين لن يغفر الله لهم" وحين صلى رسول الله ﷺ على جنازة ابن ابى رئيس المنافقين فنزل قوله تعالى "ولا تصلي على احد منهم مات ابداً الآية" نو رسول الله ﷺ تر وخته پوري د نزول د دغو آيتو په دې نه وُ خبر چي سوال په د

مغفرت په حق کې د کافر نه قبلیږي، نو دغه تاخیر تیا د منصب سره د نبوت د نوح ﷺ یا د ابراهیم ﷺ یا د محمد ﷺ منافي وه لا والله فافهم.

**درویش وایي:** چي په قصه کې د مناجات د موسی ﷺ د خدای پاک پر کوه طور داسي راغلي دي چي خدای ﷻ پر طور اووه فرسخه شاه وخوا ظلمت او تاریکه راوګرځوله او له دخه مسافت څخه یې شیطانان او موزر هوام لکه لړم، مار، کیکه، غوماشه وغیرها هم وشړل او هغه دوې ملکي کرام کاتبین د موسی یې ګوښه کړې، او خدای پاک و اسمانو ته دروازې ورکړې، نو ملکي په هوا کې ملکي ولاړي ولیدلې او عرش هم خدای پاک وربښکاره کړی فکلمه الله تعالی او مناجات یې ورسره شروع کړه او سره ددې چي جبرائیل ﷺ د موسی ﷺ سره ورسره ؤ لکن کلام الهي او مناجات د موسی ﷺ یې نه اورېدی وهذا نموذج قدرته تعالی والله علی کل شئ قدیر آمنا بذالک فاغفرلنا ذنوبنا واسرافنا في امرنا برحمتک یا ارحم الراحمین وصلي وسلم علی سید المرسلین شفیع المذنبین مولنا ومولی العالمین محمد و علی آله وصحبه اجمعین آمین.

**درویش وایي:** چي هغه ډله چي رؤیت د خدای ﷻ په اخرت کې هم ممتنع بولي سره د دلائلو عقلیه کما اشرنا الیه په دې آیت سره چي لن تراني د لیل وایي دوی وایي چي کلمه د "لن" د پاره د تابید د نفي د رؤیت دی په دنیا او په اخرت کې.

درویش وایي: چي کلمه د "لن" د تابید لپاره ګرځول لوی غفلت دی د معتزله وو، او د تعصب ددوی په مذهب کې چي د ټولو اهل صرف چي هغه وایي چي کلمه د لن لپاره د تاکید د نفي ددوی تر پښو لاندي کړه، نو دلته په آیت کې "لن تراني" کې هم لپاره د تاکید د نفي رؤیت په دنیا کې لکه مقصود چي ؤ د موسی ﷺ، والشاهد علیه قوله تعالی اخباراً عن الیهود ولن یتمنوه ابداً (ای الموت) مع انه تعالی اخبر عن تمنی الکفرة کلهم الموت یوم القیامة، قال الله تعالی ونادوا (ای اهل النار) یا مالک (چي د خزنه د جهنم لوی قوماندان دی) لیقض علینا ربک (یعني فیصله د مرګ وکړئ پر موږ باندي

چي د دوږخ له عذابه خلاص سو) او بل ځای خدای پاک د قول د اهل نار داسي حکایت کړی دی چي هر یو دا وایي، یالیتني کنت ترابا (کاشکي زه خاوري وای، دا تمنی دوی هغه وخت کوي چي د حیوانات د ظلم قصاص یو پر بل خدای ﷻ واخلي او وروسته ورته ووایي کونوا ترابا هغه خاوري سي، ولي چي حیوان لره نه جنت ستته نه دوږخ) او بعض علماء وایي چي د موسی علیه السلام سوال د پاره د الزام د قوم چي دده سره ورسره وه، او موسی علیه السلام ته یې داسي وویل ارنا الله جهرة، مظهري رحمه الله دا خبره په شدت سره رد کړې ده وقال هذا خطأ فاحش، ولي چي په دې مناجات کي خو موسی علیه السلام یوازې ؤ قوم نه وو ورسره، ولي چي په دې وار کي خدای ﷻ دده سره خبري وکړې کمامر او تورات یې مکتوب علی الالواح ورکړی، او سوال د رؤیت یې حبا لله وکړی، او خدای پاک و موسی علیه السلام ته سرزنش هم نه کړی ور بلکې طریقه د عدم رؤیت یې وروښوول یعني سبب د نه رؤیت بقوله تعالی لکن انظر الی الجبل آه، او په هغه وخت کي چي د موسی علیه السلام سره اوویا کسان د قوم ورسره وه د پاره د معذرت عن عبادت العجل او قوم چي دا وویل ارنا الله جهرة د هغو سوال تعنتا او انکارا ؤ من ان المتکلم مع موسی علیه السلام هو الله تعالی، نو خدای پاک و هغو ته عذاب ورکړی کما جاء في القرآن "فاخذتهم الصاعقة بظلمهم حیث لم یکونوا مستحقین بها" او بله خبره داده که د سوال د پاره د تبکیت د قوم وای نو پر موسی علیه السلام واجبه وه چي ددوی د شبهي ازاله ورکړي او دوی ته یې ویلي وای چي تاسي جاهلان یاست کما فعل بهم حیث اجعل لنا الها کما لهم آلهة حیث لهم محال لهم بل انتم قوم تجهلون.

فَإِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهُ فَسَوْفَ تَرَانِي

که د سره صلابت دده کي قرار ولري پر ځای او تو به نه سو.

**پوه سه:** چي مراد له غره څخه هغه غر دی چي موسی علیه السلام لیدی. کلبي وایي چي دا هغه لوی غر دی په مدین کي چي زبیر به باله پر وزن د امیر، کي قرار ونیوی پر خپل خپل ځای نو ژر دی چي ته به ما وینې مراد دادی چي ته اې

موسی د رؤیت زما طاقت نه لري لکه غر چي يې نه لري، مظهري رحمه الله وايي چي د تعليق د رؤيت د خدای ﷻ په استقرار الجبل پوري دليل دی د جواز د رؤيت الهي په دنيا کي لان المعلق بالممکن ممکن.

**درويش وايي:** چي مظهري رحمه الله د وهب بن منبه او د ابن اسحاق چي دواړه معادن د عجائبو دي يو حيرت انگيزه قصه نقل کړې ده چي نه په هيڅ کتاب کي د احاديثو راغلې ده او نه په بل هيڅ تفسير کي لکه تفسير بيضاوي روح المعاني بيله روح البيان، تفسير کبير، تفسير قرطبي، تفسير خازن نه ده نقل کړې والله اعلم چي څرنگه ده دا قصه را نقل کړې ده دی خو لوی محقق او محدث ؤ. نو تاسي دا قصه د مظهري په تفسير کي وگورئ د حيرت ځای به درته ښکاره سي.

## فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلْجَبَلِ

**پوه سه:** چي بعض مفسران يې دا ترجمه کوي ای ظهر بعض انواره او جلال الدين السيوطي رحمه الله اظهر من نوره قدر نصف انملة الخنصر.

**درويش وايي:** چي په دې کي ډېر اختلاف دی.

(١) ابن عباس رضي الله عنه وايي ظهر نوره للجبل.

(٢) ضحاک رحمه الله وايي دومره نور يې له حجاب څخه ښکاره کړی لکه د غوايي سږمه.

(٣) عبدالله بن سلام او کعب احبار رضي الله عنه وايي چي له نور څخه د خدای ﷻ دومره قدر ښکاره سو لکه د ستنې سپم.

(۴) سدي رحمه الله وايي چي تجلي د نور په قدر د کوچنۍ گوليې وه.

(۵) ابو شيخ هم وايي چي نور په اندازه د خچنۍ گوتې ؤ، دوی ټوله وايي چي په مقدار مذکوره غر ټوټه سو. علامه بغداد په تفسير روح المعاني کي داسي تفسير ددې آيت کړی دی ای ظهر له (غره ته) علی الوجه اللائق بجانبه تعالی، او علامه بغداد تر نقل د بعض اقوالو مذکوره وو داسي ويلي دي وهذا کما لايخفی من المتشابهات التي يسلک فيها طريق التسليم وهو اسلم واحکم، او التاويل بما يليق بجلال ذاته، او په تفسير حسيني کي وايي (يعنی ظاهر گردانيد از نور خود

خود يا از نور عرش بمقدار سوراخ سوزن) او شيخ ابو منصور الماتريدي رحمه الله وايي چي معنى د تجلى للجبل ماقاله الاشعري رحمه الله چي خداى ﷻ په غره كي حيوة او علم او رؤيت پيدا كړى حتى چي غره خداى پاک وليدى نو.

جَعَلَهُ دَكًّا

وګرځاوه خداى ﷻ دا غر توټه توټه.

**پوه سه**: چي "دک" مصدر دى په معنا د مفعول اى مدكوكاً او دک ودق سره مرادف غونډي دي. په قاموس كي وايي چي دق او دک او هدم ما استوى من الرمل.

**پوه سه**: چي د دک متقارب المعنى ترجمې سوي دي، له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي غر په مځكه ننوتى حتى وقع في البحر او په درياب كي روان دى يعني من القطعة التي عليها موسى عليه السلام. او عطيه وايي چي ريګ روان وګرځېدى. وفيه ايضاً العناية السابقة آنفاً. او كلبي رحمه الله وايي چي كوچني كوچني غرونه سوه، په روح البيان كي وايي چي دا حال د غره ؤ سره د غايت صلابت د هغه. نو ستا څه خيال دى په ابن آدم ضعيف سره چي موسى عليه السلام دى كذا في تفسير الكواشي. بعض اكابر د علماً وايي چي غر خداى ﷻ فدا د موسى عليه السلام وګرځول او كه دى مدهوش نه واى دى به داسي توټه توټه سو واى لكه غر، علماً وايي چي په سبب د تجلى الهي ټولي ترخي او تروې اوبه خوږې (شېريني) سوې او هر لېوني پر سد سو او هر مريض جوړ سو، او د ځوز درلودونكو درختو څوزان ورژېدل او مځكه سربزه او شادابه سوه، او د مجوسيانو ټوله اوروته مړه سوه، او بتان پرمخي پر مخ باندي څغوار سوه او د ملكو آوازنه قطعه سوه له هيبت څخه.

**درويش وايي**: چي نور ډېر نادر روايتونه هم راغلي دي، په تفسير حسيني كي وايي، اجب سرى است كه كوه بآن عظمت تحمل ديدار نداشت ودل انسان بحكم ولكن ينظر الى قلوبكم طاقت آن نظرهست. نكته دراين آنست كه تجلى بركوه بنظر هيبت بود وتجل بر دل بنظر رحمت است آن نظر هيبت كوه را ويران ساخت واين نظر رحمت دل را معمور سازد انتهى.

وَخَرَّ مُوسَىٰ صَعِقًا ۚ

او غورځار سو موسی علیه السلام چي بیهوشي پر راغلـه من هـول مـا رئ. ابن عباس رضی الله عنه وایي چي د پنجشنبې لـه ورځي ځخـه چي هغـه د عرفات ورځ هم وه د جمعې د ورځي تر ماز دیگره پوري بیهوشه و. حضرت رومي رحمه الله وايي:

جسم خاک از عشق بر افلاک شد (اشارة الی لیلة المعراج) کوه دررقص آمد وچالاک شد

عشق جان طور آمد عاشقاً طور مست وخر موسی صاعقاً

واقدي رحمه الله وايي چي موسی علیه السلام چي بیهوشه سو ملکو د اسمانو وویل ما لابن عمران وطلب الرؤیة ای في الدنیا.

فَلَمَّآ أَفَاقَ قَالَ سُبْحَـٰنَكَ تُبْتُ إِلَيْكَ وَأَنَا۠ أَوَّلُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۝

**پوه سه**: چي مولی ابو سعود رحمه الله وايي چي افاقه رجوع د عقل او فهم ده وروسته تر دې چي زائل سوی وي په سبب د اسبابو لکه د موسی علیه السلام په مانحن فیه چي زائل سوی و په سبب د هیبت د ماري.

**ترجمه**: هغه وخت چي په هوش کي راغلی موسی علیه السلام وه یې ویل پاکي ده تالره یعني چي زه بېله اذنه له تا ځخه بیا سوال نه کوم، او بعض مفسرین وايي چي سبحانک کلمه د تعجب له هغه څه ځخه چي ده ولیدل، په تحقیق زما توبه ده وتاته چي اقدام او جرئت پر سوال کوم بېله اذنه ستا. او زه اول د مؤمنانو یم. ولي چي د هر نبي ایمان مقدم دی تر ایمان د امت دده.

قَالَ يَـٰمُوسَىٰٓ إِنِّى ٱصْطَفَيْتُكَ عَلَى ٱلنَّاسِ بِرِسَـٰلَـٰتِى وَبِكَلَـٰمِى
فَخُذْ مَآ ءَاتَيْتُكَ وَكُن مِّنَ ٱلشَّـٰكِرِينَ ۝

خدای پاک ورته وویل چي په تحقیق ما ته غوره کړی او مختاره کړی مي یې پر خلګو یعني چي ستا په زمانه کي دي په خپلو رسالاتو سره.

**پوه سه**: چي امام نافع او ابن کثیر رحمهما الله یې په افراد وايي یعني "برسالتي" د هغه توجیه خو ظاهره ده. یعني په رسول والي سره چي رسول مي ګرځولی یې. او نور قاریان یې په صیغه د جمع وايي لکه په مطبوعه مصاحفو

کي، نو توجيه د جمعي يې داده چي هر رسول د خداى ﷻ له خوا څخه مشترکه بين الاديان راوړی دی لکه توحيد د خدای پاک و بعث بعد الموت وغيرها او احکام مختلفه باعتبار الازمان راوړي دي، په قصه کي د موسی ﷺ راغلي دي والله اعلم بصحته چي د موسی ﷺ سره خدای پاک خبري وکړې هيڅ چا طاقت نه درلودی چي دده مخته وگوري ولي چي دده مخ په نور سره پټ وُ او تر مرگه پوري يې دده پر مخ پرده وه، يو وخت دده ماينې ورته وويل چي زه د هغه وخت څخه چي تا د خدای پاک سره خبري کړي دي لکه ستا په ژوند کي چي کونډه يم، يعني ستا مخ مي بيا نه دی ليدلی. نو موسی ﷺ مخ ورت لڅ کړ، نو د ماينې پر مخ يې لکه د لمر وړانگي ولگېدلې. نو ماينې يې سترگي ومخ ته ونيولې او پر سجده پرېوتل و خدای ﷻ او ماينې يې ورته وويل چي ته خدای پاک ته خواست وکړه چي ما په جنت کي ستا زوجه وگرځوي. موسی ﷺ ورته وويل ذالک لک، که تا وروسته تر ما مېړه ونه کړی لان المرئة لاخير زوجها في الجنة.

**درويش وايي:** چي معتزله له رؤيت څخه د خدای پاک په جنت کي منکر دي او په دغو آيتو سره چي په شان کي د موسی ﷺ د سوال نازل سوي دي "رب ارني انظر اليک" الی اخيرها استدلال وايي وقد مر الجواب عنه چي دا سوال د موسی ﷺ او جواب د خدای پاک لن تراني الی اخيرها خو ددې دنيا په رؤيت کي وُ، حتی چي صاحب الکشاف په ډېره سپين سترگي او بې حيايي لپاره د تشنيع پر اهل سنت او جماعت او لپاره د گمراه کولو د اهل سنت والجماعة کثرهم الله داسي گمراه کن خبره کړې ده چي عربي عبارت يې دادی ثم تعجب من المتسمين بالاسلام (يعني چي صرف د اسلام نوم پر پروت دی ددې معنا داده چي په واقع کي خو مسلمانان نه دي) المتسمين باهل السنة والجماعة (يعني خپل ځانونه يې په اهل السنة والجماعة سره معرفي کړي دي، يعني په واقع کي اهل السنة والجماعة نه دي) کيف اتخذوا هذه العظيمة ماذهباً (يعني دوی څرنگه گرځولي دي دا لوی دروغ يعني رؤيت د خدای ﷻ په جنت کي ستا خپل

مذهب) ولا يغرنک تسترتهم بالبلكفة فانه من مصوبات اشياخهم (يعني تا دي خطائه باسي چي دوی په دروغو ځانونه اهل السنة والجماعة معرفي کوي، ولي چي دا د هغو غمو څخه دی چي شیخانو پر دوی تپلی دی) والقول ما قال العدلية فيهم (او صحيح قول هغه دی د عدلیه وو یعني معتزله چي خپل ځانونه اهل عدل بولي، ددوی په باره کي يې ويلي دي.

لجماعة سموا هواهم سنة لكنهم حمر لعمري مؤكفة

هر آئينه هغه جماعت چي دوی مسمی خواهشاتو نفسيه ته ددوی سنت وايي يعني اهل السنة لکن دوی خره دي زما دي قسم په خپل عمر سره او کمبړي په خولو کي دی.

**درويش وايي**: چي بعض اهل السنة والجماعة ورده ته په دغو ابياتو جواب ورکړی دی.

عجبنا لقوم ظالمين تلقبوا بالعدل مافيهم لعمري معرفة

تعجب دی و هغه قوم ته چي ظالمان دي او ځان يې معرفي کړی دی په عدل سره چي دغه معتزله دي چي نسته په دوی کي زما دي په خپل عمر قسم وي يو لږ معرفت هم. نو تنوين د معرفي لپاره د تقليل دی.

قدجائهم من حيث لا يدرونه تعطيل ذات الله مع نفي الصفة

او دوی ته راغلی دی له داسي ځايه څخه چي دوی په ځان نه پوهېږي يعني چي دا د اسلام مسلک دی او که د فلاسفه وو. هغه څه چي دوی معطل ګڼلی دی د خدای ﷻ له ټولو افعالو څخه، او سره د نفي صفاتو د خدای ﷻ، ولي چي د معتزله مذهب لکه فلاسفه دادی چي ان الواحد لا يصدر عنه الا واحد. نو چونکه خدای پاک يو دی نو يو عقل يې اول پيدا کړی دی وبس. په عقل اول کي چونکه يو صفت د وجوب غيري و نو په هغه جهت يې عقل ثاني پيدا کړی. او يو جهت د امکان ذاتي وچي په هغه جهت فلک اول پيدا کړي ثم وثم الى ان يصير العقول عشرة والافلاک تسعة، او دا مذهب ددوی د صريح قرآن سره منافي دی "والله خلقكم وما تعملون، ان الله يخلق مايشآء" الى غير ذالک من الآيات الدالة على

خالقیته تعالی وربوبیته تعالی لکل شئ، او هغه ډله نفي د صفاتو د خدای ﷻ هم کوي ولې چې دوی لکه فلاسفه وای چې صفات د خدای عین ذات دي.

وقال المولی ابراهیم رحمه الله في رد مقالتهم.

رضیاً کتاب الله للفصل بیننا وقول رسول الله اوضح فاصل
وتحریف آیات الله ضلالة ولیس بعدل رد نص الدلائل

**پوه سه**: چې د خدای ﷻ د آیتو تغیر معتزله کوي مثلاً قوله تعالی وجوه یومئذ ناضرة الی ربها ناظرة، معتزله یې تحریف داسې کوي الی ثواب ربها ناظرة او مثلاً والله خالق کل شئ، دوی تحریف داسې کوي ای بالوسائط الی غیر ذالک من تحریفاتهم وتهویشاتهم. او عدل نه دی رد د تصریح د دلائلو یعني د قرآن او احادیث مبارکه وو.

وتضلیل اصحاب الرسول وذمهم وتصویب رایٔ النظام و واصل

او گمراه بلل د اصحابو د رسول الله ﷺ او د هغو ذم ویل چې معتزله او شیعه یې دواړه وایي چې د خلافت حق بعد رسول الله ﷺ لعلي رضی الله عنه. او ابوبکر صدیق، عمر فاروق، و عثمان رضی الله عنهم ته غاصبان وایي او ډېر بد او پوچ ورته وایي. او صواب گڼل د نظام معتزلي او د واصل معتزلي د رأیي.

**دروېش وایي**: چې احادیث صحیحه په روایت د بخاري او مسلم او اصحاب السنن متواترة المعنی دي په رد کې د معتزله وو د قول بلکې د جمیع اهل هواً من الشیعة والکرامیة وغیرهما. نو د هغه احادیثو مبارکه وو چې ستفترق امتي ثلاث وسبعون فرقة کلهم في النار الا الناجیة. مصداق د ناجیه بدون تعصب والاعتساف دغه فرقه ده چې مسمی په اهل السنة والجماعة سره ده.

ولو کان تکذیب الرسول عدالة فاعدل خلق الله عاص بن وائل

که تکذیب د رسول الله ﷺ عدالت وای لکه معتزله چې خپل ځانونه اصحاب عدل بولي او سره د هغه متواترة المعنی احادیث د رسول الله دروغ بولي، نو لوی عادل د خدای ﷻ په مخلوق کې به عاص بن وائل وای چې یو سرسخت دښمن او مکذب د رسول الله ﷺ و.

فلولاک جار الله من فرقة الهویٰ لکنت جدیراً باجتماع الفضائل

که نه وای ته یا جار الله (په حذف د حرف نداً، جار الله د مخشري لقب دی) له دلي څخه د اهل هوا یعني معتزله. نو ته به مجمع د علومو د فضائلو وای مثل النحو والادب والمعاني والبیان وغیرها، یعني خپل فضائل دي په دې بیالول چي معتزلي یې.

**درویش وایي:** چي مظهري رحمه الله په روایت د بغوي رحمه الله له کعب احبار څخه داسي روایت نقل کړی دی چي موسی علیه السلام په تورات کي ولیدل نو یې داسي وویل اني اجد یعني في التوراة امة خیر الامم اخرجت للناس یأمرون بالمعروف وینهون عن المنکر ویؤمنون بالله وبالکتاب الاول وبالکتاب الاخیر، ویقاتلون اهل الضلالة حتی یقاتلون الاعور الدجال رب اجعلهم من امتي قال یا موسی هي امة محمد ﷺ، دا خبره یې دومره اوږده کړې ده چي پوره صفحه یې په ډکه کړې ده والله اعلم چي بغوي رحمه الله په کوم سند سره دا خبره و کعب الاحبار ته رسولې ده چي په سند کي یې څوک خپل نظر ښکاره کړي، په بخاري، مسلم، ابو داؤد، ترمذي، ابن ماجه او نسائي کي خو دا حدیث نسته. او داغه رنګه په طحاوي، موطأ د امام مالک رحمه الله او په موطأ کي د امام محمد رحمه الله هم دا حدیث نسته.

وَكَتَبْنَا لَهُۥ فِى ٱلْأَلْوَاحِ

او موږ نوشته کړه و موسی علیه السلام ته یعني ملکو نوشته کړه په امر زموږ په تختو کي، چي هغه تختې یا اووه یا لس وې، او په حدیث شریف کي راغلي دي چي دا تختې له سدره څخه د جنت را ایستل سوي وې چي هره تخته دوولس ګزه وه او حسن بصري رحمه الله دا قدر ویلي دي کانت الالواح من خشب، او کلبي رحمه الله وایي چي د زبرجد وې، او سعید بن جبیر وایي چي د یاقوت احمر وې. او ابن جریح وایي د زمرد وې، په هر صورت جبرائیل علیه السلام خدای جل جلاله امر کړی چي دا تختې یې له جنت عدن څخه راوړې فکتبها بالقلم الذي کتب به الذکر والمداد من نهر النور.

**درویش وایي:** چي نور روایات هم مظهري راوړي دي مطالعه یې کړه.

مِن كُلِّ شَىْءٍ مَّوْعِظَةً وَتَفْصِيلًا لِّكُلِّ شَىْءٍ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ

له هر شي څخه يعني چي بني اسرائيل ضرورت ورته لري له امورو څخه د دين "موعظة" يعني اوامر او منهيات چي له ترک څخه د اوامرو او لـه کولو څخه د منهياتو دي وبېربږي، په قاموس کي وايي "وعظه موعظة ذكره مايلين قلبه من الثواب والعقاب" نو موعظة مصدر ميمي دی، او مفصل بيان د هر شي من الحرام والحلال والحدود والاحكام من الفرائض والواجبات.

**پوه سه:** چي "تفصيلاً" بدل دی د "كل شئ" لانه في محل النصب چي مفعول به د "كتبنا" دی وکلمة من مزيدة لاتبعيضية ای کتبنا له كل شئ من المواعظ وتفصيل الاحكام. مقاتل ﷫ وايي چي په اوله لوحه کي د تورات دا نوشته وه اني انا الله الرحمن الرحيم لاتشركوا بي شيئاً ولاتقطعوا السبيل ولاتزنوا ولا تعقوا الوالدين "فخذها" عطف دی پر "كتبنا" په اضمار د قول ای فقلنا خذها. ولي بېله تقديره د قلنا يلزم عطف الانشا على الاخبار او ضمير مونث راجع دی يا الواح ته يا "وكل شئ" ته ولي هغه شی په سبب د دخول د کل چي معنی د اشياو دي يا د رسالاتو ته والاحوت هو الاول لمقرب المرجع والثالث ابعد لبعد المرجع والثاني بين بين "بقوة" يعني په قوت د زړه او په صحيح عزيمت سره او په جد او اجتهاد سره لئلا يقع الفتور في اجرائها.

## وَأْمُرْ قَوْمَكَ يَأْخُذُوا بِأَحْسَنِهَا ۚ

او امر کړه قوم ستا يعني بني اسرائيل چي اخستل دي کوي يعني عمل دي کوي په هغه ډېر ښه د الواحو يا د رسالاتو كمامر من قبل قريباً.

**پوه سه:** چي كلمه د باً زائده ده په مفعول کي بعض مفسرين وايي چي له احسن څخه مراد عزيمت دی په هر عمل کي او له حسن څخه مراد رخصت دی په عمل کي مثلاً روژه نيول په سفر کي عزيمت دی او نه يې نيول رخصت دی. يا مثلاً دري واره پريول د اعضاؤ په اوداسه کي سنت او عزيمت دی او يو يا دوه واره پريول يې رخصت دی وعلى فقس. او بعض مفسران وايي چي مراد له احسن څخه تفضيل پر غير نه دی. ولي هر شی چي په کتاب الله کي وي هغه حسن بالغ غاية الحسن دی لايحتمل النقيض، ولا يجوز انيكون شئ حسناً منه.

نو دا له دې قبيلې څخه دی چې يو سړی ووايي چې دوبی د پر تود دی تر ژمي، نو په ژمي کې خو هيڅ ګرمي نشته، دا تفسير د قطرب رحمه الله دی.

او بعض مفسران وايي چې له احسن څخه مراد فرائض، واجبات، سنن او نوافل دي يعني چې په فعل کې يې ثواب وي او له حسن څخه مراد غير د ماذکر دی يعني المباحات چې په فعل کې يې ثواب نه وي وفسر بغير ذالک.

سَاُورِيكُمْ دَارَ الْفٰسِقِيْنَ

ژړ دی چې زه به ووينم په تاسې کې دار د فاسقانو. بعض مفسرين وايي چې مراد له دار فاسقين څخه کورونه د فرعون او دده د قوم دي، او کورونه د عاديانو او د ثموديانو وامثالهم تاچې تاسې عبرت ځنې واخلئ. نو تاسې به فسق نه کوئ بمخالفة ما امرتم به من الاحکام في التوراة. نو په هر تقدير بهرول ددوی مراد دی. او يا مراد ځنې د سفر ځمکه ده، او ځمکه د جبابره او د عمالقه وو په شام کې، ومعنى الارائة الادخال على طريق الايراث. نو پر دې تقدير مراد ترغيب دی، او وعده د بني اسرائيلو سره، او سدي رحمه الله وايي چې مراد ځنې هلاک سوي ځايونه د کفارو اولينو دي، نو هم مقصود تحذير دی، او قتاده رحمه الله وايي چې هغه ځايونه مراد دي چې دوی په اسفارو کې و شام ته پر هغو ځايو تيرېږي من منازل عاد وثمود والقرون الذي اهلکوا، نو پر دې تقدير مقصود ددوی عبرت او تحذير دی، کما قال السعدي قدس سره.

پند ګير از مصائب ديګران — تانګيرند د يګران زتوپند
نرود مرغ سوی دانه فراز — چو ديګر مرغ بيند اندر بند

و ابعد التفاسير ما قيل دار الفاسقين مصيرهم في الآخرة الى جهنم. لانه ياباه سياق الکلام.

سَاَصْرِفُ عَنْ اٰيٰتِيَ الَّذِيْنَ يَتَكَبَّرُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ

ژړ دی چې زه به مصروفه کړم له آياتو څخه زما هغه کسان چې تکبر کوي په ځمکه کې بېله حقه.

**پوه سه:** چې د "بغير الحق" قيد اتفاقي دی، ولې چې تکبر خو وي ناحق.

تکبر عزازیل راخوار کرد بزندان لعنت گرفتار کرد

**درویش وایي:** چي ددې آيت ترجمې مفسرينو مختلفي کړي دي، سيد آلوسي بغدادي رحمه الله په روح المعاني کي وايي چي دا جمله په قول د شيخ الاسلام استيناف دی لپاره د تحذير د بني اسرائيلو له تکبر څخه چي موجب د عدم تفکر دی في الآيات المکتوبة في الواح التورات المتضمنة للمواعظ والاحکام، او نور آيات چي له جملې څخه د هغو ارائته تعالى دار الفاسقين. ومعنى صرفهم عنها منعهم بالطبع على قلوبهم، نو قريب به نه وي چي دوی دي فکر ووهي په دې آيتو کي او عبرت دي ځني واخلي، او دا طبع على قلوبهم له دې کبله څخه پيدا سوه چي دوی تينګ دي پر خپل تجبر او تکبر.

**يوه سه:** چي باب د تفعل لپاره د تکلف دی يعني يرون انفسهم کبراً ويرون ان لهم ارتفاعاً في العالم السفلى ومزيد على الخلق فلا ينتفعون بالآيات والنذر، او بعض مفسرين وايي چي معنا د آيت داده ساصرفهم عن ابطال آياتي بحذف المضاف عن آياتي المنزلة في التوراة او المعجزات او له دې څخه چي دوی دي نور د خدای جل جلاله لغوه او مړ کړي ددوی په خولو لکه فرعون چي دا قصد کړی وُ لکن آيات او معجزات پر ځای پاته سوله او فرعون له منځه ولاړی "والله متم نوره ولو کره الکافرون" او بعض مفسرين وايي ساصرف عن قبول آياتي المنزلة في التورات والتصديق بها بالحرمان عن الهداية لعنادهم الحق. وهذا التفسير راجع الى تفسير العلامة البغدادي رحمه الله کما لايخفى.

وَإِنْ يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَا يُؤْمِنُوا بِهَا

او که ويني دغه منکرين هر آيت منزلة في الکتاب او المعجزة المنصوبة لدرک الحق، دوی ايمان نه پر راوړي په سبب د عناد ددوی لکه کفارو د قريشو يا يهودانو د مدينې، او يا ايمان نه پر راوړي په سبب ددې چي دوی په خواهشاتو نفسانيه وو کي ډوب دي هغو ددوی عقول ورفاسد کړي دي لکه ويل سوي چي دي

الشمس شمس وان لم يرها عين الفرير
والعسل عسل وان لم يدرک طعمه فاه المرير (اى الصفراوي)

وَإِن يَرَوْا سَبِيلَ الرُّشْدِ لَا يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا

او كه دوی ووینې یعني په سترگو د سر لابعین القلب لار د هدایت په ښوونه د انبیأ کرامو او یا په موعظت د علمأ الحق، دوی نه گرځوي دغه لار د ځان لپاره یعني عمل نه پر کوي، ولې پر چې پر دوی نفس او شیطان غلبه کړې ده.

وَإِن يَرَوْا سَبِيلَ الْغَيِّ يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَكَانُوا عَنْهَا غَافِلِينَ ۞ وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَلِقَاءِ الْآخِرَةِ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ ۚ هَلْ يُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۞

او كه دوی ووینې لار د ضلال او گمراهې په ښوونه د نفس او د شیطان نو دوی هغه لار گرځوي د ځان لار د سلوک او تگ دا په سبب ددې چې دوی تکذیب کاوه د آیات زموږ. مراد له آیاتو یا آیات قرآنیه دي یعني چې دا آیات قرآنیه دوی من عندالله نه بلل بلکې افترأ د علیه الصلوة والسلام یې وبلل او یا مراد له آیات ځخه معجزات د علیه الصلوة والسلام دي چې دوی د هغو تکذیب کاوه یعني سحر او جادو یې باله. او دوی له هغو آیاتو ځخه غافله وه نه یې په آیاتو قرآنیه وو کې فکر واهه او نه یې معجزاتو ته د علیه الصلوة والسلام په غور کتل.

او هغه کسان چې تکذیب کوي د آیاتو زموږ چې آیات قرآنیه دي یا معجزات النبي ﷺ زموږ له خوا ځخه او تکذیب کوي په ملاقات د اخرت چې آخرت نه مني، لغوه اعمال ددوی یعني که بعض اعمال حسنه وکړي پر هغو ثواب خدای پاک نه ورکوي لعدم شرطها وهو الایمان. او دوی ته جزأ نه ورکول کېږي په ورځ د آخرت مگر د هغو شیانو چې عمل یې کاوه من الکفر والمعاصي. نو "هل" استفهام انکاري دی، نو ځکه استثنأ د الا ځندي صحیح سوه.

تکبر مکن زینها رای پسر — که روزی زدستش بر آیی بسر

**درویش وایي:** چې مقابل د تکبر تواضع ده. د تکبر اول عامل شیطان دی حیث قال انا خیر منه ای من حین امر بالسجود له.

تواضع بود خوی دین پر وران — تواضع بود خوی صاحب دلان

## وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوسٰى مِنْ بَعْدِهٖ

او جوړ کړی قوم د موسی ﷺ یعني بني اسرائیلو وروسته تر تګ دده ومیقات ته د خدای ﷻ د دېرشو شپو لپاره چي لس شپې یې پر زیاتي کړې چي ټلو ېښت شپې څنډي جوړي سوې "فتم میقات ربه اربعین لیلة"

**سوال**: دا کار چي وروسته په راسي یوازې سامري کړی ؤ، نو ګرده قوم ته یې ولي نسبت وکړی؟

**ځواب**: اکثره خلګ د موسی ﷺ د قوم په دغه کار کي ور شریک وه او راضي وه نو ددې نسبت مثال داسي دی لکه بنوا فلان قتلوا مع ان القاتل واحد منهم.

**فائده**: د بعض مفسرینو په نېز "اتخذ" متعدي و دوو مفعوله ته دی، اول مفعول یې "عجلاً" دی او مفعول ثاني یې محذوف دی یعني "الها" نو دغه مفسر اتخذ په معنی د صیر بولي، نو ځکه یې ترجمه داسي کړې ده ای صیروا العجل الهاً.

## مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهٗ خُوَارٌ

یعني د هغو زېوراتو څخه چي د بني اسرائیلو ښځو د قوم فرعون له ښځو څخه په عاریت راوړي وه په بهانه د یوه واده هغه وخت چي موسی ﷺ او بني اسرائیلو اراده د وتلو درلوده له مصر څخه.

**سوال**: دا زېورات خو د بني اسرائیلو نه وه، نو څرنګه یې اضافت و بني اسرائیلو ته وکړی؟

**ځواب**: دا حلیه او زېورات خو ددوی په لاس کي وه چي فرعون او قوم یې هلاک سوه دوی یې مالکان سوه.

**یوه سه**: چي "عجل" د غوا ګیلګي (سخندر) ته وایي چي جمع یې عجاجیل ده

**فائده**: دا عجل سامري (چي اصل نوم یې موسیٰ ؤ او منسوب و سامره ته ؤ چي د یوې قریې نوم دی) او دی زرګر ؤ، نو څه وخت چي موسی ﷺ لس ورځي وځنډېدی کمامر، نو سامري وبني اسرائیلو ته وویل چي سبب د ځنډ د موسی ﷺ دادی چي ستاسي سره زېورات د آل فرعون موجود دي، نو خدای

پاک تاسي په دغه گناه ونیولاست او موسی علیه السلام یې درڅخه ورک او منع کړی نو ورسئ هغه زیورات تولیه راوړئ چې وه یې سوځو شاید چې موسی علیه السلام به بیرته راسي، خلکو یې په خوله وکړه او زیورات یې تولـه جمع کړه او سامري خپل حصه زیورات هم راوړه تولیه یې و اور ته واچول، نو سامري د شپې دا گیلگی جوړ کړی.

**پوښتنه**: باعث پر سامري څه و چې تخصیص د گیلگي یې وکړی نه د بل حیوان؟

**ځواب**: سامري ولیدل چې د بني اسرائیلو د غوایي و عبادت ته شوق کېږي، ولي هغه وخت چې دوی پر عمالقه وو تېرېدلـه او هغـو د بتـانو پـر شکل د بقر عبادت کاوه، نو بني اسرائیلو و موسی علیه السلام ته وویل اجعل لنا الها کمالهم الهة "جسداً" بدل دی من "عجلاً" ومعنی جسداً بدناً.

**پوه سه**: چې ابن عباس، حسن او قتاده او یو جماعت مفسرینو ویلي دي چې سامري چې دا گیلگی جوړ کړی، نو په خوله کي یې د جبرائیل علیه السلام د پښو خاوري ورواچولې، مظهري وایي فصار ذا لحم ودم.

**درویش وایـي**: چې د سامري د قصې بیان او د سبب د معرفت د سامري جبرائیل لره او ددې خاورو د تاثیر بیان به په تفسیر کي د سورت "طٰه" به راسي ان شاء الله تعالی "لـه خـوار" یعني ده ناري د گیلگي (سخندر) وهلې، راویان وایي چې هر وخت به دا گیلگي ناره وکړه دوی به پر سجده ورته پرېوتل چې هغه به ساکت سو دوی به سرونه راپورته کړه، سدي رحمه الله وایي چې دا گیلگي به ناري وهلې او تگ یې هم کاوه، او وهب وایي چې خوراک یې کاوه او تگ یې نه کاوه وهذا ضعیف جداً.

**درویش وایي**: چې د ډېرو خلکو په زړونو کي دا سوال ورگرځي چې دا د زیوراتو گیلگی چې سامري ورجوړ کړی او بیا خاوند د لحم او دم سو کما قاله المظهري رحمه الله نو سامري ته څه ضرورت وُ چې دومره تکلیفونه او زیورات یې ضائع کوله خو د شپې به تللی وای یو د غوا گیلگی به یې رانیولی وای؟

**ځواب**: باعث پر سامري دا وُ چې ددوی دمخه سره گیلگی اولاً د زیوراتو جوړ

کړی او چي په خوله کي يې خاوري ورواچولې ذا لحم او دم وګرځېدی او ناري د ګيلګي يې وېلې دا د تعجب وړ خبره ده. نو ځکه سامري ورته وويل هذا الهكم واله موسى. او دوی سجدې ورته شروع کړې، او دوی څلوېښت ورځي دې ګيلګي ته سجدې وکړې، نو خدای پاک ودوی ته په عوض کي د يوې ورځي يو کال سرګرداني وربښه کړه په مقام تيه کي کمامر، وسياتي ان شاالله تعالى.

**پوه سه:** چي د څلوېښتو ورځو عبادت کول د ګيلګي مبني پر دې دی چي په اول د ورځي چي موسى ﷺ طور ته ولاړی سامري دا ګيلګی جوړ کړی او له تېر سوي بيان څخه چي موسى ﷺ چي لس ورځي وځنډېدی، نو سامري دا کار وکړی نو د ګيلګي عبادت خو لس ورځي بني اسرائيلو وکړی والله اعلم بالصواب.

**درويش وايي:** چي صاحب د روح البيان خو هم اول دا ويلي ده لکه مظهري صار دماً ولحماً او روح المعاني هم ويلي ذي لحم ودم، لکن وروسته روح البيان په قيل سره دا هم ويلي دي چي هغه ګيلګی چي سامري جوړ کړی له زېوراتو څخه پر هغه صورت باقي ؤ چي خاوري به يې په خوله کي ورواچولې پر هغه صورت به يې ناري د ګيلګي وهلې وهذا عجب من الاول لکن رده المظهري، والله اعلم بالصواب.

**فائده:** په شپږ لکه بني اسرائيلو کي دوولس زره پاته سوه، نورو ټولو و ګيلګي ته سجدې کولې او رقص يې ورته کاوه.

**درويش وايي:** چي قرطبي په خپل تفسير کي د طرتوشي رحمه الله څخه نقل کړی دی چي له ده څخه چا پوښتنه وکړه چي يو قوم چي په يو ځای کي سره جمعه سي يعني پير او مريدان او يو قاري پر دوی لږ قرآن ووايي، او بيا وروسته يو غزلي شعر شروع کړي، نو خلګ رقص ورته کوي او دريږي او ډولونه ورته وهي او نور آلات د لهو ولعب. آيا ددې په مجلس کي حضور روا دی؟ ده په جواب کي ورته وويل چي مذهب د صوفيه کرامو خو دادی چي دا سي کار ضلالت او جهالت دی وما الاسلام الا کتاب الله ﷻ وسنة رسول الله ﷺ، و اما الرقص والتواجد فاول من احدثه اصحاب السامري فهو دين الكفار وعبدة العجل.

او په حدیث کې د بخاري و مسلم وغیرهما دلسې راغلي دي چې نبي ﷺ به د صحابه کرامو ﷺ سره ناست وُ، نو اصحاب کرام به په ډېر وقار او اطمنان سره ناست وه کان علی رؤسهم الطیر، او و سلطان ته د مسلمانانو او نائبانو د سلطان ته دا وظیفه ده چې ورته کسان په هیڅ ځای کې پرې نږدي خصوصاً في المساجد او هیڅ چا ته نه ده روا چې ایمان یې پر خدای ﷻ او پر رسول ﷺ او په ورځ د آخرت وي چې د ورته کسانو په مجلس کې به حاضرېږي او یا به پر دغه باطل کار کومک وسره کوي. وهذا مذهب ابي حنیفه، ومالک، والشافعي، واحمد، وغیرهم من ائمة المسلمین رحمهم الله تعالی اجمعین، روح البیان جز ۹ سورة الاعراف ص ۲۴۳.

**درویش وایي:** چې داسې څوک چې هیڅ په ځان نه پوهېږي او حرکات یې لکه د مرتعش وي او بغاري او ناري او وجد او تواجد کوي. مشائخ هغ سرې ملامت نه بولي لانه معذور، سعدي شیرازي ﷫ ددغسې خلګو په شان کې وایي.

مکن عیب درویش مدهوش ومست — که غرقست ازان می زند پاودست
نگویم سماع ای برادر که چیست — مگر مستمع رابدانم که کیست
گر از برج معنی پرد مرغ او — فرشته فروماند از سیر او
اگر مرد بازی و لهو است ولاغ — قوی تر شود دیوش اندر دماغ
چه مرد سماعست شهوت پرست — باو از خوش خفته خیزد نه مست

**درویش وایي:** چې قول د سعدي قدس سره هو الفرق بین العاشق الحقیقي وبین متبع الهوی النفساني، وایضاً بین المحق والمبطل من المرشدین في الزمان الحاضر والله اعلم بالظواهر والسرائر.

**درویش وایي:** چې د عاشقانو د طائفې سید او پیشوا د حقیقي مرشدانو خواجه عبد الله انصاري هروي قدس سره درکتاب فیض مآب خود چنین درر فراګنده را درنظم نفیس خود جمع نموده وچنین میګوید

حبذا قومی که داد بندګی را داده اند
ترک دنیا ګفته اند وزهمه ازاده اند
روزها باروزها درګوشها بنشسته اند

نفس خود را قهر کرده روح کرده پرفتوح
زاد تقوی بر گرفته بهر مرگ آماده اند
طرفة العین نبوده فاغل نبوده از حضرت ولي
سیلها با این همه از دیدها بکشاده اند
یکزمان از نوحه همچون نوح فارغ نیستند
همچو یحی گوئیا از بهر زاری زاده اند
زآب تاب تب الی الله غسل کرده آن کسان
روی خود بر خاکپای اسجدوا بنهاده اند
ربناگو یند از ان لبیک عبدی بشنوند
جمله سرمست الست از جرعه این باده اند
راحتی دیدند وذوقی یافتند از انس وجان
روز وشب در کنج خلوت برسر سجاده اند
تابدنیا آمدند از کلبه کتم عدم
سوی حضرت جز نیاز وناله نفرستاده اند
پیر انصاری تو میدانی که ایشان کیستند
فرقه بی کرد پروز مرة دل ساده اند

درویش میگوید: نام نهاد مرشدان زمانه حاضر وچندین زمان قبل ازین پیری ومریدی را بضاعت جمع آوری نقود ونفقه عیال گردانیده اند و از مریدان مثل درویش خرقه بدوش چنده وصول میگرند وعیش ونوش ومفروشات عالیه پیر صاحب از امور مذکور مریدان هزار گونه بالاتر میباشد واگر درخانه مرید خود مهمان شود کدام مصلی یا قالین وغیره که درخانه مرید به بینند بزبان حال سوال میکنند ومیگویند این چه خوب مصلی است وغیره مرید مسکین میگوید که صدقات شوم این مصلی وغیره برای حضرت شما است پس مرید آن چیز را بردوش گرفته همراه پیر صاحب تاخانه مرشد خود میبرد ودرعین حال مرید بیچاره خوش باشد که پیر صاحب فلان چیز مرا قبول نموده.

این سخن پایان ندارد بازگرد　　سوی تفسیر کلام الله گرد

أَلَمْ يَرَوْا أَنَّهُ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَلَا يَهْدِيهِمْ سَبِيلًا

آیا نه وینی یعنې نه پوهیږي دغه خره چي ګیلګی یې خدای وګرځاوه په دي چي دغه ګیلګی ددوی سره خبري نه سي کولای او نه ودوی ته ورښوولای سي یوه لار، یعنې دغه چې دوی یې عبادت کوي قادر نه دي چې پر هغو کارو چې افراد د بشر پر هغه کارو قدرت لري چې عبارت له خبرو څخه دی او یا لار ښوونه و یو چاته، نو څرنګه دوی ګمان پر کوي چې دا معبود د دوی به خالق السموات والارض وما فیها وي، والمعبود یلزم انیکون کذالک یعنې خالق السموات والارض ومافیهما وي.

اتَّخَذُوهُ وَكَانُوا ظَالِمِينَ ﴿۱۴۸﴾

دوی وګرځاوه دغه ګیلګی معبود او دوی په سبب د دغه اتخاذ ظالمین دي.
د ظلم معنا ده وضع الشیئ في غیر موضعه او دوی هم دغسي وکړه چي عبادت چي حق دی د خالق السموات والارض په جماد ګیلګي کي یې کښېښو.
**پوښتنه:** د "اتخذوه" دوهم وار څه ضرورت و، آیا داسي کافي نه وه وکانوا ظالمین؟
**ځواب:** کافي خو وه لکن لپاره د مزید ذم ددوی یې اتخذوا دوهم وار راوګرځاوه، در تفسیر حسیني میګوید، که در لطائف امام قشیري رحمة الله علیه مذکور است که چه دوري است میاني امتی که مصنوع خودرا پرستند وامتي که عبادت خالق وصانع خود میکنند، بیت

آنرا که تو ساختی نسازد کارت سازنده کارت دردو عالم همان رب

وَلَمَّا سُقِطَ فِي أَيْدِيهِمْ

**پوهه:** چي "سقط" پر صیغه د مجهول مسند دی و وروسته ظرف ته وهذه العبارة کنایة عن شدة الندم، یقول زجاج معناه سقط الندم في ایدیهم ای في قلوبهم ونفوسهم تشبیهاً لما یحصل في القلب والنفس وهو الندم لما یحصل في الید فیکون بمرئي منه او عام مفسرین وایي چي سړی چي سخت پښېمانه سي پر یو کار خپل لاس په خوله کي ورکړي او له ډېره غمه څخه یې په غاښو چیچي

نو دده لاس گویا په خوله کي ولوېدی، د عربو دا محاوره ده چي هر څوک پښېمانه سي پر یو کار دوی وایي فلان سقط في يده.

**پوه سه:** چي دا پښېمانه دوی هغه وخت وکړه چي موسی علیه السلام راغلی او دوی ته یې ډېر عتاب او سرزنش ورکړی پر عبادت د عجل.

وَرَاَوْا اَنَّهُمْ قَدْ ضَلُّوْا

او ددوی علم راغلی پر دوی چي په تحقیق موږ ګمراهان وو په عبادت العجل او توبه یې وکښل او داسي یې وویل.

قَالُوْا لَىِٕنْ لَّمْ یَرْحَمْنَا رَبُّنَا وَ یَغْفِرْ لَنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِیْنَ

دوی وویل که چېري پر موږ رحم ونه کړي رب زموږ، او موږ ته بخښنه ونه کړي یعني د عبادة العجل، نو حتماً او یقیناً موږ یو له ډلې څخه د تاوان کونکو یعني په دنیا او اخرت کي، په "لئن" کي لام موطئه د قسم محذوف دی یعني جواب د قسم محذوف دی والتقدیر والله.

وَلَمَّا رَجَعَ مُوْسٰۤى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ اَسِفًا

چي رجوع وکړه موسی علیه السلام وخپل قوم ته یعني وروسته تر څلو ښتو ورځو په داسي حال کي چي په غضب ؤ یعني ددوی د بت پرستی له سببه. ابو الدرداء رضی الله عنه وایي چي شدید الغضب ؤ. او ابن عباس رضی الله عنه وایي چي ډېر غمجن هم ؤ په سبب مذکوره سره.

قَالَ بِئْسَمَا خَلَفْتُمُوْنِیْ مِنْۢ بَعْدِیْ

وه یې ویل وعبدة العجل ته بد کار ؤ هغه تاسي زما په خلافت کي یعني تاسي ما خپل قائم مقام وګرځولاست تاسي دا فعل مذموم غایة الذم چي عبادت د عجل ؤ وکړی، او بعض مفسرین وایي چي خطاب و هارون علیه السلام ته ومن معه من المؤمنین دی "من بعدي" تر ما وروسته یعني چي زه و میقات ته د رب جل جلاله ولاړم، او یا معنا داده چي وروسته تر دې چي تاسي زما څخه واورېدی توحید د خدای جل جلاله او تنزیه له شرک څخه في الخلق والعبادة.

**يوه سه**: چي "بئس" له افعال ذم څخه دی، او کلمه د ما موصوفه ده، تفسير دی ضمير مستكن په بئس كي ای بئس شيئاً او مخصوص بالذم محذوف دی، والتقدير بئس خلافة خلفتموني خلافتكم هذه يعني چي ستاسي په حضور عبادت العجل كېدی، دا هلته دی چي مخاطب هارون عليه السلام و من معه من المؤمنين وي، او كه مخاطب عبدة العجل وي، نو يې معنا داده چي بد كار وكړی يا عبدة العجل تر ما وروسته او زما په غياب چي زه ميقات د رب جل جلاله تللی وم.

## اَعَجِلۡتُمۡ اَمۡرَ رَبِّكُمۡ

آيا تاسي تلوار وكړی تر امر د خدای جل جلاله يعني چي زه يې څلوېښت ورځي و ميقات ته غوښتی وم لپاره د اعطاً التورات او تاسي دا توهم وكړی چي موسى مړ دی نو مو دين ته چي توحيد او تنزيه ده تغير وركړی وشرک ته، لكه بعض نورو امتو هم دين د خپلو انبياً كرامو عليهم السلام تغير وركړی دی وروسته وفات د انبياً كرامو ددوی، والهمزة لانكار الواقع يعني دا كار منكر كار وكړی تاسو.

**فائده**: عجله عمل د شي، قبل الوقت كالصلوة قبل وقتها فلهذا اصارت العجلة مذمومة في الشرع بخلاف السرعة فانها العمل بالعبادة في اول وقته فلذا كانت غير مذمومة كه څه هم بعض وخت ممدوح هم نه وي لكه صلوة الظهر في اول وقتها في الصيف عند ابي حنيفة رحمه الله.

## وَاَلۡقَى الۡاَلۡوَاحَ

وايې چولې هغه تختې چي تورات پكښې نوشته وُ پر مځكه د سخت غضب له وجهې په لار كي د خداى جل جلاله، د ابن عباس رضي الله عنه په صحيح حديث ثابته ده چي ده ويلې دي چي تورات په اوو تختو باندي د زبرجد نوشته وُ وفيها بيان كل شئ وموعظة وغير ذالک، نو موسى عليه السلام چي راغلى او قوم يې مجتمعين پر عبادة د عجل وليدله، تورات يې له لاسه ايله كړی، نو تختې ماتې سوې، نو خداى جل جلاله شپږ حصې بېرته پورته كړې يوه حصه پاته سوه، بغوي رحمه الله وايې چي هغه تختې چي اخبار بالغيب پكښې وُ هغه پورته سوې، او هغه حصه چي په هغې كي توحيد او نور عقائد او بيان د حلال او حرام او موعظة پكښې وُ هغه پاته سوه.

**سوال:** بیان د نبوت د علیه الصلوٰة والسلام او حلیه دده مبارک خو په تورات کي اوس هم سته نو دا اخبار بالغیب ؤ؟

**ځواب:** دا که اخبار بالغیب هم ؤ لکن د عقائدو او موعظة په سبب پاته سو، یعني ایمان بالنبي اخیر الزمان محمد ﷺ د معتقداتو له قسمه څخه ؤ. لکه چي یهودانو دمخه تر ظهور د نبوت دده مبارک طلب د فتح پر مشرکانو به یې په برکت د نبي اخیر الزمان کاوه کما یدل علیه قوله تعالی "وکانوا یستفتحون به" لکن وروسته تر ظهور د علیه الصلوٰة والسلام او مدینې ته تر هجرت د یهودانو ملا یانو هغه آیتونه چي نعت د علیه الصلوٰة والسلام پکښې ؤ یا یې پټ کړه یا یې بعض د نعتو دده مبارک بدل کړه حسداً وطلباً للرياسة على عوامهم او لپاره د بډو چي ملا یانو به یې له عوامو څخه اخستې "فلما جائهم ماعرفوا کفروا به" واشتروا ثمناً قلیلاً"

**پوښتنه:** موسی علیه السلام خو خدای ﷻ په طور کي خبر کړی په دغه فتنه د قوم یعني عبادة العجل "انا فتنا قومک" نو د تورات تختې یې یا په طور کي یا پر لاري ولي نه غورځولې؟

**ځواب:** له ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چي احمد او طبراني راوړی دی قال قال رسول الله ﷺ لیس الخبر کالمعاینة ان الله اخبر موسی بما وضع قومه في العجل فلم یلق الالواح فلما عاین ماضعوا القی الالواح فانکسرت کمامر عنقریب.

**سوال:** موسی علیه السلام ته په اخبار د خدای ﷻ په طور کي یقین نه ؤ حاصل په معاینه سره ورته حاصل سو او که څرنګه!؟

ځواب: په دې آیت کي فکر ووهه:

"وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِـۧمُ رَبِّ أَرِنِى كَيْفَ تُحْىِ ٱلْمَوْتَىٰ ۖ قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِن ۖ قَالَ بَلَىٰ وَلَـٰكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِى ۖ قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِّنَ ٱلطَّيْرِ فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ ثُمَّ ٱجْعَلْ عَلَىٰ كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا ثُمَّ ٱدْعُهُنَّ يَأْتِينَكَ سَعْيًا ۚ" (البقرة)

حاصل د جواب دادی چي په معاینه سره خو اطمنان قلبي پیدا کېږي وهو فوق مرتبة الیقین کما دل علیه الآیة المتلوة فافهم غایة الفهم.

وَاَخَذَ بِرَاْسِ اَخِيْهِ يَجُرُّهٗۤ اِلَيْهِ ؕ قَالَ ابْنَ اُمَّ

او ونیوی موسی علیه السلام وروز دده هارون علیه السلام تر سر یعني تر وېښتانو د سر بحذف المضاف او راکش یې کړی د ځان و خواته، بغوي رحمه الله وايي چې د ځنو او ږېري یې ونیوی.

**درویش وایي:** چې له دې آیت څخه ږېري نه فهمېږي، نو ولې بغوي ږېره ورسره راوړه البته په بل ځای کي د قرآن مبارک ږېره راغلي ده. د موسی علیه السلام دا خیال سو چې هارون په منع کي د قوم د ګیلګي د عبادت تقصیر کړی دی.

**پوه سه:** چې هارون تر موسی علیهم السلام درې کاله مشر ؤ او بني اسرائیلو ته تر موسی هارون محبوب ؤ لانه کان بطئ الغضب یعني حلیم ؤ ژر درد نه ورتلی، وهذا منشأ توهم موسی علیه السلام في تقصیره في المنع کما لا یخفی.

**فائده:** دا تر وېښتانو کشول د هارون معاتبه وه ولا اهانة اعاذ الله موسی من ذالک.

**پوه سه:** چې اصل د "قال ابن ام" یا ابن امي حذف حرف الندا کما في قوله تعالی "یوسف اعرض عن هذا" ای یا یوسف، وروسته یې یا دا ای حذف کړه لدلالة کسرة المیم علیها تخفیفاً، وروسته یې کسره د میم په فتحه بدله کړه لزیادة التخفیف کما في الکافیة.

**تنبیه:** موسی او هارون علیهم السلام په مور او پلار کي سره ورونه وه لکن هارون مور ذکر کړه لپاره د جلب د شفقت لان الام اشفق علی الولد من الاب.

اِنَّ الْقَوْمَ اسْتَضْعَفُوْنِيْ وَكَادُوْا يَقْتُلُوْنَنِيْ ۫ۖ

په تحقیق قوم یعني عبدة العجل چې اکثره حصه د بني اسرائیلو هم دوی وه، زه یې په خیال ضعیفه ورغلم او زما په خوله یې نه کول، او قریب وه یعني دوی قصد کړی ؤ چې ما ووژني، حاصل د هارون علیه السلام د کلام دادی چې ما تقصیر په منع کي ددوی له عبدة العجل څخه نه دی کړی بلکې خپل توله جدجهد مي وکړی حتی دوی زه مغلوب کړم، نو ته توهم د تقصیر پر ما مه کوه.

﴿فَلَا تُشْمِتْ بِيَ الْأَعْدَاءَ وَلَا تَجْعَلْنِي مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ﴾

نو ته مه خوشاله کوه په ما سره دښمنان يعني داسي زما سره مه کوه چي سبب د خوشالي د دښمنانو وګرځي، په قاموس کي وايي چي شماتة اظهار د خوشالي دی په مصيبت او بلا سره د دښمن. او ته ما مه ګرځوه په انتقام او په غضب کي د هغه قوم سره چي ظالمان دي يعني عبدة العجل.

**پوښتنه:** موسی ﷺ چي دی د سر تر وېښتانو ونيوی او ځان ته يې راکش کړی، نو هغه فعل موسی ﷺ دده سره وکړی چي دښمنان په خوشاله سوه د هارون ﷺ د نهي څه معنا ده؟

**ځواب:** د هارون ﷺ مقصد دا وچي يا مذکور فعل ته ادامه ورنه کړي او يا تر هغه اشد کار ورسره ونه کړي، فافهم.

﴿قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَلِأَخِي﴾

وويل موسی (دا جمله مستانفه ده) ماته وبخښې زما ګناه چي ما کوم وضعيت د ورور سره وکړی بېله ګناه او موجب بلکي پر صرف توهم د تقصير في المنع، او زما ورور ته بخښنه وکړې که له ده څخه تقصير سوی وي په منع کي د عبدة العجل عن عبادته.

**پوښتنه:** چي موسی ﷺ اولاً استغفار د ځان لپاره وغوښتی، لپاره د راضي کولو د ورور په ابهام ددې چي زما ملامتيا وه چي ته مي د سر تر وېښتانو ونيولې او ځان ته مي راکش کړې او لپاره د دفع د شماتت د دښمنانو په ما فعل بهارون. او د ورور دپاره طلب د بخښني وکړی لپاره ددې چي دی محتاج دی و استغفار ته ولي چي عبدة العجل چي مرتدان وه له دين څخه، نو ده بايد جنګ ورسره کړی وای او تر خپل سر تېر سوی وای. او مظهري رحمه الله وايي چي د موسی ﷺ مقصود د ورور بخښنه وه ځان چي يې ورضم کړی لپاره د رضاً د ورور ودفعاً لشماتة الاعداً.

**درويش وايي:** چي له موسی ﷺ څخه خو تقصير وسو چي پر صرف احتمال د تقصير د ورور په منع کي د عبدة العجل يې دی د سر تر وېښتانو کشاوه، او

بیا مظهري لپاره ددې چي مقصود د موسی علیه السلام استغفار د ورور ؤ بلـه وجه د استغفار د ځان لپاره داسي بیـان کړې ده چي سنت د استغفار وبـل ته دادی چي سړی شروع خپل په استغفار کوي لپاره د دفع د توهم د ځان د تزکیـه، او بله وجه یې دا بیان کړې ده چي دعا وغیر ته وروسته تر استغفار د ځان اقرب واجابت ده فان الذنوب مانعة عن الاجابة.

**درویش وایي:** چي دا خبره د مظهري کـه څـه هم پـه عمومي خلګو کي صـحیح ده ولـي هر سړی پـه ځان کي ګنـاه لـري، نو بایـد تـر استغفار د بـل استغفار د ځان وغواړي، لکن مظهري خو د موسی علیه السلام د تقصیر منکر ؤ، صرف په ورور کي یې احتمال د تقصیر ؤ نو دلته به د مظهري قانون څرنګه تطبیق سي، الا ان یقال چي مظهري رحمه الله د موسی علیه السلام د ګناه منکر ؤ لکن په موسی کي پرتـه لـه دې زلات وه لـه قـسمه څخـه د حسنات الابرار سیئات المقربین، نو له دې کبله باید خپل د ځان لپاره یې استغفار د زلاتو ذمخه کړی وای، کما في قوله تعـالی خطاباً لسـید المرسلین صلی الله علیه وسلم "واستغفر لذنبک وللمؤمنین والمؤمنات فانه فسر الذنب المذکور في هذه الآیة بالذلة، یعني من قبیل حسنات الابرار سیئات المقربین لانه علیه الصلوة والسلام معصوم من الکبائر والصغائر لکه درویش چي ددې مسئلې پوره تحقیق کړی دی پـه نقل له صحیح کتابو څخـه پـه یـوه رسالـه کي چي نـوم یې کشف الغطاً عن عصمت الانبیاً دی چي د ډیرو کلو راهیسته کتاب فروشانو چاپ کړې ده، او په مکتبو کي موجوده ده، کـه څوک ددې مسئلې د تحقیق خواهشمند وي باید په مکتبو کي یې تر لاسه کړي وبالله التوفیق.

وَأَدْخِلْنَا فِي رَحْمَتِكَ ۖ وَأَنتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ ﴿١٥١﴾

او موږ داخل کړی ستا په رحمت کي یعني په دنیا او اخرت کي وبمزید الانعام علینا في الدارین او تـه اې خدایه ډېر رحم کونکی یې تر ټولو رحم کونکو پر بندګانو باندي، پښتانه وایي اې تر مور او پلار مهربانه خدایه پر موږ رحم وکړې د پښتنو دا قول ډېر زیبا دی او ددې سره پوره سمون لري.

﴿إِنَّ الَّذِينَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ سَيَنَالُهُمْ غَضَبٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَذِلَّةٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾

په تحقیق هغه کسان چي ګیلګی یې اله او معبود وګرځولی ژر دی چي دوی ته به ورسېږي غضب یعني اثار د غضب له جانبه څخه د رب ددوی یعني په دنیا کي وهو ما امروا به من قتل انفسهم کمامر في تفسیر سورة البقرة.

**پوه سه:** چي "غضب" چي منصوب سي وخدای ﷻ ته پر خپل معنا حقیقي نه دی بلکي په معنا د انتقام دی لان حقیقة الغضب ثوارن الدم في القلب للانتقام وهذا المعنی لایتصور في حق الباري تعالی کما لایخفی "وذلة آه" معطوف دی پر "غضب" یعني غضب او ذلت به دواړه په دي دنیا دوی ته ورسېږي او دا ذلت ددوی خروج ؤ له خپلو وطنو څخه په تسلط د بخت نصر البابلي پر دوی باندي یعني وروسته تر زماني د موسی علیه السلام او یا دا چي پر اولادو د هغو بالوسائط ذلت په دنیا کي راسي لکه چي پر بني قریضه و او بني نضیر چي خدای ﷻ علیه الصلوة والسلام او مؤمنان مسلط کړه چي بعض یې ووژل او بعض یې جلا وطنه کړه کما في الاحادیث الصحیحة.

**پوښتنه:** د نحو په کتابو کي وایي چي کلمه د "سین" لپاره د استقبال قریب ده او "سوف" لپاره د استقبال بعید ده او سره ددې چي تسلط د بخت نصر بابلي پر دوی، او یا تسلط د مسلمانانو پر بني النضیر او قریضه په سوو کلنو وروسته ؤ فما معنی السین في سینالهم؟

**ځواب:** هغه شی او کار چي تقدیر الهي پر هغه سوی وي که بعید وي هم قریب دی ولذالک قال العلماً ما ابعد مافات وما اقرب ما هوات.

﴿وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِينَ﴾

دغه سي ده جزا د درواغو ګویه، نو په قصده سره.

ابو قلابه رحمه الله وایي: نعم! والله جزا کل مفتر الی یوم القیامة ان یذله الله تعالی في الدنیا الی یوم القیامة. او سفیان بن عیینه رحمه الله وایي هذا جزا کل مبتدع الی یوم القیامة.

**درویش وایي:** چي كلام د سفيان منقوص دی. ولي چي د هر مبتدعان په دور حاضر کي پر سر قدرت او مستقل حکومتونه لري کما لا يخفى.

وَالَّذِينَ عَمِلُوا السَّيِّئَاتِ ثُمَّ تَابُوا مِنْ بَعْدِهَا وَآمَنُوا إِنَّ رَبَّكَ مِنْ بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَحِيمٌ

**درویش وايي:** چي مظهري رحمه الله په قرينه د سابق كلام چي په شان کي د بني اسرائيلو ؤ چي د سامري د گيلگي عبادت يي شلوبښت ورځي کړي ؤ، ددې آيت ترجمه يې داسي کړې ده يعني "الذين عبدوا العجل من قوم موسى ثم تابوا من ذالک" ای عبادة العجل وآمنوا يعني بالتوحيد بعد ما كفروا واشركوا بعبادة العجل "وقتلوا انفسهم" ای قتل من لم يعبد العجل الذين عبدوا العجل بامر الله تعالى "ابتغاً مرضات الله" نو په تحقيق ستا رب اي موسى عليه السلام وروسته تر توبې مبالغ المغفرة او رحيم دی وان كانت ذنوبهم عظيمة متكثرة. او ان سره له اسمه او خبره خبر د موصول دی يعني والذين آه انتهى بعضه بلفظه وبعضه بالترجمة، وبعضه بالزيادة من جانب العاصي لتوضيح كلام المظهري رحمه الله.

علامه بغداد السيد محمود الآلوسي رحمه الله په روح المعاني کي دا آيت جمله معترضه بولي په منځ کي د احوالو د بني اسرائيلو او د موسى عليه السلام او خاص يې په بني اسرائيلو پوري نه بولي لکه مظهري رحمه الله، ولي علامه بغداد داسي وايي والذين عملوا السيئات "ای سيئة كانت لعموم المغفرة ولانه لا داعي للتخصيص ای بني اسرائيل" ثم تابوا من بعدها "وهو تصريح بما يقتفيه ثم" وآمنوا، چونکه دلته دا سوال پيدا کيدی چي توبې لره خو ايمان شرط دی نو څرنګه ايمان وروسته تر توبې ذکر سو. نو آلوسي رحمه الله داسي جواب ورکړی دی وآمنوا "ای اشتغلوا بالايمان وما هو مقتضاه من الاعمال الصالحة وهو عطف على تابوا" يعني مراد له امنوا څخه حيقيت ايمان نه دی، ولي چي هغه تر توبې دمخه دی بلکې مراد اعمال صالحه دي التي هي من مقتضى الايمان وعدم الاصرار على السيئات، او بل جواب يې دا ورکړی دی چي آمنوا دي حال وي په تقدير د قد يعني وقد آمنوا ای قبل التوبة وروسته يې داسي ويلي دي چي پر هر

تقدير آمنوا ذكر د خاص دی بعد العام للاعتناءً به لان التوبة عن الكفر هو الايمان فلا يقال التوبة بعد الايمان كيف جائت قبله. او سید آلوسي نور جوابونه هم ورکړي دي د سوال مذکور.

**درویش وايي:** چي ابو نواس رحمه الله دا دوه په زړه پوري شعرونه د عاصیانو د خوشاله کولو لپاره راوړي دي.

يا ربي ان عظمت ذنوبي كثرةً فلقد علمت بان عفوك اعظم
ان كان لا يرجوك الا محسن فبمن يَلوذ ويستجير المجرم

او روح البیان لکه روح المعاني دا آیت جمله معترضه بولي او په بني اسرائیلو پوري يې خاص نه بولي، حيث قال والذين عملوا السيئات اى سيئة كانت ثم تابوا من تلك السيئات وآمنوا ايماناً صحيحاً خالصاً واشتغلوا بما هو من مقتضيات الايمان من الاعمال الصالحة.

**درویش وايي:** چي وبهذه العبارة دفع البرسوي رحمه الله السوال المذكور كالآلوسي وقد مر ذكره، قال المولى الرومي في المثنوي

گر سیه کردی تو نامهٔ عمر خویش ....... توبه کن زانها که کرد ستی تو پیش
عمر اگر بگذشت بخیش این دم است ....... آب تو بش ده اگر او بی نمست
چون بر آرند از پشیمانی انین ....... عرش لرزد از انین المذنبین

**وَلَمَّا سَكَتَ عَنْ مُّوسَى الْغَضَبُ أَخَذَ الْأَلْوَاحَ**

چي ارام سو د موسی عليه السلام غضب او درد په سبب د اعتذار د هارون او په پښېمانی. د قوم او په توبه د دوی، نو يې راواخستلې هغه باقي مانده تختې چي تورات باندي نوشته ؤ او شپږ حصې يې بیرته اسمانو ته پورته سوي وې او یوه حصه یعني اوومه حصه يې پاته سوه.

**سوال:** سکوت خو مقابل د تکلم دی، نو په ځای کي د سکت چي سکن راغلی وای ښه به نه وای او که څرنګه؟

**ځواب:** په عبارت قرآني کي مبالغه ده یعني دا غضب د موسی عليه السلام يې داسي وګرځاوه لکه يو امر پر ده په فعل بهارون عليه السلام، نو ځکه يې په سکت

تعبیر وکړی د سکن په ځای کې ګویا هغه آمر دده ساکت سو.

**درویش وایي**: چې ددې ځواب په روح البیان کي په ښه تفصیل سره ذکر دی او مظهري مجمله اشاره ورته کړې ده او روح المعاني یې نوع د مجاز بیان کړې ده حیث قال وفي الکلام استعارة مکنیة حیث شبه الغضب بشخص آمر علی موسی واثبت له السکوت علی طریق الاستعارة التخییلیة. او په دې کې یې طویل کلام کړی دی خو اخیراً یې دا ویلي دي ففي الکلام مبالغة وبلاغة لایخفی علو شانها، او قرطبي هم په خپل تفسیر کي ورته ځواب راوړی دی بلکې په ټولو تفاسیرو کي ځه استفاده او نقل ځندي کوم.

**درویش وایي**: چې حاسدانو ته ښه بهانه جوړه سوه چې ما سارق بولي دوی بیچاره ګان د نقل او د سرقه په فرق نه پوهیږي، خدای ﷻ دي انصاف ورکړي او په خپل جهل دې پوه کړي.

**وَفِي نُسْخَتِهَا هُدًى وَرَحْمَةٌ لِلَّذِينَ هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُونَ**

او په نسخه کي د الواحو هدی یعني لارښوونه وه د ګمراهي او د حق یعني الفرق والتمییز بین الضلالة والهدایة او رحمت و له عذاب څخه لپاره د هغه کسانو چې له خدای ﷻ څخه بیرېږي.

**پوه سه**: چې کلمه د لام په "لربهم" کي مزید ده لپاره د تاکید د عمل ده، او کسائي رحمه الله وایي چې کلمه د لام یې له دې سببه پر داخله کړه چې د فعل عمل په سبب د تاخیر ضعیف سو، وهذا تفصیل لما قبله کما في قوله تعالی للرویا تعبرون، او قطرب وایي چې لام په معنا د من دی یعني من ربهم. وهذا اوفق بعلم الصلات، او بعض علماً وایي چې لام د تعلیل دی یعني یرهبون من المعاصي لاجل خشیة ربهم، قوله "في نسختها" الواو حالیة ای والحال چې هغه چې نسخ سوي په الواحو کي او نقل سوي له اصل څخه چې لوح محفوظ دی، ولي نسخ عبارت دی له نقل څخه د اشکالو د کتابت وتحویلها من الاصل المنقول عنه یو سړی چې یو کتاب له بل کتاب څخه حرفاً حرفاً نقل کړي. نو دا سړی وایي نسخت هذا الکتاب من ذالک الکتاب ای نقلته منه، هذا ما قال بعض

المفسرين چي "نسخة" فعلة دی په معنا د مفعول ای المنقول عن غيره او عطا وايي ای فيما بقي منها، او ابن عباس رضي الله عنه او عمرو بن دينار رحمه الله وايي چي موسى عليه السلام چي الواح وغورځولې او ماتي سوې نو څلويښت ورځي ده روژه ونيول فردت اليه في لوحين.

**درويش وايي**: چي دا قول چي تول تورات او الواح په دوو تختو کي راوګرځول سو، لاينافي ما سبق چي شپږ تختې چي په هغو کي مغيبات نوشته وه هغه يکلخته ولاړې، نو مراد دادی چي هغه د عقائد او حلال و حرام او نور احکام چي پکښې وه هغه تخته هم ماته سوې وه، هغه تخته په دوو صحيح سالمو تختو کي راوګرځول سوه والله اعلم بالصواب.

## وَاخْتَارَ مُوسَىٰ قَوْمَهُ سَبْعِينَ رَجُلًا لِّمِيقَاتِنَا

او مختار کړه موسی عليه السلام له خپل قوم څخه اوويا (٧٠) کسان لپاره د ميقات زموږ يعني د هغه وخت لپاره چي موږ وعده ورکړې وه و موسی عليه السلام ته چي پر دغه به تاسي راځئ کوه طور ته.

**بوه سه**: چي په "قومه" کي من جاره محذوف دی ای من قومه، يعني اختار چي متعدي په من سره ومفعول ته سي حرف جر ځندي حذف کړي او فعل يې په خپله متعدي کړي چي دې ته په نحو کي حذف او ايصال وايي.

**فائده**: دا اوويا کسان د هغو بني اسرائيلو څخه وه چي عبادت د عجل يې نه و کړی. حاصل د قصې دادی چي خدای پاک موسی عليه السلام امر کړی چي په اوويا کسه سره به د بني اسرائيلو کوه طور ته راځې ماته به عذر کوې په باره کي د عبادة العجل نو موسی عليه السلام په دوولس سبطه کي له هر سبطه څخه ددوی شپږ کسه مختاره کړه، نو مجموعه يې دو اوویاه کسه سوه، نو موسی عليه السلام ورته وويل چي دوه کسه دي پاته سي، نو ددوی په دې کي اختلاف سره پيدا سو چي د کوم سبط دوه کسه به پاتېږي: نو موسی عليه السلام ورته وويل چي هر څوک چي په خپله رضا پاته سي هغه ته خدای پاک د تلونکو ثواب ورکوي. نو کالب او يوشع پاته سوه، نو موسی عليه السلام او باقي اوويا کسه سره رارهي سوه د کوه طور

پر لور، نو دوی چي طور ته ورنژدې سوه، یوه وریځ پیدا سوه چي ټوله یې په خپل لمن کې ونیول او گرده پر سجده سوه، نو دې اوویا کسانو اوریدله چي د موسی علیه السلام سره یو څوک خبري کوي او امر او نهي ورته کوي، نو وریځ پورته سوه، نو ودغو اوویا کسانو ته موسی علیه السلام وویل چي دا خبري خدای پاک کولې، نو دوی ورته وویل چي موږ ستا تصدیق نه کوو چي دا تکلم د خدای جل جلاله وُ حتی نری الله جهرة تر څو چي موږ خدای پاک ونه وینو بې حجابه، نو پر دوی نازله سوله تکه یا د غره ښوریدل یعني زلزله، نو ټوله اوویا کسان د تکې یا زلزلې له کبله مړه سوه، وهذا قول السدي رحمه الله. او ابن عباس رضي الله عنه وایي چي دغو اوویا کسانو چي وه یې ویل لن نؤمن لک حتی نری الله جهرة فاخذتهم الصاعقة" دمخه تر هغو اوویا کسانو چي زلزله پر وسوه ابن عباس رضي الله عنه زیاته کړې ده دغه اوویا کسان د دعا لپاره خدای پاک ورغوښتي وه نو دوی د دعاگانو په لړ کې دا دعا هم وکړه اللهم اعطنا مالم تعطه احداً قبلنا ولا تعطه احداً بعدنا فانکر الله ذالک السؤال الاخیر فاخذتهم الرجفة یعني الزلزلة والله اعلم.

**فَلَمَّآ أَخَذَتۡهُمُ ٱلرَّجۡفَةُ**

هغه وخت چي دوی رجفه ونیول.

**سوال:** ددوی د رجفه سبب ددوی هغه مخکنی دعا وه کمامر آنفاً او که بل شی و؟

**ځواب:** جلال الدین السیوطي رحمه الله په روایت د ابن عباس رضي الله عنه وایي چي سبب د زلزلة شدیده دا و چي دغو اوویا کسانو که څه هم عبادة العجل نه و کړی لکن د عبدة العجل سره یو ځای اوسېدل څنډي جلا سوي نه وه انتهی، نو موسی علیه السلام چي یې حالت ولیدی زړه یې پر وسو او وبېرېدی چي له دغې زلزلې څخه مړه نه سي او دا د دوی زلزله پر موسی علیه السلام سخته پرېوتل ولي چي دا اوویا کسان د موسی علیه السلام وزیران وه او دده د خبرو سامعین او دده مطعین وه فعند ذالک دعی وبکّی وناشد ربه تبارک وتعالی.

**قَالَ رَبِّ لَوۡ شِئۡتَ أَهۡلَكۡتَهُم مِّن قَبۡلُ وَإِيَّٰيَۖ**

نو موسی رب یعني یا رب که ستا خوښه وای یعني اراده دي وای دوی به دي

هلاک کړي وای دمخه تر راتګ و طور ته او زه به دي هم هلاک کړی وای، بعض مفسران وایي چي موسی علیه السلام خپل ځان د تفویض و ارادې ته د خدای ورسره جوت کړی ورنه مقصود یې دا ؤ چي دوی به دي هلاک کړي وای دمخه تر راتګ زما سره تاچي بني اسرائیلو یې مرګ لیدلی وای، نو زه به یې نه متهم ولای په قتل ددوی، او بعض مفسرین وایي چي دا خبره موسی علیه السلام ترحماً پر دوی وکړه کما مر انهم کانوا وزراً له ومطیعین له. نو یې معنا داده چي موسی علیه السلام دا تمنی وکړه چي دوی او زه به دي هلاک کړي وای په بل سبب سره چي دا موضوع مو نه وای لیدلې یعني لن نؤمن لک حتی نری الله جهرة کما مر في قول السدي رحمه الله او یا مراد دا و چي ته اې خدایه قادر وې پر هلاک ددوی دمخه تر دې یعني فرعون به دې پر مسلط کړی وای چي وژلي یې وای او یا دي په دریاب کي لکه فرعون او قوم دده غرق کړي وای، نو تا اې خدایه پر دوی رحم وکړی یعني په دې دوو هلاکتو دي نه کړه هلاک، نو یو وار بیا رحم پر وکړې اوس دا هلاکت ځندي لېري کړه.

**درویش وایي:** چي دا ډېره ښه توجیه ده قد صرح به صاحب روح المعاني و المظهري واشار الیه صاحب روح البیان والله اعلم بمراده في کتابه.

أَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ السُّفَهَاءُ مِنَّا ۖ

آیا ته موږ هلاکوې په هغه کار چي زموږ ناپوهانو کړی ؤ چي یا دلاوري ده پر طلب د رؤیت په دنیا کي لکه بعضو چي دا طلب وکړی او یا عبادة العجل دی. مبرد وایي چي دا استفهام لپاره د طلب د مهرباني د خدای پاک دی ای لاتهلکنا

**بوه سه:** چي موسی علیه السلام خو په دې پوهېدی چي خدای یو سړی د بل په ګناه نه نسي لکن بیا هم ادباً ده دا سوال وکړی.

إِنْ هِيَ إِلَّا فِتْنَتُكَ

نه ؤ دا خصلت چي طلب د رؤیت ؤ او یا عبادة العجل مګر نه ستا ابتلاء وه د بني اسرائیلو.

**درویش وایي:** چي ما د خصلت لفظ ذکر کړی لپاره د مرجع مؤنث د هي.

امتحان په دې معنا و چې دوی خبرې واورېدلې ددوی شوق د رؤیت پیدا سو، او طلب د رؤیت یې وکړی، او په ګیلګي کي د سامري خو خاورو ږوند پیدا کړی، نو دوی یې عبادت شروع کړی.

تُضِلُّ بِهَا مَنْ تَشَآءُ وَتَهْدِیْ مَنْ تَشَآءُ اَنْتَ وَلِیُّنَا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَاَنْتَ خَیْرُ الْغَافِرِیْنَ

ته ګمراه او بې لارې کوې هغه څوک چې ستا اراده ورته وسي لکه هغه کسان چې طلب د رؤیت قبل الوقت یې وکړی او یا یې عبادة العجل وکړی، او ته هدایت ورکوې هغه چاته چې ستا اراده ورته وسي نو ایمان یې لا قوي سي، ته زموږ ناصر او دوست یې، نو ته موږ وبخښې یعني زموږ ګنهونه او رحم راباندي وکړې او ته یې اې خدایه ښه د غافرینو یې.

**پوه سه:** چې غافرین یې په صیغه د جمع راوړه او خدای یې خیر تر ټولو وباله، وجه یې داده چې د خدای پاک د ګنهګار بنده چې طلب د مغفرت وکړي او پر ګناه توبه وکاږي خدای پاک یې سیئات په حسناتو وربدلوي او نورهم عظیم رحم پر کوي بخلاف العباد الغافرین لمن اساء لهم، او بله په زړه پوري وجه یې داده چې بنده د بل بنده تر ګناه ورتېرېږي او بخښنه ورته کوي هغه یا د اغرض لپاره وي چې مغفور به زما د هر صفت د خلګو په مخ کي وکړي. او یا له خدای ﷻ څخه ثواب جزیل غواړي او یا یې غرض په بخښنه کي د خپل زړه قسوت دفع کول وي، واما الله تبارک وتعالی فیغفر ذنوب عباده لا لاجل غرض ولاعوض ولا نفع اخر راجع الیه تعالی بل یغفر بمحض الفضل والکرم، نو دا خبره حق ده چې خدای پاک خیر الغافرین دی او ارحم الراحمین دی.

**درویش وایي:** چې فاغفر یا مولای ذنوبي کلها بمحض فضلک وجودک وکرمک واحسانک واغفر لوالدي وارحمهما کما ربیناني صغیرا آمین.

وَاکْتُبْ لَنَا فِیْ هٰذِهِ الدُّنْیَا حَسَنَةً وَّفِی الْاٰخِرَةِ اِنَّا هُدْنَا اِلَیْکَ

**پوه سه:** چې د "کتابت" معنا نوشته نه ده بلکې په معنا د ثبت لنا موږ ته په دې دنیا کي حسنه یعني توفیق الطاعة والصحة والعافیة والنعمة والخلاص من

درک الشقا وغلبة الاعدا وغيرها من نعم الدنيا او په اخيرت كي هم حسنه راكړې يعني مغفرت د گنهو او رحمت او جنت دار الكرامة بلا حساب وعتاب، موږ ته "هدنا من هاد يهود اى رجع" يعني توبه مو كښلي ده وتاته من اعادةٍ وهغو اعمالو ته چي پخوا مو كول، بيت

الهي تبت عما كان مني — فكفر سيئاتي واعف عني
الهي عبدک العاصي آتاكا — مقراً بالذنوب وقد دعاكا
فان ترحم فانت لذالک اهل — وان طرد فمن يرحم سواكا

قَالَ عَذَابِيٓ أُصِيبُ بِهِۦ مَنۡ أَشَآءُۖ وَرَحۡمَتِي وَسِعَتۡ كُلَّ شَيۡءٖۚ

وويل خداى ﷻ په جواب كي د دعا د موسى عليه السلام عذاب زما زه يې رسوم دغه عذاب و هغه چاته چي زما ورته اراده وي من عبادي.

**پوه سه:** چي مفعول د "اشا" محذوف دى اى اشا تعذيبه او رحمت زما فراخه دى وهر شي ته صغيراً او كبيراً.

**درويش وايي:** چي په دنيا كي رحمت د خداى ﷻ عام دى مؤمن او كافر، مكلف او غير مكلف بلكې حيواناتو ته، د بر او بحر ته چي دا نعمت صحت او عافيت او بنين وبنات دي ومواشي وذهب وفضه وغيرهما.

**پوښتنه:** په اخيرت كي ولي كافران له دې رحمت عامه څخه محروم دي؟

**ځواب:** دوى په خپله ابا وكړه له رحمت څخه د خداى ﷻ په اخيرت كي حيث جعلوا له شريكاً يا يې عزير ابن الله وباله يا يې عيسى عليه السلام ابن الله وباله يا يې ملائكه بنات الله وبللې وغيرها من انواع الكفر. په حديث شريف كي راغلي دي چي روايت يې بخاري كړى دى "كل امتي يدخلون الجنة الا من ابى" زما ټوله امتيان به جنت ته داخلېږي مگر نه هغه څوک چي منع وكړي له دخلو څخه د جنت. پوه سه! چي له امت څخه عام مراد دى كه امت اجابت وي كه امت دعوت وي "قيل ومن ابى؟ قال من اطاعني دخل الجنة ومن عصاني فقد ابى" چا و عليه الصلوة والسلام ته وويل چي څوک به وي منكر يعني له دخول څخه د جنت؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي هر څوک چي زما اطاعت وكړي هغه به داخلېږي وجنت ته

او څوک چي زما نافرماني وکړي په تحقیق هغه ابا وکړه له دخول څخه د جنت.

ای کریمی که از خزانه عیب   گیر وترسا وظیفه خور داری
دوستان راکجا کنی محروم   تو که با دشمنان نظر داری

فَسَأَكْتُبُهَا لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَوٰةَ وَالَّذِينَ هُم بِـَٔايَٰتِنَا يُؤْمِنُونَ

ژر به زه واجب وګرځوم په اخیرت کي یعني تاسي ته اې بني اسرائیلو هغه کسانو ته چي له کفر او معاصي څخه ځان وباسي، او هغه کسان چي ورکوي زکوٰة که د نقودو وي او که د مواشیو وي. او هغه کسان چي دوی په ټولو آیاتو یعني کتابو باندي ایمان راوړي. یعني که څه هم بعض کتابونه منسوخ سوي وي له جانبه د خدای ﷻ.

**درویش وایي:** چي امنت بالله وملائکته وکتبه ورسله والیوم الآخر والقدر خیره وشره من الله تعالی والبعث بعد الموت انتهی.

الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ

هغه کسان چي له خدایه ېرېږي، هغه کسان دي چي متابعت وکړي په دین کي د رسول چي نبي دی چي مراد څخه ي محمد ﷺ دی چي رسول دی نسبت و خدای ﷻ ته چي خدای پاک را استولی دی لپاره د هدایت د خلګو او نبي دی نسبت و بندګانو ته چي بندګانو ته دین الهي ورسوي او دا نبي امي دی.

**پوه سه:** چي "الذین" خبر د محذوفي مبتدأ دی ای هم الذین یعني الذین یتقون.

**پوه سه:** چي "امي" منسوب و ام ته دی یعني لکه چي مور زېږولی وي پر هغه حال پاته دی لم یکتب ولم یقرأ.

**درویش وایي:** چي امیت که څه هم په نورو خلګو کي عیب دی لکن په علیه الصلوة والسلام کي معجزه ده، له دې جهته که علیه الصلوة والسلام کاتب او تاریخ دان شخصیت وای خلګو به ویلای چي دا قرآن دی له تاریخو څخه وعربي ت را نقل کوي او دا قصص قرآنیه هم له تاریخو څخه نقل کوي لکن چونکه دی امي دی نو دا توهم دفع سو. ولي داسي قرآن چي د عربو بلغا او شاعران د ایشان د اقصر سورة ددې قرآن عاجزه دي، نو یقیني ده چي دا قرآن من عند الله دی، علیه

الصلوة والسلام وايي انا امية لاتكتب ولا تحسب الى اخير الحديث (بخاري ومسلم)
او بعض مفسرين وايي چي امي منسوب و امت ته دی لکثرة امته. مسلم له انس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي انا اکثر الانبيا تبعاً يوم القيامة وانا اول من يقرع باب الجنة آه ويوئيده ما ورد. چي اهل جنت د قيامت په ورځ يو سل وشل صفه وي وعلم الصف الواحد عند الله. په دې يو سل وشل صفه کي اتيا صفه امت د عليه الصلوة والسلام وي. او شلو ښت صفه به د نورو انبياؤ امتيان وي. ويوئيده ما ورد في الحديث الصحيح چي عليه الصلوة والسلام ووېل ارجوا انيكون امتي ثلثی اهل الجنة. بيت

نگار من که بمکتب نرفت وخط ننوشت.... بغمزه مسأله صد مدارس سفت

**درويش وايي**: چي پر تقدير ددې چي منسوب و امت ته سي، نو اصل د امي امتي ؤ تا يې په نسبت کي له جهته څخه د کثرت استعمال ځندي حذف کړه كما في المكي والمدني، او بعض مفسرين وايي امي منسوب دی و ام القرى ته چي مکه مکرمه ده. مفسرين وايي چي په دغه قيد سره يعني "الذين يتبعون آه" هغه بني اسرائيل خارج دي چي زمانه د عليه الصلوة والسلام يې نيولې وي او ايمان يې نه وي پر راوړی وبقى في الحكم المذكور يعني الذين يتقون الخ. هغه بني اسرائيل چي زمانه د نبوت د نبي عليه السلام يې نه وي نيولې كما لا يخفى.

الَّذِيْ يَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِيْلِ

هغه نبي امي چي بني اسرائيل يې پيدا کوي دی ليکلی په نيز ددوی په تورات کي د موسی علیه السلام، او په انجيل کي د عيسى علیه السلام. مثنوي معنوي.

پيش ازانکه نقش احمد رو نمود....... نعت او هر گبر را تعويذ بود
سجده ميکردند که ای رب بشر....... درعيان آريش هرچه زود تر
نقش او مى گشت اندر راه شان....... دردل ودر گوش درافواه شان

له حضرت انس رضي الله عنه څخه رايت دی چي يو يهودي هلک ؤ چي گاهي گاهي به يې د عليه الصلوة والسلام خدمت کاوه، نو هغه ځوانکی مريض سو، عليه الصلوة والسلام يې پوښتني ته ورغلی، د هلک پلار يې و سر ته ناست ؤ تورات

يې پر وايه، نو عليه الصلوة والسلام يې پلار ته وويل چې اې يهودي زه تاته په خداى ﷻ قسم دركوم هغه خداى چې تورات يې پر موسى نازل كړى دى چې تا زما نعت او صفت او مخرج په تورات كې نه دى ليدلى، يهودي ورته وويل لا، ځوانكي مريض ورته وويل بلى يعنې مونږ ليدلى دى په تورات كې ستا نعت او صفت او مخرج يا رسول الله واني اشهد ان لا اله الا الله وانک رسول الله، نو عليه الصلوة والسلام ورسره صحابه كرامو ﷺ ته وويل چې دا يهودي يعنې د ناجوړي پلار څخه ولاړ كړئ او تاسي د خپل ورور ګور او كفن او تلاوت د قرآن پرده پر خپله غاړه واخلئ، فمات ﷺ فولى امره الصحابة الكرام ﷺ.

له حضرت علي ﷺ څخه روايت دى چې د يو يهودي پر عليه الصلوة والسلام باندې يو څو ديناره پور باندې ؤ، نو راغلى و عليه الصلوة والسلام ته يې وويل چې زما پور راكړه! ده مبارک ورته وويل چې اوس خو زه ستا د پور مبلغ نه لرم، يهودي ورته وويل چې تر هغو زه ستا څخه نه جلا كېږم چې پور مې را نه كړې، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې نو راسره كښېنه زه درسره ناست يم، يعنې نه كور ته نه پر بله خوا درڅخه ځم، راوي وايي چې عليه الصلوة والسلام د مابېنين لمونځ، د ماز ديګر، د ماښام، د ماخستن او د سهار لمونځ دالته وكړى، نو صحابه كرامو د ستر ګو په اشاره ياد ګوتي په اشاره يا تر ستوني نيولو په اشاره يهودي ته په پټه د عليه الصلوة والسلام پېش رو واهه، اخير عليه الصلوة والسلام ددوى په اشاره پوه سو، نو دوى يې له پېش رو څخه منع كړه او ورته وه يې ويل چې زه خداى پاک د كافر معاهد له ظلم څخه منع كړى يم، دا بله ورځ چې لمر ښه راپورته سو يهودي راغلى و عليه الصلوة والسلام ته كښېنستى و عليه الصلوة والسلام ته يې وويل اشهد ان لا اله الا الله واشهد انک رسول الله ونصف مالي في سبيل الله، او دا يهودي ډېر شتمن ؤ، او يهودي خپل عذر چې ما له تا سره دومره سختي وكړه داسي بيان كړى چې ما ستا حال د تورات د آيتو سره مقايسه كاوه چې په تورات كې داسي راغلي دي محمد بن عبد الله مولده بمكة ومهاجره بطيبة يعنې مدينة وملكه بالشام يعنې ينتهي ملكه الى الشام چې د بني اسرائيلو لوى مركز ؤ وليس بغذاى

بد طبعیته ولا غلیظ ای نه سخت طبعیته ولا سخاب في الاسواق او نه لوی لوی نارې وهي په بازارو کي او د هغه نیم مال په باره کي یهودي داسي وویل فاحکم فیه بما اراک الله، رواه البیهقي في دلائل النبوة.

**بنهانه فائده:** درویش وایي چي د تفسیر د متعلمینو په زړو کي به دا ورګرځي چي په دومره ممتد (اوږده) زمانه کي علیه الصلوة والسلام ته د چای جواب یا د اودس تازه کولو او د خوب عذر نه پیښیدی او که ځرنګه او داغه رنګه یهودي ته ورته یا کم تر عذرو نه پیښیدی او که ځرنګه؟ نو ددې ځواب دادی چي دا عذرونه خو بېشکه رونما کېدل لکن علیه الصلوة والسلام ته چي به عذر پیښ سو هغه به یې خارج المسجد پوره کړی بېرته به راغلی د یهودي سره به کښېنستی، او یهودي ته چي په عذر پیښ سو هغه به یې خارج المسجد پوره کړی بېرته به راغلی د علیه الصلوة والسلام سره به کښېنستی او د دوارو خوب په مسجد نبوي کي ؤ فافهم هداک الله تعالی.

**يَأْمُرُهُم بِالْمَعْرُوفِ**

دا نبي دوی امر کوي په توحید وشرائع الاسلام وکلما یعرف حسنه شرعاً کالصلوة والزکوة والصوم والحج وغیرها.

**وَيَنْهَىٰهُمْ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَٰتِ**

او دوی منع کوي د هغه شي چي حسن شرعي نه لري بلکې شرع یې منکر بولي او طبع مستقیم او طبع سلیم هم منع ځنې کوي کالشرک وکفران المنعم وعصیانه والزنی والواطة وسائر القبائح الشرعیة، او دا نبي حلال ګرځولي وه و بني اسرائیلو ته هغه شیان چي په تورات کي ودوی ته حرام سوي وه په سبب د بغي ددوی او په سبب د شوم عمل ددوی لکه شحوم یعني وازګي ولحوم الابل او د اوښانو غوښې، او یا اهل جاهلیت من المشرکین وځان ته حرامي بللې لکه بحیره، سائبه، وصیله، وحام کمامر تعریفهما قبل هذا.

**وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَٰٓئِثَ**

کالدم والخنزیر والمیتة والربوا والرشوة وغیرهما مما کان الیهود او المشرکین یتعاطونها.

وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ

او دا نبي د بني اسرائيلو څخه خاص لیري کوي. او سپکوي هغه درنې درنې وعدې چې د بني اسرئيلو څخه اخستل سوي وې على العمل بما في التورات.

وَالْأَغْلَلَ الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهِمْ

او هغه درانه بارونه چې پر بني اسرائيلو وه په تورات کي مثل قتل النفوس في التوبة وقطع الاعضاً الخاطئة وقرض موضع النجاسة عن الثوب وتعيين القصاص في القتل العمد والخطأ وتحريم اخذ الدية بالصلح في العمد او مطلقاً في الخطأ وترک کل عمل دنيوي في يوم السبت وعدم جواز الصلوة في غير كنائسهم، او نور ورته د دغو کارو من الشدائد.

**پوه سه**: چي اصل د "غل" جمع کول د لاس د غاړي سره په وسپنه کي او دا شدائد يې هم د اغلال سره مشابه کړه.

فَالَّذِينَ آمَنُوا بِهِ وَعَزَّرُوهُ وَنَصَرُوهُ وَاتَّبَعُوا النُّورَ الَّذِي أُنْزِلَ مَعَهُ

نو هغه کسان چي پردې نبي امي ایمان راوي یعني په نبوت عامه يې ومني او دده تعظيم کوي په تقويت د دين دده او کومک ورسره کوي په دفع کي د دښمنانو دده، او متابعت وکړي د هغه نور چي نازل کړه سوی سره د نبوت دده چي مراد څخه قرآن مجید دی.

**درويش وايي**: چي قرآن عظيم الشان يې نور وباله له دې سببه چي قرآن مبارک په سبب د اعجاز ظاهر قرآنيته يعني کونه من عند الله او مظهر د احکامو او د نورو امور حقه وو دی کما هو معنى النور في اللغة.

أُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ

دغه کسان چي دا مذکوره کارونه وکړي دوی دي بری پيدا کونکي پر رحمت ابدي الهي في الدارين.

صاحب کشاف داسي سوال کړی دی ما معنی "الذي انزل معه" او سره ددې چي قرآن خو د جبرائيل عليه السلام سره نازل سوی دی. بيا يې جواب ورکړی دی چي

معنی د "انزل معه" انزل مع نبوته، ولي چي نبي والی د علیه الصلوة والسلام مصحوب او ملگری وُ د نزول سره د قرآن کما یدل علیه قوله تعالی في ابتدا نبوته ﷺ اقرأ باسم ربک الذي خلق انتهی بزیادة.

نو معه متعلق دی په انزل پوري حال دی له ضمیر څخه د انزل بحذف المضاف والتقدیر انزل ذالک النور مصاحباً لنبوته، او مظهري رحمه الله داسي خواب ورکړی دی چي انزل متعلق دی په اتبعوا پوري.

نو معنا د آیت داده اتبعوا النور الذي انزل وهو القرآن المجید واتبعوا معه ای مع النبي ﷺ ای ما مع النبي فیکون المراد السنة النبویة، نو په دي آیت کي اتباع د قرآن منزل او د سنت نبوي دواړه ذکر سوي دي.

**قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا**

ته ووایه یا محمد ﷺ چي اې خلګو یعني که عرب یاست او که عجم که اهل شرق یاست یا غرب اهل شمال یاست یا اهل جنوب، او که احمر یاست او که اسود په تحقیق زه استول سوی د خدای ﷻ له لوري یم ستاسي ټولو وخواته.

**فائده:** اضافت د رسول الله لپاره د عهد خارجي دی یعني الرسول النبي الامي الذي مر ذکره، او جمیعاً حال دی له ضمیر څخه د الیکم.

**پوه سه:** چي رسول الله ﷺ وټولو خلګو ته مبعوث دی کما مر من التعمیم آنفاً بل الی الجن ایضاً بخلاف سائر الانبیاء فانهم مبعوثون الی اقوامهم خاصة. په حدیث د مسلم او ترمذي له ابو هریره رضی الله عنه څخه داسي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام وویل چي زه بالا کړل سوی یم، یعني خدای ﷻ بالا کړی یم پر نورو انبیاً کرامو په شپږو شیانو سره.

(۱) ماته راکړل سوی دی جوامع الکلم یعني عبارت یې لږ وي او معنی یې جزیله او ډېره وي.

(۲) نصرت" زما سره کومک کړل سوی دی په ډېره د دښمن زما څخه وفي روایة مسیرة شهر.

(۳) واحلت لي الغنائم او ماته روا سوي دي غنیمتونه د کفارو چي نفع زه او

امت پر واخلو، او په وړاندي امتونو کي داغسي نه وه بلکې غنيمتونه به يې جمع کړل له اسمانه به اور راغلی ټوله به يې وسوله.

(۴) او ماته ګرځول سوې ده مځکه مسجد يعني د لمانځه ځای. او د نورو امتونو لمونځونه ددوی په کنائسو سره خاص وه يعني ددوی په عبادت ځايو سره لکه زموږ مساجد. او داغه رنګه مځکه زما لپاره پاکي ده يعني د تيمم لپاره.

(۵) وارسلت الى الخلق كافة وختم بيَ النبوة.

**درويش وايي**: چي په اكام المرجان کي وايي چې هره طائفه له مختلفو طائفو څخه پر دې خبره سره متفق دي چي خدای پاک محمد ﷺ و انس او جن، عربو او عجمو ټولو ته په رسالت سره راستولی ؤ.

**پوښتنه**: و سليمان بن داؤد ﷺ ته خو نبوت عام ؤ د انس او جن لپاره؟

**ځواب**: سليمان ﷺ د رسالت او تبليغ و جن ته نه و مبعوث بلکې د ملک او سياست او ضبط و سلطنت لپاره عام ؤ. وشتان بين الرسالة وتبليغ الدين وبين التسخير والسلطنت كما لا يخفى فتدبراً.

الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْيِ وَيُمِيتُ

**پوه سه**: چي "الذين آه" يا صفت موضحه دی د الله، او يا منصوب دی په حذف د اعني او يا مرفوع دی په تقدير د هو چي په دې ته په نحو کي منصوب على المدح وايي يا مرفوع على المدح وايي، او يا مبتدأ د خبر يي جمله لا اله الا هو ده، هغه خدای چي ده لره خاصه بلا مشارک ولامعين سلطنت او تصرف او خلق دی د اسمانو يعني مافيها او د مځکي يعني مع ما عليها من الحيوانات والنباتات وغيرها ومع مافيها من الكنوز والخزائن والدفائن چي هغه خالق دی د حيوة په احياؤ کي او د موت فيها.

**پوه سه**: چي دا جمله لپاره د مزيد تقرير او اختصاص د الوهيت او د معبوديت په خدای ﷻ پوري.

فَآمِنُوا بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ الَّذِي يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَكَلِمٰتِهٖ وَاتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ۝

**پوه سه:** چې مخاطب په دې آیت کې اهل کتابیین دي. یعني التوراة والانجیل وهم الیهود والنصاری. او دا آیت مربوط دی په هغه آیت پورې "الذین یتبعون الآیة" نو تاسې ایمان راوړی پر خدای ﷻ باندې په توحید او په عدم الولد سره او ایمان راوړی پر رسول د خدای ﷻ هغه چې نبي امي دی یعنې چې ستاسې څخه عهد او میثاق اخسته سوی دی پر ایمان دده په کتب متعدده وو یعنې التوراة والانجیل. وفي التوراة ینابئ مقربخ کاموخ الی وتسماعون ؏ هغه نبي امي چې دی ایمان لري پر خدای ﷻ او پر کلماتو د خدای الذي انزلت الیه وسائر المرسلین من کتب الله ووحیه.

**پوه سه:** چې بعض قرأ "کلمته" په افراد سره وایې. نو مراد ځني جنس کلمه ده فیتناول المفرد مثل الجمع جمیع الکتب الالهیة. او د هغه نبي امي متابعت وکړئ لپاره ددې چې تاسې په هدایت او راه حق پیدا کړئ فعلی هذا کلمه د لعل په معنی د لام ده.

وَمِنْ قَوْمِ مُوسٰى أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُونَ۝

او له قوم څخه د موسی ؑ یعنې بني اسرائیل یو جماعت داسې سته چې هدایت او لار ښوونه کوې خلکو ته متلبسین بالحق. نو حال دی له ضمیر څخه د یهتدون. او یا کلمه د با سببي ده ای بسبب الحق الذي هم علیه او په حق سره دوی عدالت کوې په خپل منځو کې.

**درویش وایې:** چې په بیان کې ددغه قوم مظهري ؒ په روایت د ضحاک او د کلبي په مختصره توګه یوه غریبه قصه راوړې ده. دوی وایې چې دا یو قوم دی په نهایت کې د چین د طرف شرق په پای کې. چې له بني اسرائیلو څخه دي او دوی پر یوه واله پراته دي چې په ریګو کې بهېږي چې نهر اوراق یې بولې او ددوی مال یو له بل سره شریک دی یعنې چې کښتونه وکړي یو ځای یې جمع

کوي د هر چا چي ورته ضرورت ؤ هغه قدر ځندي اخلي، د شپې باران پر باران پر اوري او د ورځي لمر وي او کښتونه کوي، او هيڅ څوک زموږ څخه دوی ته نه سي رسېدلای او دوی پر دين حق د موسی عليه السلام دي او دغه راويان وايي چي په شپه د معراج نبوي جبرائيل عليه السلام آنحضرت ﷺ دوی ته وروستی، نو جبرائيل په صورت بشري ددوی په ژبه دده سره خبري وکړې. نو جبرائيل عليه السلام ورته وويل چي دا زما سره راسره سړی پېژنئ؟ دوی ورته وويل لا جبرائيل ورته وويل هذا محمد ﷺ النبي الامي فآمنوا به فقالوا يا رسول الله ان موسی اوصانا ان من ادرک احمد ﷺ نو تاسي زما سلام ورته ووايا ست، نو عليه الصلوة والسلام د موسی عليه السلام د سلام ځواب ورکړی او بيا عليه الصلوة والسلام ودوی ته لس سورتونه د قرآن مجيد چي په مکه کي نازل سوي وه ورته تلاوت کړه او دوی يې امر کړه په لمانځه او زکوٰة سره او دوی يې امر کړه چي دلې اوسېږئ. دوی د سبت يعني د شنبې د ورځي د تعظيم پوښتنه ځندي وکړه. عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي د سبت تعظيم پرېږدئ د جمعې لمونځ کوئ. انتهی القصة التي اورده المظهري، او بعض مفسرين وايي چي په آيت مذکوره کي مراد له امت څخه د قوم موسی هغه بني اسرائيل دي چي ايمان يې پر عليه الصلوة والسلام راوړی ؤ لکه عبدالله بن سلام او دده د اکا زامن او نور ﷺ. بغوي وايي چي هغه اوله قصه اصح ده او وروسته يې ويلي دي نقضاً لما قال والاول اصح والظاهر ان الاول قول غريب، وجه يې دا ويلې ده چي په شپه کي د معراج خو د جمعې لمونځ نه ؤ مشروع سوی بلکې په مدينه منوره کي مشروع سو. او بله يې دا وجه ويلې ده چي په لسو سورتو کي چي په مکه کي نازل سوي وه تو له احکام د اسلام نه وه مظهري رحمه الله په پای کي ويلي دي والله اعلم.

**درويش وايي:** چي روح البيان هم دا قصه راوړې ده او ډېره اوږده ده او دا وجه يې هم ويلې ده چي دغو کسانو ته په رسېدلو کي شپږ کاله لګېږي او نوري نادري نادري د تعجب وړ د انکار لائقي خبري يې هم کړي دي تاسي يې لطفاً مطالعه کړئ.

**سوال:** تا ولي د مظهري رحمه الله قصه ذکر کړه او د روح البيان راوړي قصه دي نه کړه ذکر؟

**خواب:** يو خو ډېره اوږده وه چي د مظهري رحمه الله قصه يې مشت نمونه خروار وه، او بل په قصه کي د روح البيان داسي نادري او غرائبي ذکر سوي دي چي عقل په درياب کي د تحير غرقوي، نو ځکه ما خپل د تفسير متعلمان له درياب څخه د تعجب راوګرځول.

**درويش وايي:** چي زه د صاحب روح البيان سپکاوی نه کوم بلکي خپل تفسير له نادرو خبرو څخه ساتم، او البته روح البيان به له بل ځا څخه ناقل وي که څه هم ده اشاره ونقل ته نه ده کړي.

وَقَطَّعْنٰهُمُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ اَسْبَاطًا اُمَمًا

او موږ ګرځولي وه بني اسرائيل ټولی ټولی . دوولس.

**يوه سه:** چي تميز د "اثنتي عشرة" محذوف دی، چي قطعنا دلالت پر کوي يعني اثنتي عشرة قطعة، او اثنتي عشرة مفعول ثاني دی د قطعناهم چي په معنی د صيرناهم دی او يا حال دی.

**يوه سه:** چي "اسباطاً" جمع د سبط ده چي په معنی د ولد الولد ده، او بني اسرائيل دوولس قبيلې وه چي اولاد د دوولس زامنو د اسرائيل يعني يعقوب عليه السلام وه.

**يوه سه:** چي اسباطاً د اعراب له لاري بدل دی له اثنتي عشرة څخه او تميز يې نه دی کما توهم کما تقرر في النحو ان تمييز لما فوق العشرة لايکون جمعاً "أمماً" جمع د امت ده صفت دی د اسباطاً يا بدل بعد البدل دی.

**درويش وايي:** چي دا يو څو بيته د مثنوي د جلد ثالث په معجزه کي د سيد الکائنات عليه من الصلوات اتمها ومن التسليمات اکملها واورئ.

از انس رضي الله عنه فرزند مالک امده است..... که به مهمانی او شخصی شده است
او حکايت کرد کز بعد طعام..... ديد انس دستار خوانرا زرد فام
چرک آلوده وگفت ای خادمه..... اندر افګن در تنورش يکدمه

در تنور پر ز آتش در فگند..... ان زمان دستار خوانرا هوشمند
جمله مهمانان در ان حیران شدند..... انتظار دود کند وری بودند
بعد یک ساعت بر آورد از تنور..... پاک و اسپید وازان اوساخ دور
قوم گفتند ای صحابی عزیز..... چون نسوزید و منقا گشت نیز
گفت زانکه مصطفی دست ودهان..... بس بمالیذ اندرین دستار خوان
ای دل ترسیده از نار وعذاب..... باچنان دست ولی کن اقتراب
چون جمادی را چنین تشریف داد..... جان عاشق را چهاخواهد کشاد

**سوال**: تا دا بیتونه بې ځایه نه راوړه؟

**ځواب**: مشت نمونه خروار ،زه چي الله وایمه پر خوله لیلی لیلی راځینه ع
بروای مدعی نادان چي داني حال مستان را.

د علیه الصلوة والسلام محبت وجداني شی دی چي ژبه یې له بیانه قاصره ده اما اطاعت د علیه الصلوة والسلام هغه ظاهر دی.

وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ إِذِ ٱسْتَسْقَىٰهُ قَوْمُهُۥٓ أَنِ ٱضْرِب بِّعَصَاكَ ٱلْحَجَرَ

او موږ وحي وکړې و موسی عليه السلام ته هغه وخت چي له ده څخه طلب د اوبو وکړی قوم دده یعني بني اسرائیلو چي دوی د تیه په لوی دښت کي وه چي ووهه په لکړه سره ډبره.

فَٱنۢبَجَسَتْ مِنْهُ ٱثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ۖ قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ

دا تفریع ده پر محذوف باندي ای فضرب فانبجست آه، او مفرع علیه یې حذف کړه اشاره ودې ته ده چي موسی عليه السلام په امر الهي کي توقف نه دی کړی او بل اشاره ودې ته ده، ضرب د موسی عليه السلام صرف سبب ظاهري دی او موثر حقیقي نه ؤلان خالق الما من الحجر هو الله تعالی ومعنا الانبجاس هو الانفجار، والمعنی پس له ضربه د موسی عليه السلام راووتلې له ډبري څخه دوولس چینې یعني په عدد اسباطو د بني اسرائیلو او معلوم ؤ هرو خلګو ته یعني هر سبط خپل مشرب یعني لښتی د اوبو.

وَظَلَّلْنَا عَلَيْهِمُ الْغَمَامَ وَأَنْزَلْنَا عَلَيْهِمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ط

او موږ سائبان کړې په هغه تیه کې پر دوی باندې وریځ چې له ګرمۍ څخه د لمر یې وساتي، او موږ نازل کړه د اسمان له خوا یعنې د خوراک لپاره پر دوی من چې ترنجبین یې بولي، او که یې څوک نه پېژني د هر یوناني طبیب په دکان کې ترنجبین سته رایې نسه او خوند یې وګوره او سلوی څوک وایي تارو ګان وه وهو الاولی، او څوک وایي کرکان وه او دا سلوی به هم پاخه په غوړو بریان ودوی ته راتله هره ورځ په قدر د کفایت د یوې ورځې:

كُلُوا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ ط وَمَا ظَلَمُوْنَا وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ۝

په تقدیر د قول ای وقلنا لهم خورئ له طیباتو څخه (یعنې هم حلال دي او هم خوندور دي) د هغه شي چې موږ تاسي ته په رزق درکړي یعنې المن والسلوی.

**یوه سه:** چې معنا د طیباتو بعض علما په حلالاتو سره کوي، او بعض علما یې په مستلذاتو سره کوي یعنې خوندور، ما په ترجمه کې دواړه جوت کړل.

**درویش وایي:** چې پوره بیان د دغو آیاتو په تفسیر کې د سورة بقره ددې کتاب مطالعه کړئ، ولې چې ډېره اوږده قصه ده چې زه یې بیانوم ډېر اوراق به وغواړي

**یوه سه:** چې دا جمله "وما ظلمونا آه" عطف ده پر محذوفه جمله لپاره د ایجاز ای فظلموا په دې سره چې دوی ناشکري د دغو جلیلو نعمتو وکړه او پر موږ یې ظلم نه دی کړی بلکې دوی وه چې پر خپلو ځانو یې ظلم وکړی چې دغه مستلذ رزق بې تکلفه او بې مشقته په دنیا کې او بېله حسابه په اخرت پر ځانو قطع کړي.

**درویش وایي:** چې ددې قطع رزق مذکور سبب هم په تفسیر د سورة بقره کې ملاحظه کړئ چې ډېر اوږد بیان یې دی او ما خپل عذر د عدم تکرار نژدې درته ذکر کړی.

**یوه سه:** چې بني اسرائیلو چې ناشکري د نعمت د تیه وکړه او موسی عليه السلام ته یې وویل لن نصبر علی طعام واحد چې ومن او سلوی وه اګر که من او سلوی دوه طعامه وه ددوی مراد له وحدت څخه دا وُ چې دا طعام همېشه یوه نوع ده تبدل نه کوي نو موږ ځندي خواتوري سوو او دوی ویل "فادع لنا ربک یخرج لنا مما تنبت

الارض من فومها" څوک وايي مراد ددوی غنم وه او څوک وايي وږه "وعدسها" يعني ماش او دال "وبصلها" او پیاز، نو خدای پاک ودوی ته وویل.

وَإِذْ قِيلَ لَهُمُ اسْكُنُوا هَٰذِهِ الْقَرْيَةَ وَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ

چي وویل سوه له جانبه څخه د موسی عليه السلام په امر د خدای جل جلاله چي تاسي سکونت وکړئ په دغه قريه کي چي اريحا يا بيت المقدس ۆ، او تاسي خوراک کوئ له دغي قريې څخه هرچېري چي ستاسي خوښه وي يعني هغه مطلوب شیان ستاسي چي فوم وغیره وه.

وَقُولُوا حِطَّةٌ وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا نَغْفِرْ لَكُمْ خَطِيئَاتِكُمْ ۚ سَنَزِيدُ الْمُحْسِنِينَ ﴿١٦١﴾

نو تاسي چي قريه ته داخلېږئ حطة به وایاست ای امرنا ومسؤلنا بخښل د گنهو ده، او په دروازه د قريې چي تاسي داخلېږي سرونه به کښته کوئ يعني سجده د تعظيم به کوئ يعني لکه ورونو د يوسف عليه السلام چي ته ده ورته سجده وکړه نو زه به وبخښم تاسي ته ستاسي گنهونه، او موږ به زياتوب وکړو په نعمت کي واحسان کونکو ته يعني چي حطة ددوی کلمه د استغفار وه او چي سجده وکړي په وخت کي د دخول د باب القريه يعني سرونه کښته کړي.

فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ

نو بدل کړی هغو کسانو چي ظالمان وه قولاً غير له قول څخه چي ودوی ته ويل سوی ۆ يعني د حطة په ځای کي يې داسي وويل حنطة غنم غواړو في شعرة په وږو کي، او په بل تفسير کي راغلي دي چي فعل يعني الدخول بالسجدة هغه يې هم بدله کړه، ولي چي دوی په خپلو کي سره وویل چي دخول بالانحناً به هم نه کوئ، چونکه د قريې دروازه خوجگه وه جبرائيل عليه السلام دومره راکښته کړه چي بېله انحناً يې دخول ممکن نه ۆ، نو دوی چي راغله دروازه کښته وه او دوی وعده کړې وه چي انحناً به نه کوو، نو پر کونه به کښېنستل بېله انحناً به په دروازه د قريې ننوتل.

**درویش وایي:** چي دا ددوی نهایت وقاحت ۆ (ای بې شرمي) له امر څخه د خدای جل جلاله چي قول او فعل يې دواړه بدل کړه ع بې ادب محروم ماند از فضل رب.

نو له دې سببه خدای پاک وايي:

فَأَرۡسَلۡنَا عَلَيۡهِمۡ رِجۡزٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ بِمَا كَانُواْ يَظۡلِمُونَ ﴿١٦٢﴾

نو مونږ نازل کړی پر دوی باندي یو عذاب د اسمان له خوا څخه په سبب ددوی چي ظلم یې وکړی. یعني د خدای ﷻ د امر سپکاوی یې وکړی، د هغه عذاب ذکر که څه هم مظهري نه دی کړی اکتفأ بما ذکره في تفسیر سورة البقرة لکن هغه رجز طاعون ؤ چي په یوه ورځ کي څلوېښت زره کسه د طاعون نذر سوه چي بما کانوا یظلمون چي عصیان یې د خدای ﷻ د امر په ځای کي کښېښو کما هو معنی الظلم یا اهانت د امر الله یې په ځای کي د تعظیم د امر الله وضع کړی وهو امر آخر من الظلم، قانون الهي دی چي هغه څوک چي قدر د نعمت نه پېژني یقرع باب البلاً لیجري علیه احکام القضأ.

**فائده:** دغه کسان د بني اسرائیلو چي خدای پاک د ظالمانو په نامه یاد کړه فاسد کړه پر ځانو اووه نعمته د خدای ﷻ چي من او سلوی وغیرهما وه که څه هم د هغو نعمتو تدارک في الجملة وسو في القریة په دې دنیا کي او نعمت د عقبی چي عفو او مغفرت دی او تدارک یې هم نه سي کېدای.

**درویش وایي:** چي د داؤد علیه السلام په زمانه کي یوه قریه وه چي د ایله په نامه یادېدله او د بني اسرائیلو یو قوم پکښي اباد وه چي ددوی عمومي رزق د ماهیانو غوښي وې چي په دریاب کي یې ښکارولې. لکن یوه د سبت ورځ چي ددوی د عبادت ورځ وه په دې ورځ ودوی ته د ماهیانو ښکار ناروا ؤ. نو د خدای پاک امتحان ؤ چي د سبت ورځ چي به وه لوی لوی ماهیان به د دریاب په غاړه کي ګرځېدله پزي به یې تر اوبو را ایستلي وې. او چي د سبت ورځ به تېره سوه ماهیان به په دریاب کي سره متفرق سوه چي بیا به دوی په ډېر زحمت یو یا دوه ماهیان ښکارول، چي ددې په بیان کي خدای پاک داسي وایي.

وَسۡـَٔلۡهُمۡ

ته سوال وکړه له بني اسرائیلو څخه چي معاصرینو د علیه الصلوة والسلام د زمانې وه.

**یوه سه.** چي په دې سوال سره غرض دا نه دی چي نبي علیه السلام دې له دوی څخه

اخذ او زد کړه وکړي د يهودانو د قصې. ولې چې عليه الصلوة والسلام د مخه خداى پاک په دې قصه خبر کړى ؤ، بلکې مقصود د سوال دا ؤ چې عليه الصلوة والسلام دوى مجبوره کړي چې دوى به اقرار کوي په نافرمانيو قديم سره د اسلافو ددوى چې اهل د ايله وه او تجاوز د اسلافو ددوى تر حدود د خداى پاک ومخالفت اسلافهم عن امر انبيائهم. او په عين حال کې بيان ددې قصې موافق د تاريخ سره د يهودانو معجزة داله سي على ان رسول الله ﷺ نبي على الحق من عند الله ولې چې رسول الله ﷺ نبي امي ؤ، او د اهل کتابو سره يې هم ګډون نه درلودى او دا قصه ده مبارک پر داسې وجه بيان کړه يعنې خداى پاک په قرآن مجيد کې ورته بيان کړه عيناً لکه په تاريخ کې د يهودانو چې محفوظه وه بلا زيادة ولا نقصان، علم ان ذالک بالوحي والوحي لايکون الا الى نبي فبهذه المعجزة علم نبوته عليه الصلوة والسلام کالشمس على رابعة النهار.

**عَنِ الْقَرْيَةِ**

اى له حال څخه د هغې قريې چې پر دوى په سبب د سر غړوني د خداى ﷻ له امر څخه بلا پر مسلطه سوه کما يجئ.

**فائده:** عرب ښار ته هم قريه وايي نو له دې سببه دا سوال نه وارديږي چې ايله خو ښار وه.

**الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ إِذْ يَعْدُونَ فِي السَّبْتِ إِذْ تَأْتِيهِمْ حِيتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا**

هغه قريه چې نژدې وبحر ته وه يعنې د درياب پر غاړه وه، چې دوى تجاوز کاوى تر امر د خداى ﷻ چې دوى يې امر کړي وه په تعظيم د سبت په عبادت سره او منع کړي يې وه په دغه ورځ له ښکاره.

**پوه سه:** چې کلمه د "اذ" ظرف ده "يعدون" چې راتله به دوى ته ماهيان چې دوى به د سبت تعظيم کاوه "شرعاً" جمع د شارع ده من شرع اذا دنا يعنې نژدې د اوبو غاړې ته وهو حال من حيطانهم.

**وَيَوْمَ لَا يَسْبِتُونَ لَا تَأْتِيهِمْ**

او هغه ورځ چې دوى به تعظيم د سبت نه کاوه يعنې دا نورې ورځې د هفتې، ماهيان به غاړې ته د بحر نژدې نه راتله بلکې په بحر کې متفرق وه.

**فائده**: شیطان و بعضو بني اسرائیلو ته دا وسوسه وراچول چي تاسي له دریاب څخه یو لښتی وکاږئ او په پای کي د لښتي یو حوض غوندي ځای ورته جوړ کړئ او اوبه پر را ایله کړئ. نو چي د شنبې ورځ سي ماهیان د دریاب غاړي ته راسي په یو لرګي یې پر لښتي برابروي چي حوض ته ولاړ سي او هوري سره جمع سي مازدیګر چي کور ته ځئ د لښتي خوله ورته وتړئ د یکشنبې په ورځ به ماهیان په حوض کي سره جمع وي بېله تکلیفه به یې ونیسئ خیر دا کار چي یې وکړی نورو هم ځندي زده کړی په دې هیله د ماهیانو ښکار د پر پر مخ ولاړی.

كَذٰلِكَ ۚ نَبْلُوهُم بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ﴿۱۶۳﴾

ای مثل ذالک الابتلآ العظیم موږ معامله وکړه ددوی سره معامله مختبر. وانما قلنا ذالک لان حقیقة الاختبار والامتحان محال علی الله القادر اذ هو یعلم الظواهر والسرائر وحقیقة الامتحان انما یکون للجاهل بامر المختبر عنه کما في المکاتب والمدارس. په دې سبب چي دوی فسق مستمردر نو دی په فعل او په ترک کي، نو دوی ډېره زمانه دا د ماهیانو ښکار کاوه حتی چي ډېر پر دلاوره سوه او دا بې هم ویل چي د شنبې د ورځي حرمت زموږ څخه پورته سو، نو ماهیان یې هم نیوله او هم به یې خرڅول او رانیوله، نو اهل قریه پر درې قسمه سوله مجموع اهل قریه تخمیناً اوویا زره کسان وه د یوې دریمي څخه بالا یې دا کار شروع کړی. یوې دریمي دوی ته نصیحت کاوه او له ښکاره یې منع کوله او یوې دریمي نه ښکار کاوه او نه یې څوک منع کوله. د دریمي حصې په باره کي خدای پاک فرمایي.

وَإِذْ قَالَتْ أُمَّةٌ مِّنْهُمْ لِمَ تَعِظُونَ قَوْمًا ۙ اللَّهُ مُهْلِكُهُمْ أَوْ مُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ۖ

او په یاد کړئ هغه وخت چي وویل یوې ډلي ددوی چي ساکته ډله وه و وعظ کونکي ډلي ته د څه لپاره تاسي نصیحت کوئ و هغه قوم ته یعني چي ښکار یې کاوه چي خدای ﷻ ددوی هلاک کونکی دی او یا عذاب ورکونکی عذاب سخت في الاخیرة.

**پوه سه**: چي دا منفصله مانعة الخلو ده جمع یې روا ده.

قَالُوا مَعْذِرَةً إِلَىٰ رَبِّكُمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴿۱۶۴﴾

وویل دا ناصح او منع کونکي ډلي په ځواب کي د ساکتي ډلي حیث قالوا لم

تعضون ﷺ چي خدای ﷻ به زموږ څخه باز خواست وکړي چي تاسي ولي نهي عن المنکر نه کوئ او بل ددې لپاره موږ نهي عن المنکر کوو چي شاید دغه فاعلین د خدای ﷻ له منکر څخه وبېرېږي او دا منکر پرېږدي. ځکه تا امیدي د فاعل د منکر هغه وخت راځي چي فاعل د منکر پر هغه منکر باندي مړ سي یعني تر څو چي فاعل د منکر ژوندی وي امید د منکر د پرېښولو ورته سته.

**بوه سه:** چي معذرة خبر د محذوفي مبتدأ دی ای موعظتنا معذرعت ښکاره کول د عذر وخدای ﷻ ته.

فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِۦٓ أَنجَيْنَا ٱلَّذِينَ يَنْهَوْنَ عَنِ ٱلسُّوٓءِ وَأَخَذْنَا ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ بِعَذَابٍۭ بَـِٔيسٍۭ بِمَا كَانُوا۟ يَفْسُقُونَ

پس هغه وخت چي عاصیه ډلي هېر کړی یعني عمل یې نه وکړی په هغه وعظ د ناهیینو له خوا څخه چي دوی ته کېدی. نو موږ نجات ورکړی هغو کسانو ته چي نهي عن المنکر یې کوله، او موږ ونیوله هغه کسان چي ظالمان وه یعني فاعلان د منکر چي ښکار د ماهیانو په یوم السبت په داسي عذاب سره چي ډېر سخت ؤ کما سیجیئ په سبب ددې چي دوی خپل فسق ته دوام ورکاوه. حاکم روایت کړی دی چي ابن عباس ﷺ وایي چي ما په دې آیتو کي له خدای ﷻ څخه دا واورېدل "انجینا الذین ینهون عن السوء او دا مو هم واورېده واخذنا الذین ظلموا بعذاب بئس" نو زه نه یم خبر هغه فرقه ساکته څرنګه سوه یعني نجات یې پیدا کړی او که هلاک سوه. عکرمه ﷺ ورته وویل جعلني فداک زه دي تر تا قربان سم چي د فرقه ساکته خو هم په زړه کي بد ایسېدل هغه فرقه عاصیه که څه هم وعظ او منع یې خوله نه ورته کول کما یدل علیه قوله تعالی لم تعظون قوماً الله مهلکهم" نو شاید په بغض قلبي به فرقه ساکته له عذابه نجات مندلی وي. او عکرمه ﷺ وویل چي که خدای پاک د فرقه ساکته په باره کي لکه انجیناهم چي نه دی ویلی اهلکناهم خو یې هم نه دی ویلی. عکرمه ﷺ وایي چي زما توجیه و ابن عباس ﷺ ته خوند ورکړی او په راضي سو. او ماته یې په طور د انعام د یوې لیک داره کشمیري کالي هم راکړه. وهذا قول الحسن والمجاهد رحمهما الله تعالی.

**درویش وایي:** چي هغه خبره چي روح البيان له ابن عباس ﷺ څخه نقل کړي ده چي هالک دوې ډلي وې العاصية والساكتة لان الساكتة مداهنون للعاصية آه، ليس بصحيح لما سمعت قول عكرمه ﷺ في نجات الساكتة ورضي به ابن عباس ﷺ.

**فَلَمَّا عَتَوْا عَن مَّا نُهُوا عَنْهُ**

نو هر وخت چي تکبر او سرکښي وکړه فرقه عاصيه له هغه شي څخه چي دوی څنډي منع سوي وه له هغه څخه يعني الاصطياد يوم السبت بلکې و عصيان مذکور ته يې ادامه ورکړه او د منع کونکو په وعظ او تبليغ يې عمل ونه کړی.

**قُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ**

نو موږ دوی ته وويل وګرځئ بيزوګيان خوار او ترټلي.

**پوه سه:** چي دا امر تکوين دی امر تکليف نه دی، ولي چي د چا خو خپله بيزو والي په قدرت نه دی پوره.

**فائده:** بعض مفسرين وايي چي خدای پاک اوله پر دوی سخت عذاب مسلط کړی کما يدل عليه قوله تعالى "واخذنا الذين ظلموا بعذاب بئيس" چي په هغه عذاب دوی عبرت وانه خستی او خپل عصيان ته يې ادامه ورکړه، نو بيا خدای پاک ورته وويل "کونوا قردة آه" او بعض مفسرين وايي چي عذاب شديد او کونوا آه سره يو دي.

**درويش وايي:** چي وهذا التفسير يعني چي عذاب بئيس او عذاب د کونوا آه سره يو دی اصح دی عندي لانه لم ينقل من احد من الرواة ان العذاب الشديد من اى نوع كان فافهم. يعني څوک چي عذاب بئيس او کونوا قردة سره جلا بولي هيڅ راوي نه دي ويلي. راويان د قصې وايي چي څه وخت چي نهي کونکي نا اميده سوه له عاصينو څخه يعني چي زموږ په خوله نه کوي نو واعظينو دا هم خپل جرم باله چي د عاصينو سره يو ځای اوسېږي، بعض مفسرين وايي چي واعظين له قريې څخه بار سوه او د خېمو ژوند يې کاوه او بعض وايي چي قريه يې ورسره تقسيم کړه يعني په منځ کي يې دېوال وواهه يوه دروازه د واعظينو وه او يوه د عاصينو وه، او څه وخت چي داؤد عليه السلام غوښتنه د لعنت پر دوی له خدای پاک

څخه وکړه، او دوی توله په خپلو کورونو کې بیزوګیان سوه، نو په سهار کې د هغې شپې چې منع کونکې راووتل او د معتدینو څخه یې هیڅ څوک دباندې نه ولیدی، نو د معتدینو دروازې یې وروټکولې خو د هیڅ چا رغ یې نه واورېدی بیا ره دوی پر دېوالو وروا وښتل که څه ګوري چې توله سرایتو د معتدینو د بیزوګیانو ډک دي، نو دوی نه پېژندل چې دا بیزوګیان کوم کوم خلګ دي زموږ له قریبانو څخه لکن بیزوګیانو خپل اقربا پېژندل. نو هره بیزو به خپل قریب ته ورغله کالي به یې بوی کړه او تر ستر ګو به یې اوښکې بهېدلې. او بیزوګیان به پر دوی شاوخوا راګرځېدل او اوښکې به یې تویولې، قریبانو به ورته ویل چې موږ تاسي له عصیان څخه نه واست منع کړې بیزوګیانو به سره ورته ښوراوه یعنې نعم تاسي موږ منع کړي وو، نو درې ورځې دغه بیزوګیان ژوندي وه خلګ به د عبرت لپاره ورتله، وروسته تر درو ورځو توله مړه سوه کما هو عادة الممسوخ لانه لابقا للمنسوخ ولا نسل له. نو دا غلطه خبره ده چې د اوسنې زمانې بیزوګیان د هغو نسل دی، وعلی هذا انعقد اجماع الامة المرحومة.

**پوښتنه**: په یوه حدیث کې راغلي دي چې یو امت د بني اسرائیلو ورک سوی دی لا ادري مافعلت او زما خیال دی چې دوی به موږکان سوي وي، ولې موږک ته چې اوس شیدې کښېږدې نه یې څښي او نورو حیواناتو ته چې شیدې کښېږدې څښي یې لکه د بني اسرائیلو چې هم دا مسلک دی، او په بل حدیث کې راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام ته یو چا پخه سمساره راوړه د خوراک لپاره علیه الصلوة والسلام یې له خوراک څخه منع وکړه او داسي یې وویل لا ادري لعله من الامم الممسوخة؟

**ځواب**: اول خو دغه دوه حدیثه په هیڅ کتاب کې د صحاح ستة وو نه دي راغلي فالله اعلم بصحتها وعلی تقدیر التسلیم دا دوه حدیثه هغه وخت علیه الصلوة والسلام ویلي دي چې ده ته په وحي سره دا نه وه معلومه چې ممسوخ بقا او نسل نه لري، وروسته په وحي خفي دا ورته معلومه سوه چې ممسوخ لره نسل نه وي، والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب، واما عدم شرب الفارة للبن الابل وشرب غیره من البان ان صح فلعله طبع للفارة تعلم بالشم.

## وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكَ

ابن عباس رضي الله عنه وايي د "تأذن ربک" معنی ده قال ربک، او مجاهد رحمه الله وايي چي معنی يې امر ربک ده، او عطا رحمه الله وايي چي معنی يې حکم ربک ده.

**درويش وايي:** چي دا تفاسير مقاربة المعنی دي، تفسير روح المعاني وايي چي "تأذن" په معنی د "آذن" دی يعني اعلن مثل توعد په معنی د اوعد او په معنی د عزم مصمم راغلی دی او پر هر تقدير.

## لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ

ځواب د قسم محذوف دی ای والله ليسلطن الله على اليهود.

## إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَن يَسُومُهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ

تر ورځي پوري د قيامت داسي ځوک چي دوی ته تکليف رسوي په بد عذاب سره.

**پوه سه:** چي مظهري رحمه الله وايي چي د "تأذن" معنی قصد مصمم دی الذي لايخلف عنه او دا جاري مجری القسم دی، نو پر دې تقدير "ليبعثن" جواب د قسم دی.

**پوه سه:** چي سوء العذاب قتل دی او سبي ده او جزيه اخستل دي لـه دوی ځخه نو اول سليمان عليه السلام خدای پاک پر دوی مسلط کړی چي دوی يې سره دربدره کړه او بيا يې بخت نصر بابلي پر مسلط کړی هغه ددوی کورونه ورخراب کړه او ددوی جنګي کسان يې ور مړه کړه او ددوی ښځي يې په سبي ځندي بو تلې او پر پاته خلګو يې جزيه واچول او دوی جزيه و مجوسيانو ته ورکول حتی بعث الله محمداً صلی الله علیه وسلم فقتل بني قريضه من اليهود وسبى نسائهم وذراريهم، او بني نضير يې جلا وطنه کړه او بني قنقاع يې وخيبر ته وشړل، او حضرت عمر رضي الله عنه په خپل خلاقت کي دوی له خيبر او فدک ځخه هم وشړل.

## إِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيعُ الْعِقَابِ ۖ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ

په تحقيق خدای ستا ژر ورکونکی د عذاب دی و هغه چاته چي له خدايه سرکښي وکړي، يعني په دنيا کي لکه يهودان او خدای جل جلاله بخښونکی دی او مهربان دی لمن تاب وآمن.

**شهانه فائده:** درویش وایي چي یهودان خو د څو کالو راپه دېخوا په بیت المقدس او په شاوخوا کي د بیت المقدس خپل مستقل حکومت لري حتی چي دېر اسلامي مملکتونه ځان دېر په خطره کي ګڼدي بولي لکه مصر، فلسطین، شام وغیره او ددوی حکومت ایټم بم لري چي دېره خطرناکه سلاح ده د جنګ، او دنیا خرابونکې ده، نو اوس خلګ یعني دښمنان د اسلام د دین دا سوال کوي چي په مخکښي آیت کي خدای پاک داسي وویل " لَيَبۡعَثَنَّ عَلَيۡهِمۡ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ مَن يَسُومُهُمۡ سُوٓءَ ٱلۡعَذَابِ ﴿١٦٧﴾ " نو د یهودانو دا مستقل حکومت نو کومه دی چي سوء العذاب ودوی ته ورکوي؟

**ځواب:** دا حکومت د یهودانو په اصل واقع کي اډه ده د امریکایانو د عربي نړی په منځ کي ایټم بم یې هم د امریکایانو ټیکنالوجي ده او دوی فقط برائې نام حکومت د اسرائیل دی ورنه دوی د امریکایانو غلامان دي، امریکایان بالذات په عربي نړی کي مداخلت نه سي کولای ولي دنیا مخ ور اړوي، نو یهودان یې لکه سپي دلته روزلي دي، هر حکومت د عربي نړی چي د امریکایانو د سیاست سره موافق نه وي. نو دا دست پرورده سپي ورشکاري ګاهي مصر ته. ګاهي شام او ګاهي فلسطین ته. نو عذاب بئیس ددوی امریکایان دي الی یوم القیامة، دغو امریکایانو دوی یهودان همېشه د بل اسلامي عربي مملکت سره په جنګ اچولي دي چي په دې ضمن کي پر دوی باندي فدائي حملې کېږي او هر ګړی یهودان ددغسي سیمي لکه د امریکایانو سپي په جنګ اخته وي، نو تر دې به لوی بئیس عذاب څه وي، او په رسمیت پېژندل د یهودانو د حکومت په نړی کي هم د امریکایانو پالیسي ده مثال یې لکه یو سړی چي مځکه او پتې لري لکن د هغې مځکي او پتې د ساتني لپاره یې پر هغه مځکه سپي ایله کړي وي، همېشه په جنګو کي د عربي ممالکو سره همدغه یهودو ته کشتار ور رسېدلی دی، امریکا چي د نړی لوی شیطان ملک دی اوس یې په افغانستان او عراق کي هم نام نهاد رئیسان جمهور مقرر کړي دي چي د یوه بندي د ایله کولو توان نه لري بلکې پر



Scanned by CamScanner

ماینو او کورو یې امریکایان پیره کوي، نو دا عذاب بنیس د یهودانو نه دی؟
دا ځواب د هغو دښمنانو چې سوال یې وکړی.

وَقَطَّعْنٰهُمْ فِی الْاَرْضِ اُمَمًا

ما دوی یعني یهودان سره فرقه فرقه کړل یعنې په جلا جلا وطنو کې امتونه یعني پر یوه ځای مې جمع نه پرېښوول تاچې دوی لره شوکت او قوت نه سي پاته

**درویش وایي:** چې هم دا سر دی چې یهودان ځنې په امریکا کې ځنې په جرمني کې بلکې داسې مملکت نادر دی چې په هغه کې دې یهودان بې شوکته ژوند نه کوي.

مِنْهُمُ الصّٰلِحُوْنَ

ځنې د دوی صالحان دي، بعض مفسرین وایي چې صالحین هغه یهودان دي چې ایمان یې پر محمد ﷺ باندې راوړی وي لکه عبد الله بن سلام واضرابه رضي الله عنهم او ډېر مفسرین وایي چې مراد هغه یهودان دي چې پر دین د موسی قائم وه د مخه تر نسخ د دین د موسی علیه السلام بلا تغیر في التورات والتبدیل.

وَمِنْهُمْ دُوْنَ ذٰلِكَ

یعنې کم تر اولې ډلې په صلاح کې یا هغه کسان مراد دي چې ایمان یې پر علیه الصلوٰة والسلام نه وي راوړی لکه یهودان د مدینې منورې او یا د مخه تر نسخ د دین د موسی علیه السلام فساق او فجار او کافران وه لکه هغه یهودان چې په زمانه کې د عیسی علیه السلام وه یا په زمانه کې د داؤد او سلیمان علیهما السلام وه چې هغو پر دغو انبیاؤ ایمان نه و راوړی او کافران وه.

وَبَلَوْنٰهُمْ بِالْحَسَنٰتِ وَالسَّیِّاٰتِ لَعَلَّهُمْ یَرْجِعُوْنَ

او موږ امتحان د دوی کړی ؤ په نعمتو او په عذابو سره، یعنې ګاهې به موږ دوی ته صحت او عافیت او کثرة الاموال والاولاد به مو امتحان کړه او ګاهې به مو په مرضو او قلة الارزاق وعدم العافیة سره امتحان کړه د دې لپاره چې دوی فکر وکړي او په خپلو حالاتو متفاوته وو کې به غور وکړي، نو یا شکراً للنعم او یا حذراً عن النقم (ای العذاب) به رجوع وکړي له کفر څخه.

فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ

نو وروسته پيدا سوه يعني تر مذکورينو.

**پوه سه**: چي خلف قرن بعد قرن ته وايي کما في القاموس، ابو حاتم رحمه الله وايي چي خلف مصدر دی يعني اذا کان بسکون اللام الاولاد الواحد والجمع فيه سوآ وقال البيضاوي الخلف بسکون اللام مصدر لغت به يعني کزيد عدل، او ابن عربي رحمه الله وايي چي خلف بالفتح صالح اولاد ته وايي او خلف بسکون اللام نا صالح اولاد ته وايي، او محمد بن جرير وايي چي اکثر ما يجيئ في المدح بفتح اللام وفي الذم بسکوتها، وقيل غير ذالک والمراد في القرآن بالخلف بسکون اللام اليهود المذمومين الذين کانوا في زمن النبي ﷺ لم يؤمنوا به کبني قريضة وبني النضير حتى قتل رسول الله ﷺ بني نضير رجالهم وسبي ذراريهم ونسائهم واخذ اموالهم واجلا بني قريضة الى الخيبر واريحا وهذا جزآ المکذبين.

وَرِثُوا الْكِتٰبَ يَأْخُذُوْنَ عَرَضَ هٰذَا الْاَدْنٰى

دوی ته په ميراث پاته سوي کتاب يعني التورات من آبائهم ويطلعون بما فيها لکن لم يعملوا بها. چي دوی اخلي په عوض د کتاب الله التورات نعمتونه د هذا العالم الادنی يعني دنيا چي مشتق له دنو څخه ده يعني نژدې او يا مشتق له دنائت څخه بمعنی الخسيس والعرض المتاع نقوداً کان او ای مال قل او کثر، والمراد بهم بالاتفاق علماً اليهود يأخذون من جهالهم النقود وغيرها وکتموا لذالک نعوت عليه الصلوة والسلام وحرفوا کتاب الله التوارت خوفاً علی زوال جائهم وما يأخذون من الجهلة في الصدقات والرشي.

**پوه سه**: چي جمله د "ورثوا الکتاب" صفت د خلف دی، او جلمه "يأخذون آه" حال دی له ضمير څخه د "ورثوا"

وَيَقُوْلُوْنَ سَيُغْفَرُ لَنَا

او دوی وايي چي ژر دی چي په ورځ د قيامت دا زموږ جنايات به بې توبې راوبخښي. ولې چي زموږ اجداد انبيا وه هغه زموږ شفاعت کوي.

**پوه سه**: چي فعل مجهول مسند دی وجار مجرور ته.

**تفریع**: مسلمانان باید داسي ونه کړي چي ګنهونه کوي او توبه هم نه پر کاږي اعتماداً على ان رسول الله ﷺ يشفع لنا يوم القيامة لانه وان كان شفاعة الرسول الكريم حقاً لكن لمن وهذا غير معلوم، ولا يعتمد على قول السعدي رحمه الله.

عطای شفاعت چنانش دهند ............ که امت تمامی زدوزخ رهند

مع ماثبت ان بعض العصات من امة محمد ﷺ يدخلون النار لكن لا للخلود كالكفار بل بقدر عصيانهم.

**درویش وایي**: چي عاقل لره په کار ده چي متیقن شی چي طاعت دی بلا عصیان او یا عصیان مع التوبة دي پر محتمل شي چي شفاعت دی مع العصیان بلا توبة له لاسه ور نه کړي، ولي که مسلمان پر طاعت بحسب الطاقة مړ سي او یا پر عصیان مع التوبة مړ سي شفاعت د رسول الله ﷺ خو دده له لاسه نه وځي لانه النبي ﷺ يشفع له لرفع الدرجة في الجنة لكن په توبه على العصيان كي دي تاخير نه كوي، يعني سوف اتوب سوف اتوب بتسويل الشيطان يو محقق شاعر وايي.

توبه بکن امروز تو هرگز نگو فردا کنم

شاید بمردی صبحدم پردا نیابی درشمر

وَإِن يَأْتِهِمْ عَرَضٌ مِّثْلُهُ يَأْخُذُوهُ

يعني علماً د بني اسرائيلو كه څه هم د مغفرت ناري خو وهي لكن كه ودوی ته راسي عرض يعني دنياوي له قسمه د رشوت وغيره هغه هم اخلي.

**پوه سه**: چي دا جمله حال ده له ضمير څخه د "يقولون" معنى چي دوى د مغفرت ناري وهي او د هغه سره پر خپل ګناه ټينګ دي، ولي بله پلا داسي نو عرض پيښ سي بيا اخلي، نو توبه يې د زړه له كومي نه ده كښلي.

**مسئله**: كه څوك د توبې ناري وهي او پر ګناه مصر وي، دا د توبې ناري يې هم ګناه ده، او په صحيح حديث كي راغلي دي چي دوه قاضيان په اور كي وي او يو په جنت كي، يو هغه قاضي دى چي علم پر شرع او د شرع شريفي پر احكامو نه لري او په منځ كي د خصوم حكم بالراى كوي فهو في النار، او بل هغه قاضي دى چي علم شريعت خو ورته حاصل وي لكن حكم خلاف الحق المعلوم كوي يا د

رشوت له سببه یا د عصبیت له سببه فهو في النار، او بل هغه قاضي دی چي ده ته د شریعت احکام خو معلوم وي او مطابق د حق معلوم دی فیصله په منځ کي د خصوم کوي فهو في الجنة، او کما قال رسول اللهﷺ.

**درویش وایي:** چي ددې حدیث سره موافق او د یهودو د ملا یانو د حال سره مناسب دا حکایت دی چي د یهودانو د فیصلو لپاره درې قاضیان دوی مقرر کړي وه (۱) ادنی (۲) اوسط (۳) اعلی، یعني یو قاضي د ابتدائیه محکمې قاضي ؤ، او بل د مرافعې قاضي ؤ، او بل د تمیز د قضاً لوی قاضي ؤ، ددې درې قاضیانو له مقرر کولو څخه مطلب دا ؤ چي د متخاصمینو دعوې به اول ابتدائې محکمې ته وړاندي کېدل په هغه محکمه کي به یو خصم ملامت سو، هغه حق درلودی چي د مرافعه طلب یې کړی وای، او که مرافعه محکمه کي به هم هغه سړی محکوم سوی وای هغه حق د طلب د محکمې د تمیز درلودی، نو که په هغه محکمه کي به ملامت سوی وای، نو بالا حق یې نه درلودی او دعوه یې باطل وه او مدعي حق پر ثابت گرځېدی. نو خدای جلت قدرته ته که څه هم ازلاً معلوم وه لکن د امتحان لپاره یې یوه ملکه پر صورت د انسان چي پر بنه مادیاني سپور ؤ را وایې ستاوه، ملکه چي راغله پر یو ځاه باندي خلگو یعني یهودانو خپلي مواشي اوبولې چي په هغو کي د یو سړي سره غوا او گیلگی هم ورسره وه، ملکي د غوا و گیلگي ته اشاره وکړه گیلگی راغلی د مادیاني سره ودرېدی، غوا والا چي په خپل گیلگي پسي راغلی نو هغه د مادیاني څخه په هیڅ توگه نه جلا کېدی، ملکي ورته وویل که ستا د غوا گیلگی وای نو ستا سره به تللی وای نو دی ځان د مادیاني زوی بولي، اخیر غوا والا په محکمه ابتدائیه عرض پر وکړی ملکي پېش قدمي وکړه، قاضي ته یې د ابتدائیه محکمې رشوت ورکړی مدعي چي راغلی قاضي حکم پر وکړی چي گیلگی په حقه سره د مادیاني زوی دی، د مدعي مرافعه طلب سوه په مرافعه کي، نو هم په سبب د رشوت اخستلو گیلگی د مادیاني زوی وباله سو او مدعي یې ملامت کړی، اخیر الامر غوا والا تمیز وغوښتی قاضي ته د تمیز چي ورغله غوا والا او ملکه، قاضي د تمیز ورته

وویل چي زه اوس په حیض کي یم حکم شرعي نه سم کولای، ملکي ورته وویل چي نر ته څرنګه حیض ورتلای سي، قاضي ورته وویل چي نر ته چي حیض نه ورځي، نو ګیلګی هم د مادیاني زوی نه سي کېدای، نو ګیلګی یې د غوا والا په لاس ورکړی، نو ملکي وویل هغه دوه قاضیان في النار وقاضي في الجنة.

اَلَمْ يُؤْخَذْ عَلَيْهِمْ مِّيْثَاقُ الْكِتٰبِ اَنْ لَّا يَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ وَدَرَسُوْا مَا فِيْهِ

**پوه سه**: چي همزه لپاره د انکار دی، او نفي د نفي اثبات دی، یعني اخستہ سوی پر دوی ټینګول د کتاب یعني التورات، او اضافت په معنی د في دی یعني في الکتاب چي دوی به نه وایي پر خدای ﷻ مګر حق خبره، او دا دعوه د ملا یانو ددوی سیغفرلنا آه غلطه ده لانه لیس في التورات میعاد المغفرت مع الاصرار علی الذنب. لکه ملا یان د یهودو دغسي کوي چي ټینګ پر ګناه دي او دعوه د مغفرت هم کوي.

**پوه سه**: چي "درسوا" درس د کتاب یعني قرائته وتدبره مرة بعد اخری، یعني دوی پوهېږي چي دا عمل چي موږ کوو خلاف د تورات او دا دعوه کول معصیت دی.

**پوه سه**: چي "ودرسوا" یا عطف دی پر "الم یوخذ" په اعتبار د معنی لانه قد مر انه بمعني اخذ دی، نو "درسوا" چي فعل مثبت دی پر فعل منفي چي الم یوخذ دی صحیح دی او یا عطف دی پر ورثوا.

وَالدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿١٦٩﴾

او ثواب د دار اخرت چي جنت دی بنه د هغو کسانو لپاره چي له خدای ﷻ څخه ببرېږي، نو ایمان پر نبي ﷺ راوړل بهتر دی ملا یانو لره د یهودانو تر دنیاوي تو کو چي دوی یې له سفله وو څخه تر لاسه کوي که دوی له خدایه ببرېدلای لاعرضوا عن حطام وامنوا بالنبي الموجود في کتابهم التورات یعني محمد ﷺ.

**پوه سه**: چي په "افلا یعقلون" کي کلمه د فا عطف ده کمامر من قانون جمع همزة الاستفهام مع حرف العطف والتقدیره، ایختارون حطام الدنیا ویترکون الخیر وهو الایمان بالنبي ﷺ والهمزة للانکار علی المحذوف المذکور فلا یعقلون، نو دوی لره عقل نسته، نو فلا یعقلون منزل منزلة اللازم دی. ولي چي د عقل

مقتضی داده چي خیر تر شر مختاره کړي، او دوی په عوض کي د نعیم مخلد په جنت کي یو ادنی شی واخستی چي مقضي د عذاب مخلد في النار ته به سي، یعني ترک الایمان بالنبي ﷺ واخذ حطام الدنیا علی مامر تفصیله.

وَالَّذِينَ يُمَسِّكُونَ بِالْكِتَٰبِ

او هغه کسان چي تمسک کوي په امورو کي د دین په کتاب سره، مجاهد رحمه الله وايي چي مراد له کتاب الله څخه تورات دی یعني په تورات کي تغییر او تبدیل نه وي کړی او نه یې پټ کړی وي او سبب یې د خوراک د اموالو د خلګو نه وي ګرځولی لکه عبدالله بن سلام واصحابه رضي الله عنهم، او عطا رحمه الله وايي چي مراد څندي امت د علیه الصلوة والسلام دی او له کتاب څخه قرآن مراد دی.

**درویش وايي**: چي والاول هو الاوفق للسیاق.

وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ ٱلْمُصْلِحِينَ

او برپايه کوي لمونځ مراد څندي جنس دی چي پينځو سرو فرض لمونځو ته شامل سي، موږ نه ضائع کوو اجر او ثواب د اصلاح کونکو بلکي اجر جزیل ورکوو او ثواب عظیم.

**پوه سه**: چي دا عطف د خاص دی پر عام باندي ولي چي په امورو کي د دین څو صلوة هم داخل دی لتنبیه علی اشرفیة الصلوة لانها عماد الدین کما ورد في الحدیث الصحیح، او لمونځ افضل د عباداتو دی وروسته تر ایمان فافردت بالذکر لذالک الشرف.

| | |
|---|---|
| خانه دین خویش را چوخدا | بر ستون نماز کردبنا |
| بی شکی تاستون بجای بود | خانه دین حق بپای بود |

**پوه سه**: چي بعض مفسرین وايي چي په دې عبارت کي منهم ورسره مقدر دی ای المصلحین منهم او بعض مفسرین وايي چي په دې عبارت کي وضع د اسم ظاهر ده په ځای کي د مضمر والاصل اجرهم فاقام مقامه الاسم الظاهر ای المصلحین مقام الضمیر لپاره د تنبیه پر دوی چي اصلاح مانع ده له نضیع څخه.

وَإِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ فَوْقَهُمْ

كلمه د اذ منصوب المحل ده په اذ مقدر سره. والمعنى اذكر هغه وخت چي مونږ غر له بېخه راوكيښ او پورته مو كړی د بني اسرائيلو پر سرو.

شان نزول: څه وخت چي خدای پاک و موسی عليه السلام ته تورات په يوه پلا وركړی او موسی عليه السلام و بني اسرائيلو ته احكام د تورات مفصلاً بيان كړه، په دې احكامو كي ډېر اوامر وه چي بني اسرائيل نه وه ورسره عادت او داسي منهيات وه چي دوی په ورسره عادت وه، نو بني اسرائيلو منع وكړه له قبول څخه د احكامو د تورات، نو خدای پاک جبرئيل عليه السلام امر كړی چي دومره غر له بېخه راوكاږه چي ددوی د ټولو پر سرو برابر وي او يو قامت يې لوړ ونسه، نو موسی عليه السلام دوی ته وويل چي د تورات احكام قبلوئ كه غر درباندي رايله كړل سي، دوی پر سجده پرېوتل او د تورات د قبوليت وعده يې وكړه او په عين حال كي يې سجده د مخ پر يوه بغل وكړه او په يوه سترګه يې غره ته كتل چي رايله يې نه كړي او تر اوسه پوري يهودان ورته سجده كوي. له دوی څخه چي پوښتنه وكړل سي چي ولي يكبغله سجده كوئ؟ دوی وايي چي مونږ په داغسي سجده له خدای له عذابه خلاص سوو يعني چي غر راباندي ايله نه سو.

كَأَنَّهُ ظُلَّةٌ وَظَنُّوا أَنَّهُ وَاقِعٌ بِهِمْ

دا غر لكه ساتبان ددوی پر سرو ؤ يعني نژدې ؤ، او ددوی يقين سو چي غر راباندي ايله كوي يعني كه مونږ قبول د احكامو د تورات ونه كړو.

خُذُوا مَا آتَيْنَاكُمْ بِقُوَّةٍ وَاذْكُرُوا مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿١٧١﴾

په تقدير د قول ای وقلنا درواخلئ هغه كتاب يعني تورات چي مونږ دركړی ؤ تاسي ته يعني ستاسي پر نبي موسی عليه السلام مو نازل كړی ؤ په عزم او ټينګ كوشش سره او تاسي په ياد كي ساتئ هغه احكام الهيه چي په دې كتاب كي سته

**يوه سه:** چي "بقوة" حال دی له فاعل څخه د "خذوا" ددې لپاره چي تاسي به په دغه تذكر سره د خدای جل جلاله له عذابه وبېرېږئ نو قبائح د افعالو به نه كوئ او رزائل د اعمالو به په زاويه كي د هجران وغورځوئ.

**تنبیه**: د امت سره د علیه الصلوة والسلام خدای پاک د پر لوی احسان وکړی په برکت او شرافت د علیه الصلوة والسلام هغه داچي فرائض د اسلام او منهیات د اسلام یې په تدریج سره نازل کړه سورةً سورةً آیةً آیةً په ټوله زمانه کي د نبوت یعني درویشت کاله، نو هیڅ چا له مسلمانانو څخه لکه قوم د موسی علیه السلام انکار ونه کړی او که فرضاً قرآن کریم په یوه پلا نازل سوی وای او فرائض د اسلام او محرمات د اسلام په بشپړه ډول شاید راغلي وای العیاذ بالله امت د علیه الصلوة والسلام به هم ورته د قوم د موسی علیه السلام انکار کړی وای، وروسته چي احکام د دین اسلام پایه تکمیل ته ورسېدله او د آنحضرت ﷺ شېپ او ورځي د فراق او د هجرت و دار الآخرة ته رانژدې سوې خدای پاک لپاره د خبرتیا دا آیت نازل کړی "الیوم اکملت لکم دینکم واتممت علیکم نعمتي ورضیت لکم الاسلام دیناً" فلله الحمد علی رحمته مع تلک الامة المرحومة اللهم ارحم هذه الامة في دار الآخرة.

وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنۢ بَنِىٓ ءَادَمَ مِن ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ۖ قَالُوا۟ بَلَىٰ ۛ شَهِدْنَآ ۛ

والمعنی اذکر یا محمد ﷺ چي ظاهر کړی رب ستا له اولاد څخه د آدم.

**یوه سه**: چي په دې آیت کي اختصار دی، والتقدیر من آدم وبني آدم. دا ولي چي ذریة خو مختصه په اولاد سره د آدم نه وه بلکي ذریة خو خپله آدم علیه السلام لره هم وه له شاوخوا څخه ددوی.

**یوه سه**: چي لفظ د من ظهورهم بدل بعض دی من بني آدم. ولي چي ټوله بني آدم لره خو ذریة نسته، ولي که بني آدم خو قبل البلوغ هم مړه کېږي او بعض بني آدم بعد البلوغ قبل النکاح مړه کېږي او بعض بني آدم بعد النکاح عقیم وي ددوی اولاد که نر وي او که ښځي، او دوی یې شاهدان کړه پر خپلو ځانو او داسي یې ورته وویل آیا زه نه یم ستاسي رب یعني خالق او تربیه کونکی؟ ټولو ورته وویل هو! ته زموږ رب یې. له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی ده وویل قال رسول الله ﷺ لما خلق الله آدم مسح ظهره بلا کیف فهذه اللفظة من متشابهات هذا الحدیث فسقط من ظهره. نو له ملا څخه د آدم علیه السلام راووتل ټوله انسانان چي خدای ﷻ یې پیدا کوي تر ورځي پوري د قیامت له ذریة څخه ده.

**درویش وایي**: چي په بعضو نورو روایاتو کي راغلي دي مثل الذر لکه کوچني میږان لکن پر صورت د انسان" او خدای پاک ګرځولي وه په منځ کي د دوو سترګو د هر انسان بریښنا او نور. نو دا ټول اولاد خدای پاک و آدم ﷺ ته پېش کړه. نو آدم ﷺ وویل ای رب من هٰؤلاً دا څوک دي؟ خدای پاک ورته وویل دا ټوله ستا اولاد دي یعني بالذات او بالواسطة او بالوسائط. نو آدم ﷺ یو نفر په دوی کي ولیدی چي رڼا د مابین د سترګو یې آدم ﷺ ته خوند ورکړی، نو آدم وویل ای رب من هذا؟ قال هذا داود. نو آدم ﷺ چي څو عمر دي دده لپاره ټاکلی دی خدای پاک وویل چي شپېته کاله، آدم ﷺ ورته وویل چي څلوېښت کاله زما له عمر څخه ورکړه یعني چي سل کاله یې عمر سي، قال رسول الله ﷺ چي د آدم ﷺ چي عمر په څلوېښت کاله کم پوره سو. ملک الموت ورته راغلی یعني لپاره د قبض روح، آدم ﷺ ورته وویل چي زما خو څلوېښت کاله عمر لا پاته دی. عزرائیل ﷺ ورته وویل چي هغه خو تا و داؤد ته بخښلی ؤ، نو آدم ﷺ ورته منکر سو، علیه الصلوة والسلام وایي چي دا انکار یې په اولاد کي هم پیدا سو، او آدم ﷺ په هېره سره د شجرة منهي عنها څخه خوراک وکړی نو هېره یې په اولاد کي هم پاته سوه، او خطاوتی آدم ﷺ نو خطا یې په اولاد کي هم پاته سوه.

**درویش وایي**: چي ورته روایت سره د اختلافه د بعض الفاظو د حدیث ترمذي هم کړی دی له ابو دردا ﷺ څخه.

**درویش وایي**: چي په ځای کي د اخذ میثاق له اولاد څخه د آدم ﷺ ډېر اختلاف دی چي راوړل یې فائده نه لري، والاحوت تفویض علم ذالک الی الله تعالی، مظهري رحمه الله دومره ډېر مختلف حدیثونه راوړي دي چي متعلم ته بېله اضطراره بله فائده نه لري تاسي یې مطالعه کړئ زما د خبري صدق به درمعلوم سي ان شاء الله. ولله درصاحب روح البیان حیث صرف النظر عن هذه الاختلافات مع کونه عالماً فاضلاً واما کاملاً في علم التفسیر وجامعاً بین الظواهر والبواطن المتوفي بسنة ١١٢٧ ﻫ ق والمظهري رحمه الله توفی بسنة ١٢٢٥ ﻫ ق. وصاحب

روح المعاني علامة بغداد قد بين في هذه الايات التحقيقات النحوية والبيانية وصرف النظر عن هذه الاختلافات. المتوفي بسنة ۱۲۷۰ ه ق.

نو درویش هم په دغو مفسرینو پسي اقتداً وکړه او اختلافات یې صرف نظر کړه او ماته خو ښېښې ضروري ده چې اختلافات به صرف نظر کوم. ولي چې د عامي تفسیر پښتانه مطالعه کوي چې یا خوانده عوام وي یا طالبان وي او یا کم علمه امامان وي. دا ټوله ولي د درانه بار د اختلافاتو طاقت نه لري. واما العلما المتبحرين من عصر الفقير فلا يحتاجون الى مطالعة تفسير الفقير بل يأخذون مايحتاجون اليه في تفسير القرآن العزيز من التفاسير العربية وهي كثيرة بحمده تعالى.

**پوښتنه**: په آیت مذکوره کې خدای پاک داسې وویل "واذ اخذ ربك من بني آدم من ظهورهم" مع ان الاحاديث دلت على انهم اخرجوا من ظهر آدم عليه السلام؟

**ځواب**: اخرج الله تعالى ذرية آدم بعضهم من ظهور بعض على نحو مايتوالدون نو ذکر ته ضرورت نسته، ولي چې دا هر چاته معلومه ده چې دا ټوله خو اولاد د آدم عليه السلام دي فلذالك لم يذكر ظهر آدم في الآية.

**پوښتنه**: چې "شهدنا" د بلى سره تعلق لري، نو دا اخبار د خدای جل جلاله له خوا ځخه د قول د بني آدم يعني المعنى بلى شهدنا.

## اَنۡ تَقُوۡلُوۡا يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ

دا خطاب دی د خدای جل جلاله ودوی ته. نو "ان تقولوا" علت دی د اخذ الميثاق منهم فالتقدير اخاطبكم بالست بربكم كراهة ان تقولوا اولئلا تقولوا چې تاسې ونه وایاست په ورځ د قیامت.

## اِنَّا كُنَّا عَنۡ هٰذَا غٰفِلِيۡنَ ۙ

په تحقیق مونږ له تخصیص ځخه د ربوبیت ستا غافله.

**سوال**: دا اخذ الميثاق به په ورځ د قیامت ځرنګه حجت سي پر خلګو او سره ددې چې د هیڅ چا خو اخذ الميثاق نه دی په یاد؟

**ځواب**: په ورځ د قیامت خدای جل جلاله ودوی ته دا اخذ الميثاق ور پیادوي، او په دې دنیا کې چې مخبر صادق المؤيد بالمعجزات دوی ته خبر ورکړي په ذریعه د

قرآن منزل پر هغه مخبر صادق ﷺ نو دوی یعني کافران نه عذر په دنیا کي لري او نه په قیامت کي.

أَوْ تَقُولُوا إِنَّمَا أَشْرَكَ آبَاؤُنَا مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِّنْ بَعْدِهِمْ ۖ أَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُونَ ﴿١٧٣﴾

او یا په ورځ د قیامت دا عذر ونه کړي چي ووایاست چي نه و شرک کړی مګر ته زموږ پلرو او نیکه ګانو تر موږ دمخه او موږ ددوی اولادونه وو او ددوی متابعت مو وکړی په شرک کي، آیا ته اې خدایه موږ هلاکوې؟ یعني عذاب راکوې په هغه کار سره چي شرک دی چي مبطلون یعني زموږ اسلاف چي پر باطله لاړ روان وه، و حاصل الآیتین کراهة ان تعتذروا بالغفلة کما في الآیة السابقة او بالتقلید للاباء ولي چي دا یو عذر مسقط د عذاب ددوی نه دی لان منهم ایضاً اخذ المیثاق کما من الآبا.

وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿١٧٤﴾

او داغسي کمامر موږ بیانوو آیات قرآنیه تاچي فکر ووهي په هغو کي بندګان او وریاد سي هغه شی چي دوی هیر کړی و.

**پوه سه:** چي جمله د "ولعلهم یرجعون" عطف ده پر محذوف باندي تقدیره لعلهم یتدبرون ولعلهم یرجعون من الشرک الی التوحید، مظهري رحمه الله وایي کذا قال السلف الصالح وجمهور المفسرین ویشهد به الاحادیث. غرض یې دادی چي دا سوال وجواب په منځ کي د خدای ﷻ او د ذریة آدم یعني الست بربکم قالوا بلی محمول پر حقیقت دی، والمعتزلة انکروا هذه الآحادیث وحملوا هذه المقاولة المذکورة علی التمثیل والمجاز، والبیضاوي ومن تبعهم دا آیات محمول پر تمثیل بولي فارجع الی تفسیره.

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ الَّذِي آتَيْنَاهُ آيَاتِنَا فَانْسَلَخَ مِنْهَا

او ته تلاوت وکړه ای محمد ﷺ پر یهودانو خبره او قصه د هغه چا چي موږ ته ورکړی و علم د آیاتو زموږ، نو دی زموږ ووتی له آیاتو څخه زموږ یعني اعراض

یې څنډې وکړې او کافر سو په هغو آیتو سره، ابن عباس رضی الله عنه وایې چې دا سړی بلعم بن باعور نومېدی او له قوم څخه د بني اسرائيل ؤ. ولهذا قال الله تعالى واتل عليهم اى على بني اسرائيل.

**وقصة**: لکه څرنګه چې ابن عباس رضی الله عنه او ابن اسحاق او سدي وغيرهم ذکر کړې ده داده چې موسی عليه السلام چې قصد د جنګ د جبابره سره وکړی ونزل ارض بني کنعان من ارض الشام، نو يو څو کسان و بلعم مذکور ته ورغله چې دده اسم اعظم شريف زده ؤ، او ورته وه یې ويل چې موسی عليه السلام يو سخت مزاجه سړی دی او ډېر لوی لښکر ورسره دی، او دی ددې لپاره را روان دی چې موږ لـه خپلو وطنو څخه وباسي او يا مو مړه کړي او پر ځای زموږ بني اسرائيلو ته ځای ورکړي او تـه خو يو مجاب الدعوة شخصيت یې، نو مخ ته یې زموږ سره ووزه، او خدای ته خواست وکړه چې دده مخ زموږ څخه چپ کړې. بلعم بن باعور ورته وويل ويلکم هو نبي ومعه الملائکة والمؤمنون. نو زه څرنګه ودوی ته ښېرا وکړم او زه د خدای جل جلاله له خوا خبر يم په هغه شي چې علم پر لرم يعني الاسم الاعظم او که زه دا کار وکړم دنيا او اخرت به له لاسه ورکړم او زه خو ستاسي لپاره دنيا او اخرت نه خرابوم، بيا خلګ ورته راغله او ډېر الحاح یې ورته وويل چې دا کار به کوې. بلعم ورته وويل چې زه به په دې باره کې د خدای جل جلاله سره مصلحت وکړم. راوي وايي چې د بلعم دا قانون ؤ چې چاته یې ښېرا نه کول تر څو چې په خوب کې نه وای په امر سوی. نو ددې ښېرا په باره کې یې هم پر ځان خوب واچاوه يعني استخاره یې وکړه، نو په خوب کې ورته وويل سوه چې ښېرا موسی عليه السلام ته مه کوه. نو خلګ چې صبا ورته راغله چې ما استخاره وکړه لکن په خوب کې خدای پاک زه له دې ښېرا څخه منع کړم، نو خلګو لو په هديه ورته راوړه بلعم څنډې قبوله کړه، وروسته ورته راغله چې ته به حتماً دا ښېرا کوې، نو بلعم ورته وويل چې زه به په خوب کې د خدای جل جلاله سره مشوره کوم، نو خوب چې یې پر ځان واچاوه هيڅ شی یې په خوب ونه ليدی، نو خلګ چې ورته راغله نو بلعم ورته وويل چې ما په خوب هيڅ شی ونه ليدی، نو خلګو ورته وويل چې دا معلومه سوه چې د خدای خوښه ده، ولې که

يې نه وای خوښه نو ته به يې ځني منع کړی وای لکه په دمخه استخاره کې چې يې منع کړې، نو خلگ په پسې وه او زاری يې ورته کولې چې دا کار وکړه حتی چې بلعم يې په فتنه اخته کړی، نو بلعم پر خره سپور سو راهي سو و هغه غره ته چې له هغه ځخه د موسی عليه السلام لښکر معلومېدی چې د هغه غره نوم حسان و يو څو گامه چې خرې واخستل چې بلعم پر سپور و خره پر پرېوته، نو خلگو خره په لرگو او شلاخو ووهله خره بېرته ولاړه سوه بيا بلعم پر سپور سو، بيا چې خرې يو څو گامه واخستل بيا بلعم خره ووهله په قدرت د خدای ﷻ خره پر خبرو راغله وكلمتها حجة عليه، نو خرې ورته وويل ويحک يا بلعم اين تذهب چېرې ځې ته الا ترى الملائكة امامي تردني عن وجهي هذا تذهب الى نبي الله والمؤمنين تدعوا عليهم آيا ته نه وينې چې ملکې زما په مخ کې ولاړي دي او ما راگرځوي له پرمخ تتلو ځخه آيا ته ځې و نبي ته د خدای ﷻ او مؤمنانو ته ښېرا ورته کوې، نو د خرې په خبرو بلعم عبرت نه واخستی بلکې خپل قصد ته يې ادامه ورکړه، نو خدای ﷻ د خرې مخ ايله کړی خره روانه سوه حتی چې خره پر جبل حسان وختل، نو بلعم چې په موسی او مؤمنانو ته ښېرا کول ژبه به يې د قوم و خواته په ښېرا گوېا سوه، او هره پلا چې به ده د قوم وخواته د خير دعا کول پر ژبه به يې د مؤمنانو لپاره د خير دعا جاري سوه، نو قوم ورته وويل چې ته څه کوې يا بلعم ته موږ ته ښېراوي کوې او مؤمنانو ته د خير دعاوي کوې، بلعم ورته وويل چې زما په طاقت کې داغه قدر سته هذا شيئ قد غلب الله عليه، وروسته د بلعم ژبه تر خوله راووتل پر ځيگر يې پرېوتل، نو بلعم خلگو ته وويل چې اوس زما ځخه دنيا او اخرت دواړه ولاړه، نو اوس ما ته يوه حيله پاته ده هغه دا چې خپلي ښځي ښې ښائسته کړي او څه څه شيان د خرڅلاو په بهانه ورکړي او د موسی وقوم ته يې ورواستوئ، او خپل ښځي امر کړي چې هر چا چې ستاسي سره د زنا غوښتنه وکړه ځان مه ځني منع کوئ يعني زنا ورسره کوئ، بلعم ورته وويل که يو سړی هم د موسی په قوم کې زنا وکړي ستاسي کافي ده يعني د موسی عليه السلام او د مؤمنانو په شکست کې، نو خلگو د بلعم په قول داغسي هم وکړه، نو څرنگه چې ښځي د موسی عليه السلام د

عسکرو ته داخلي سوي سره د زيب او زينت. نو يوه ښځه کنعانيه چي ډېره ښائسته وه چي کنيت يې بنت صور يا ؤ، د نضر چي له رؤساوو څخه د بني اسرائيل و چي نوم يې زمري بن شلوم و چي رئيس د سبط د شمعون و. نو دا رئيس ور ولاړ سو ښځه يې تر لاس ونيول او موسى عليه السلام ته يې ودرول دې سري ورته وويل چي ستا به دا خيال وي چي دا ښځه و ماته حرامه ده؟ موسى عليه السلام ورته وويل نعم هي حرام عليك. هو! دا ښځه تاته حرامه ده ولي چي نكاح ستا او ددې تر منځ نسته. كار ورسره ونه كړې. هغه سړي ورته وويل فوالله لا اطيعك في هذه قسم په خداى دى كه زه ددې په باره كي ستا په خوله وكړم. دستي يې په خېمه دننه كړه او زنا يې ورسره شروع كړه. نو خداى پاک دستي پر قوم طاعون او وبا مسلطه كړه. او د موسى عليه السلام سره يو قومندان ؤ چي نوم يې فنخاص بن العيزار بن هارون ؤ چي په هر كار كي په موسى عليه السلام پر دغه قومندان ډېر كاوه او دا قومندان په بدن ډېر غټ ؤ او په زور ډېر قوي ؤ. او دا قومندان په دغه وخت كي چي زمري بن شلوم د ښځي سره په خېمه كي زنا كوله غائب ؤ او په بني اسرائيلو طاعون ګډ ؤ. فنخاص مذكور چي راغلى خلګو د زمري د زنا په خېمه كي خبر وركړى، نو فنخاص خپله توره چي ټوله وسپنه وه راواخستل او په خېمه پسي ورننوتى. زمرى او كنعانيه سره پراته دي. نو يې دواړه په توره ووهل او سره يې كړل او دواړه يې په نېزو ورپېيل او د اسمان وخواته يې پورته كړه او توره يې په لاس كي ده او پر ډډې يې لاس نيولى ؤ او دا يې ويل اللهم هكذا يفعل بمن يعصيك، فرفع الطاعون خداى جل جلاله بالفور طاعون بند كړى. راوي د قصې وايي چي په دغه وخت كي چي زمرى د كنعاني سره په خېمه كي په زنا اخته ؤ او فنخاص دواړه ووژل او ويا زره كسه د بني اسرائيلو په طاعون مړه سوه.

**درويش وايي:** چي په شان كي دد غه بلعم خداى پاک دغه آيت نازل كړى "واتل عليهم نبأ الذين ﴿ع﴾"

**فائده:** نژدې ودغه قصه طويل ته نور روايات هم په باره كي د بلعم راغلي دي له مقاتل رحمه الله څخه.

**پوه سه**: چي په بلعم کي اختلاف دی څوک وايي چي کنعاني ؤ لکن انسب د مقام سره د توبيخ د بني اسرائيل داده چي بعلم له علماؤ څخه د بني اسرائيلو ؤ كما في الارشاد، وفي منهاج العابدين للامام الغزالي رحمه الله. او هغه علماً چي وايي چي کنعاني دی د هغه سبب دادی چي دی خو په قوم د بني اسرائيلو ؤ لکن په کنعانيانو کي زو کړی ؤ او اوسېدی فنسب اليهم.

**درويش وايي**: چي په يو روايت د ابن عباس رضي الله عنه والله بصحته داسي هم راغلي دي چي دا آيت د بني اسرائيلو په يو سړي کي نازل سوی دی چي ده ته الهاماً دري دعاوي منجانب الله ورکړه سوي وې او دې سړي يوه ماينه درلوده او له هغې څخه يې زامن هم درلوده، دده ماينه په درو مستجابو دعاؤ خبره وه، نو يو وخت يې ور مېړه ته وويل چي ته خو په هغو درو دعاو کي يوه ماته راکړه، مېړه ورته وويل بنه دی، يو خواست يې ستا نو ته څه غواړې؟ ښځي ورته وويل چي ته خواست وکړه چي ما تر ټولو ښائسته ښځه د بني اسرائيلو وګرځوي، مېړه چي يې خواست وکړی په قدرت د خدای جل جلاله دا تر ټولو اجمله د بني اسرئيلو د ښځو وګرځېدله، نو ښځه له کوره وتله مېړه يې ورته وويل چي چېري ځې؟ دې ورته وويل چي زه داغسي ښائسته سړی لکه زه مېړه کوم، مېړه ته يې درد ورغلی او خدای جل جلاله ته يې خواست وکړی اللهم اجعلها كلبة نباحة فصارت، نو دوه خواسته خو يې ولاړه، نو د ښځي زامن چي د سړي هم زامن وه، خپل پلار ته راغله چي زموږ مور دې سپې کړه دا خو خلګ موږ ته پېغور راکوي، پلار ورته وويل چي نو څه غواړئ، زامنو ورته وويل چي خدای ته خواست وکړه چي زموږ مور پر سابقه حالت باندي وګرځوي، ده هم خواست وکړی ماينه يې د پخوا پر حال سوه او دده دعاګاني ثلثه مستجابه خلاصي سوې.

**درويش وايي**: چي عبدالله بن عمرو، سعيد بن المسيب رضي الله عنه او زيد بن اسلم او ليث بن سعد رحمهما الله تعالى وايي چي دا آيت يعني وتل عليهم نبأ ⃝ په امية بن ابي الصلت الثقفي کي نازل سوی دی، د هغه قصه داده چي اميه مذكور کتابونه د تاريخ مطالعه کړي او دی ډېر صاحب د حکمت ؤ او ډېر ژيارې

شخصیت وُ. نو ده ته د کتابو له لارې دا معلومه سوې وه چې خدای پاک یو رسول را استوي او دده امید دا وُ چې هغه رسول به زه یم. نو چې خدای پاک محمد اخیر الزمان ﷺ نبي کړی، نو د امیه په زړه کي حسد ورسره پیدا سو او د نبوت څخه یې منکر سو او له مکې څخه ولاړی او بعض ملکو د باچهانو سره یې صحبت مختار کړی. او د بدر واقعه چې پېښه سوه او امیه په خبر سو نو یې ویل که محمد نبي وای نو یې خپل قومان او خپلوان ولې وژل. مراد یې څنډي هغه اوو یا کسان وه د مشرکانو د مکې چې په بدر کي ووژل سوه. راوي وایي چې امیه چې مړ سو، نو دده خور فارعه رسول الله ﷺ ته راغله مدینې منورې ته. نو علیه الصلوة والسلام د امیه د مړیني په باره کي پوښتنه څنډي وکړه. نو خور یې وویل چې امیه بیده وُ د خونې بام پورته کړل سو او دوه کسه راکښته سوه، نو یو یې و سر ته کښېنستی او بل یې و پښو ته. نو د پښو والا نفر د سر نفر ته وویل اوعي هو؟ د سر نفر ورته وویل وعي. بیا پښو والا ورته وویل اذکي؟ قال ذکي. خور یې وویل چې ما ورته وویل چې دا څرنګه دوه کسه وه او څه یې سره وویل، ده راته وویل خیر ارید به. نو دی ولاړ سو او غوڅار سو او بیهوشه سو چې په هوش کي راغلی دا درې بیتونه یې وویل.

کل عیش وان تطاول دهراً ............... صائر مرة الی ان یزولا
لیتني کنت قبل مابدائی ............... في قلال الجبال ارعي الوعولا
یوم الحساب یوم عظیم ............... شاب فیه الصغیر یوماً ثقیلاً

علیه الصلوة والسلام یې وخور ته وویل چې ته ځیني نور اشعار ستا د ورور راته ووایه. خور یې د خپل ورور ځیني قصیدې ورته وویل. نو علیه الصلوة والسلام وویل آمن شعره وکفر قلبه فانزل الله تعالی وتقدس اتل علیهم نبأ الذین

**درویش وایي:** چې د امیه قصائد روح المعاني په تفصیل راوړي دي.

**فائده:** دغه بیان کړل سوی بیان درویش د دغو تفاسیرو څخه نقل کړی له بعضو څخه لږ له بعضو څخه ډېر.

(روح المعاني، روح البیان، تفسیر مظهري، بیضاوي، تفسیر قرطبي وغیره)

فَاَتْبَعَهُ الشَّيْطٰنُ فَكَانَ مِنَ الْغٰوِيْنَ

نو شیطان په پسې سو او ده لار د دین یې قطع کړه. نو وګرځېدی د ګمراهانو له ډلې څخه.

وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنٰهُ بِهَا وَلٰكِنَّهٗۤ اَخْلَدَ اِلَى الْاَرْضِ

که زموږ اراده وای نو دی به مو پورته کړی وای په دغو آیتو سره و منازلو ته د علماً ابرار، ده میل وکړی یعني بلعم بن باعور ودنیا ته. نو موږ هم اراده ددې ونه کړه چي دی پوره کړو و درجې ته د علماً ابرار.

**پوه سه:** چي اخلاد وشي ته میل و هغه شي ته سره د اطمنان د زړه او تعبیر له دنیا څخه یې په مځکه سره وکړی. ولي چي په مځکه کي کښنتونه کېږي او تول له متاع الدنیا له مځکي څخه پیدا کېږي.

**پوه سه:** چي اخلاد ومځکي ته کنایه ده له اعراض عن الآیات والعمل بمقتضاها. قالوا ان الکنایة ابلغ تر صریح ده.

وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ

او ده متابعت د خواهشاتو نفسیه وو وکړی یعني مراعات د قوم او د هدایاوو ددوی یې وکړی کمامر او مراعات د آیات الله یې پرېښول لان هوی النفس راغب الی الامور الدنیویة وهارب من الامور الاخرویة کاتباع الآیات فیما نحن فیه. قاضي بیضاوي وایي چي خدای پاک اولاً رفع د بلعم و منازلو ته د ابرار معلق وګرځول په خپل مشیت پوري بیرته استدراک د نفي د مشیت الهي په دې سره وکړه ولکنه اخلد آه. یعني سبب د مشیت الهي فعل د عبد دی چي دی خپل همت مبذول کړي و اتباع ته د آیاتو والعمل بها لکن په بلعم کي دا سبب نه سو پیدا نو مسبب یې هم منتفي سو چي مشیت الهي دی. مرزا غالب رحمه الله د هر په زړه پوري شعر ویلی دی.

همت بلند دار که نزد خدا وخلق　　　باشد بقدر همت تو اعتبار تو

یو بل شاعر بیا داسي بیت ویلیی دی

نقصان زقابل است وگرنه على الدوام .... فیض سعادتش بهمه کس برابر است

عبدالرحمان بابا وايي

دا باران چي پر همه و مځکو اوري ........ مشرف کی ذات د کیمیا ولي

**فَمَثَلُهُۥ كَمَثَلِ ٱلْكَلْبِ إِن تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ أَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَث**

نو صفت خسیس غاية الخسة د بلعم بن باعورا لکه صفت خسیس د سپي دی چي که ته يعني اې مخاطبه هر څوک چي صالح د خطاب وي که ته حمله پر وکړې يعني ورپې شړې او چغه پې کړې ده خوله وازه نیولې وي ژبه يې رايستلې وي او که يې ته پرېږدې او چغه يې نه کړې هم سپي خوله وازه نیولې وي او ژبه يې رایستلې وي. له دې سببه په سپي کې ضعف القلب دی چي اخراج د گرمي هوا له باطنه څخه او د تازه هوا کشولو په ډېر تکلیف سره کوي بخلاف سائر الحیوانات فان تنفسهم سهل علیهم لقوة قلوبهم. داغه رنگه د بلعم ژبه چي له خولې څخه راووتل او پر څیگر یې پرېوتل، نو همېشه به یې خوله وازه نیولې وه لکه سپی بئس مثل القوم الظالمين۞.

**درویش وايي:** چي اوس خدای پاک دا مثال عام کوي هر هغه چاته چي تکذيب د ایات الله وکړي شاملوي فقال.

**ذَّٰلِكَ مَثَلُ ٱلْقَوْمِ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَـٰتِنَا**

او دغه مثال دی د هغه قوم چي دوی تکذیب د آیاتو د خدای ﷻ کوي. يعني که يې ته وبېروې او نصیحت ورته وکړې ایمان نه راوړي، او که يې نه وبېروې او نصیحت نه ورته وکړې هم ایمان نه راوړي "إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ۞" (البقرة)

**فَٱقْصُصِ ٱلْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ۞**

داغسې قصې و بني اسرائیلو ته کوه ولې چي دا قصې ددوی د حالاتو سره پوره سمون لري، شاید دوی به فکر ووهي او له کفر او طغیان څخه به رجوع وکړي.

سَآءَ مَثَلًا الْقَوْمُ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَا وَاَنْفُسَهُمْ كَانُوْا يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۷۷﴾

بد دی مثال او حال د هغه قوم چي تکذيب کوي د آياتو زموږ او ځانونه ددوی داسي وه چي ظلم يې کاوه.

**پوه سه**: چي په "سا" کي ضمير مبهم دی چي تميز يې مثلاً دی او "انفسهم" مبتدا ده او "کانوا يظلمون" يې خبر دی او دا جمله عطف ده پر "کذبوا" داخله په صله کي د "الذين"

**سوال**: کذبوا" خو جمله فعليه ده او "انفسهم آه" خو جمله اسميه ده، نو عطف يې څرنګه روا دی؟

**ځواب**: جمله معطوفه په سبب د راوړلو د کانوا هم فعليه ده کما لايخفی علی من القی السمع وهو شهيد.

**پوه سه**: چي د "انفس" ظلم راجع دی ودوی ته په اعتبار د افعال سيئه وو ددوی.

مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِيْ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۷۸﴾

چي چاته هدايت وکړي خدای پاک نو هغه پر سمه لار دی، او څوک چي خدای پاک ګمراه کړي نو هغه کسان په خسران او تاوان کي دي.

**تنبيه**: چي ضمير عائد و "من" ته په دواړو ځايو کي محذوف دی يعني من يهده الله ومن يضلله، او په اول کي چي يې ضمير د "فهو" مفرد راوړی په اعتبار د لفظ من او په دويمه جمله کي چي فاؤلئک يې په لفظ د جمع راوړی په اعتبار د معنی د من.

**پوښتنه**: مهتدي يې ولي مفرد راوړی او په دويمه جمله کي يې "خاسرون" جمع راوړی؟

**ځواب**: د مهتدين چونکه يو مسلک دی چي دين د اسلام دی، نو ګويا ټول يو شخص دی او د ضلال لاري چونکه ډېري دي لکه يهوديت، شرک، مجوسيت، دهريت، نصرانيت وغيرها نو ځکه يې خاسرون جمع راوړی.

وَلَقَدۡ ذَرَأۡنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرٗا مِّنَ ٱلۡجِنِّ وَٱلۡإِنسِۖ

او مونږ پیدا کړي دي دوږخ لپاره ډېر د پیریانانو او ډېر د انسانانو هم المصرون على الكفر في علمه تعالى في الازل.

**یوه سه:** چي جهنم د خدای پاک بندي خانه ده په اخیرت کي، او جهنم چي يې بولي په سبب د ډېر لېږي والي د پای دده، لکه څرنګه چي د عربو په محاوره کي وايي بئر جهنام اذا كانت بعيدة القعر. او په جهنم کي يو ځای ګرم سته په غايه حرارت کي، او بل ځای چي د زمهرير په نامه يادېږي ډېر خنک دی في غاية البرودة هذا ما قاله البروسوي رحمه الله. او بعض مفسرين وايي چي زمهرير له جهنم څخه خارج دی، او په منځ کي د اعلى د جهنم او د اسفل دده د پيښځه اوويا سوه کالو لار ده "اللهم نج المؤمنين والمؤمنات منها.

**یوه سه:** چي لام په "لجهنم" کي لپاره د عاقبت دی لکه په لدوا للموت کي وابنوا للخراب کي يعني عاقبت د ولادت موت دی او عاقبت د بنا خراب دی، ددي سبب دادی چي هغه څوک چي خدای جل جلاله په ازل علم پر لري چي دی پر کفر مري په خپل اختيار، نو د هغه عاقبت به حتماً دوږخ وي.

**فائده:** جن مشتق دی له اجتنان څخه وهو الاستتار لان الجن مستورين عن الاعين في الاكثر.

**پوښتنه:** جن يې هر ځای په قرآن کريم کي تر انس دمخه راوړی وجه يې څه ده؟

**ځواب:** جن اکثر دي په عدد کي تر انس او په خلقت کي هم تر دمخه دي.

**مسئله:** جن مکلف دي په احکامو د اسلام بصريح نص القرآن وبالاحاديث المتواترة المعنى وباجماع الامة على الخصوص في هذه الامة وان نبينا ﷺ رسول الثقلين، ولاشک انهم مكلفون في الامم الماضية ايضاً لقوله تعالى "اولئک الذين حق عليهم القول في امم قد خلت من قبلهم من الجن والانس انهم كانوا خاسرين"

**تنبيه:** امام مظهري رحمه الله وايي چي لام د "لجهنم" چي لپاره د عاقبت بولي دا مذهب د معتزله وو دی.

**درویش وایي:** چي په روح المعاني کي وايي چي لام د عاقبت دی عند كثير آه

او په روح البيان كي هم وايي چي لام د عاقبت دی، آيا علامه بغدادي او علامه بروسوي معتزليان وه او كه څرنګه.

## لَهُمْ قُلُوبٌ لَّا يَفْقَهُونَ بِهَا

دوی زړونه لري چي په هغو كي استعداد د پيژندلو د حق نسته او په دلائلو او معجزاتو كي د هغه حق هم فكر نه وهي بلكې پر سحر يې حمل كوي.

## وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُونَ بِهَا

او دوی لره سترګي سته چي په هغو سترګو دوی دلائل د حق نه ويني يعني اعتبار او عبرت په سترګو يعني كه يې څه هم ظاهراً ويني والا لا آمنوا.

## وَلَهُمْ آذَانٌ لَّا يَسْمَعُونَ بِهَا

او دوی غوږونه لري چي په هغو غوږو حق نه اوري يعني آيات قرآنيه او مواعظ حسنه په اورېدلو د تامل فيها.

## أُولَٰئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ

دوی لكه چارپايان غوندي دي په نه پوهېدلو كي د حق او په نه ليدلو كي د حق او په نه اورېدلو كي د حق، بلكې عقلونه او حواس ددوی بند دي پر اكل او شرب او جماعو لكه چارپايان چي هغه پر دغو كارو محصور دي، بلكې دوی تر چارپايانو ډېر ګمراهان دي، ولي چي چارپايان خپل مربي او مالك پېژني او د هغه احترام كوي. ته نه ګوري چي يو تكړه خروړی سپی چي د يو چا په كور كي وي، او هغه مالك وده ته ورودی، غوښې وغيره مهيا كوي، نو دغه مالك بلكې د كور كوچنيان كه دغه سپي هر څو ووهي سپی خوله نه وراچوي، او غير مالك چي ورته نژدې سي په څټ كي ورسپرېږي، او دغه كافران د مالك حقيقي او رازق حقيقي چي خدای ﷻ دی احترام نه كوي او امر او نهي يې نه اوري او د هغه په امر ايمان نه راوړي، او دغه حيوانان په خپل ضار او نافع شعور لري، له ضار څخه ځان ساتي او له نافع جلب كوي.

ته نه وينې پيشي چونكه دا د خپلي معدې په حال شعور لري چي معده

کمزوري او مسهل ده، نو څکه چي سپيني غوښي ورواچوي نه يې خوري، او داغه رنګه که له ښوروا ځخه غوړه ګوله ورواچوي هم يې نه خوري او که وچه ډوډۍ ورواچوي هيڅ څکه نه په کوي او که هډوکي ورواچوي غاښونه پر باسي خو هغه هډوکي خوري، نو څکه د پيشي چکر لکه پوچي غوندي وي، او اسهالي چکر د پيشي به چا نه وي ليدلی، ولي چي دا له سهل خور که ځخه پرهېز کوي، او دغه کافران ځپل ضار او نافع چي کفر او اسلام دی نه سره پېژني بلکې همېشه په ضار کي ولاړ دي، بلکې بعض کفار لکه يهودان پر نار مؤبده باندي ورځغلي عناداً مع العلم بان عملهم موجب للنار المؤبدة "يعرفونه كما يعرفون ابنائهم ۞" وجحدوا بها واستيقنتها انفسهم ظلماً وعلواً ۞.

أُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْغَٰفِلُونَ ۞

او هم دغه کسان غافله دي په کمال غفلت سره لاغيرهم كما يدل عليه ضمير الفصل، سعدي شيرازي قدس سره وايي.

غبار هوا چشم عقلت بدوخت سموم هوا كشت عمرت بسوخت
بکن سرمه غفلت از چشم پاک که فردا شوی سرمه درچشم خاک

يو محقق وايي

دريغ آدمی زاده بر محل که باشد چو انعام بل هم اضل

وَلِلَّهِ ٱلْأَسْمَآءُ ٱلْحُسْنَىٰ فَٱدْعُوهُ بِهَا

او د خدای پاک نومان ډېر ښه دي چي پر ښوو معانيو دلالت کوي، نو تاسي بولئ په دغو نومانو سره او ذکر يې په دغو نومانو سره کوئ، او په صحيح حديث کي راغلي دي "ان لله تسعة وتسعين (۹۹) اسماً مائة الا واحد، من احصاها دخل الجنة هو الله الذي لا اله الا هو الرحمن الرحيم الملك القدوس السلام المؤمن المهيمن العزيز الجبار المتكبر الخالق البارئ المصور الغفار القهار الوهاب الرزاق الفتاح العليم القابض الباسط الخافض الرافع المعز المذل السميع البصير الحكم العدل اللطيف الخبير الحليم العظيم الغفور الشكور العلي الكبير الحفيظ المقيت الحسيب الجليل الكريم الرقيب المجيب الواسع

الحكيم الودود المجيد الباعث الشهيد الحق الوكيل القوي المتين الولي الحميد المحص المبدئ المعيد المحي المميت الحي القيوم الواجد الماجد الواحد الصمد القادر المقتدر المقدم المؤخر الاول الآخير الظاهر الباطن الوالي المتعال البر التواب المنتقم العفو الروف مالک الملک ذو الجلال والاکرام المقسط الجامع الغني المغني المانع الضار النافع النور الهادي البديع الباقي الوارث الرشيد الصبور جل جلاله وعم نواله.

**فائده:** قديم مشائخ وايي چي شروع دي کوي اولاً په دي ډول اللهم اني اسئلک يا رحمن يا رحيم تر اخيره پوري، نو په ټوله اسمآ الحسنی مصدر سي په حرف ندآ سره. او په اخير کي دي درود پر عليه الصلوة والسلام ووايي په دي ډول ان تصلي على محمد وآله واصحابه وان ترزقني وجميع من يتعلق بي، بتمام نعمتک ودوام عافيتک يا ارحم الراحمين کما في الاسرار المحمدية.

**پوه سه:** چي نومان د خدای ﷻ حصر په دغه نومانو کي نه دي چي په دې حديث کي راغلي دي او په قرآن کي نسته، لکه الحنان، المنان، الجواد، الفرد والوتر والصادق والجميل والقديم والبار والوافي والطاهر والمبارک چي دا نومان بيا په متفرقو احاديثو کي راغلي دي.

**مسئله:** اسمآ د خدای ﷻ حصر په هغو کي نه دي چي په قرآن او احاديث کي راغلي دي دي، ولي چي په يوه رايت کي راغلي دي چي خدای ﷻ په تورات کي خپل نومان زر (۱۰۰۰) راوړي دي فلابد من الايمان بجميع اسمائه تعالى مجملاً، په دې حديث کي اشاره ودغه ايمان اجمالي ته ده چي عليه الصلوة والسلام په دعآ کي داسي ويل اللهم اني اسئلک لکل اسم هو لک سميت به نفسک وانزلته في کتابک او علمته احداً من حلقک او استأث به في علم الغيب عندک.

**درويش وايي:** چي ددغو اسمآ الحسنی معاني او خواص د هغو په شرح کي د اسمآ الحسنی راغلي دي للامام الهمام محمد الغزالي رحمه الله.

وَذَرُوا الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْٓ اَسْمَآئِهٖ

او تاسي پرېږدئ اې مؤمنانو هغه کسان چې عدل له حق څخه کوي په نومانو کې د خدای ﷻ. الحاد او لحد میل دی د حق. یعقوب بن السکیت رحمه الله وایي چې الحاد عدول له حق څخه وادخال مالیس منه. بعض مفسران وایي چې ملحدون په اسما کي د خدای ﷻ مشرکین دي یا په زیادت یا په نقصان سره مثلاً دوی لات د الله له لفظ څخه جوړ کړی دی او عزی یې د العزیز له لفظ څخه مشتق کړی دی او منات یې د منان له لفظ څخه جوړ کړی دی فسموا بها اصنامهم. هذا قول ابن عباس رضی الله عنه ومجاهد رحمه الله. او اهل معاني وایي چې اسماً د خدای ﷻ توقیفي دي، نو نه ده روا تسمیه د خدای ﷻ په داسي نامه چې نه په قرآن کي وي او نه په حدیثو کي. نو د جواد اطلاق پر روا دی او د سخي دا نه دی پر روا که څه هم معنا یې یوه ده، او عالم خدای ﷻ ته ویل کېږي او عاقل نه دی ورته روا او د رحیم وینا وخدای پاک ته روا ده او د رقیق دا نه ده روا.

**یوه سه**: چې په قرآن کریم کي راغلي دي "یخادعون الله وهو خادعهم" او داغه رنګه په قرآن پاک کي راغلي دي "ومکروا ومکرالله" او سره ددې خادع یا مکار وخدای ﷻ ته نه دی روا او "قائما بالقسط" په قرآن کریم کي راغلي دي، او قائم و خدی ﷻ ته نه دی روا او یا "خالق کل شيئ" اطلاق پر خدای ﷻ روا دی او یا خالق القردة والخنازیر نه دی روا که څه هم په کل شيئ کي قردة او خنازیر هم داخل دي، او داغه رنګه یا کبیر من زید اطلاق نه دی روا که څه هم زید اکبر وي تر ملوک د دنیا بل یدعی الله باسمائه التي وردبها التوقیف یعني السماع.

**پوښتنه**: په هغو اسماو سره تسمیه روا ده چې په تورات کي راغلي دي اخذاً من الیهود؟

**ځواب**: لا لعدم الاعتماد علیهم لکن له هغه چا څخه چي مسموع وي چي هغه احبار د یهودو وي او اسلام یې راوړی وي وحسن اسلامه هغه پروا نه لري بېله انکاره د هیڅ چا کعبدالله بن سلام وامثاله رضی الله عنهم.

سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٨٠﴾

ژر دی چي خبر بـه ورکـړل سي و هغـو ملحـدينو تـه د اسـمائو د خـدای ﷻ بما كانوا يعملون په هغه کار چي دوی يې عمل کاوه.

**پوښتنه**: پارسي ژبانان وايي يا خداوند او يا بخشنده وغير ذالک او پښتانه وايي اې خدايه يا اې بخښونکې يا اې څښتنه وغير ذالک، دا روا دی او که څرنګه؟

**ځواب**: دا روا دی ولي چي ترجمـه ده پـه ژبـه د بعض نومانو د خدای ﷻ مثلاً خدای او خداوند ترجمه ده د لفظ الله په پښتو او پـه پارسي سره، او بخشنده او بخښونکی ترجمه د غفور ده په پارسي او پښتو، او د څښتن ترجمـه مالک دی پـه پښتو کي الی غير ذالک فتدبر، قال الحافظ

دهقان سالخورده چه خوش گفت باپسر ...ای نورچشم من بجز کشته نه دروی

**درويش وايي**: چي صاحب د روح المعـاني پـه نهم جزء ص١٢١ ډېر پـه زړه پوري تحقيق په مسئله کي د الحاد في اسماً الله کړی دی ان شئت فارجع اليه.

وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِۦ يَعْدِلُونَ ﴿١٨١﴾

او له هغو انسانانو څخه چي موږ پيدا کړي دي يوه داسي ډله سته چي خلګو ته لار ښيي د حق او په حق سره عدالت او قضاوت کوي په منځ کي د خلګو، بغوي وايي چي عطاً رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کړی دی يريـد امة محمد ﷺ من المهاجرين والانصار والتـابعون لهـم بالاحسـان الی يوم القيـام، قتـاده رحمه الله وايي چي موږ ته دا خبره را رسېدلې ده چي عليه الصلوة والسلام چي بـه دا آيت ووايه، نو به يې داسي وويل هذه لکم وقد اعطی القوم بين يديکم مثلها قال الله تعالی ومن قوم موسی امة يهدون بـالحق وبـه يعـدلون، لـه عبد الله بـن المبارک رحمه الله څخه روايت دی انه کان يتجر ده تجارت کـاوه او دا بـه يې ويـل کـه پينځه کسه نه وای ما بـه تجـارت نـه کـولای يعنـي ددغـو پينځـو کسـاو د صـله رحمـی د پاره يې کوم هغه پينځه کسان ده دغه ياد کړه سفيان ثوري، سفيان بن عيينه، فضيل بن عياض، ابن السماک او ابن عليـة. يعنـي دغـه کسـان مسـکينان علمـا وه، نو عبد الله بن المبـارک رحمه الله بـه دوی تـه خرچـه د عيـال ورکولـه، يـو کـال چي

عبد الله بن المبارک رحمه الله له تجار ته څخه راغلی ابن علیة قاضي سوی ؤ، نو عبدالله بن المبارک ته ملاقات ته ورغلی او نه يې صله ورواستول. نو ابن علیه په خپله ورغلی د ملاقات د پاره، نو عبدالله سر لا نه کړی ورته پور ته او نه يې خوش آمدید ورسره وکړی، وروسته ابن المبارک دا بیتونه ورواستول.

یاجاعل العلم بازیاً.............. یصطاد اموال المساکین

اې هغه سړی چې له علم څخه دې باز جوړ کړی دی، چې په ښکاروې د مسکینانو مالونه.

احتلت الدنیا ولذاتها............. بحیلة تذهب بالدین

تا حیله جوړه کړل و دنیا ته او لذاتو ته د دینا، په خپل لاس سره چې دین پکښې له لاسه وځي.

فصرت مجنوناً بعد ما............. کنت للمجانین دواً

نو ته اوس لېونی سوی يې وروسته تر دې چې ته لېونیانو ته دوا وې.

این روایاتک.............. لترک ابواب السلاطین

څه سول هغه روایتونه چې تا به کول په باره کې د ترک د دروازو د بادشاهانو

ان قلت اکرهت فذا باطل............... زل حمار العلم في الطین

که ته وایې چې زه حکومت مجبور کړم پر قضا نو دا خبره باطله ده. بلکې دا صحیح ده چې خر د علم په ختو کې وښوېدی.

نو ابن علیه ته چې دا بیتونه ورسېدل، هارون رشید ته چې د هغه وخت خلیفه ؤ ورغلی نو خلیفه ته يې ډېرې زارۍ وکړې چې زه قضا نه سم کولای او استعفا يې ورته پېش کړه. هارون يې استعفا ومنله او له قضا څخه يې سبکدوش کړی. ولنعم ماقیل:

بو حنیفه قضا نه کرد وبمرد تو بمیری اگر قضا نه کنی

**درویش وایي**: ومن بلاغات بعض العلماً في غایة الدقة والمنانة، هذا البیت

اعدل تکن من صروف الدهر متلعاً...... فالصرف ممتنع للعدل في عمر

فتأمل في البیت غایة التأمل وتذکر من کتب النحو عدم انصراف عمر.

وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُم مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ
هغه کسان چي تکذيب کوي په آيتو سره زموږ چي مراد ځني کفار مکه دي لانهم اول من كذبوا بايات القرآن، موږ به يې و هلاک ته درجه پر درجه ورنږدې کړو، له داسي ځايه چي دوی به علم نه پر لري، کلبي رحمه الله وايي چي خپل بد عملونه او کفر به دوی کوي تر څو چي هلاکېږي، او له استدراج ځخه د خدای پاک يوه شعبه دا هم ده چي سړی گناه وکړي خدای جل جلاله نعمت ورکړي، قال الضحاک رحمه الله سفيان ثوري رحمه الله وايي چي نعمتونه به ډېر وي شکر به يې هېر وي دا هم نوع د استدارج ده.

وَأُمْلِي لَهُمْ ۚ إِنَّ كَيْدِي مَتِينٌ
زه مهلت ورکوم او عمر يې ور ډېروم او اعمال سيئه په نظر کي ښه ورکوم تاچي ښه په عصيان کي ډوب سي او مستحق د هلاک وگرځي.
**يوه سه**: چي "واملئ لهم" عطف دی پر "سنستدرجهم" باندي، او "کيد" په لغت کي چم ته وايي وهو محال عليه تعالى فالمعنى هـ ان اخذي بالعذاب شديد مكر يه صورة او تشبيهاً وباله، ولي چي ظاهر يې احسان دی او په باطن خذلان دی، بعض راويان وايي چي يوه ډله وه چي په قرآن او اسلام به يې پسخند واهه په خپلو کي د شپې په مجلسو کي، نو خدای پاک تول په يوه شپه هلاک کړل.

أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا ۗ مَا بِصَاحِبِهِم مِّن جِنَّةٍ ۚ إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ مُّبِينٌ
آيا فکر نه ويهي کفار مکه په دې کي، نسته په صاحب کي ددوی (محمد ﷺ) جنون. او ستاسي خاوند خو د عقل سليم کامل خاوند دی چي قبل النبوة تاسي هم په دې قانع واست حتی چي دی مو امين مکه باله، مگر بېرونکی له عذاب ځخه د دنيا او آخيرت که چېري تاسي پر خپل کفر دوام وکړي، کلمه د "من" د پاره د استغراق د نفي ده، ولي مجنون مختل العقل وي.

أَوَلَمْ يَنظُرُوا فِي مَلَكُوتِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا خَلَقَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ
آيا دوی نظر، فکر او استدلال نه کوي په ملک کي، نو ملکوت پر وزن د

فعلوت دی د پاره د مبالغـة فـي الملک په دې معنا چې دغه نظام د اسمانو او مځکو پر وجه بديع هرو مرو يو مبدع غواړي، نو هغه مبدع د عبادت لائق دی لااصنامکم، وروسته خدای پاک تعميم بعد التخصيص وکړی او و يې ويل "وما خلق الله من شيئ" بلکې د هر شي په خلق کې تاسې فکر وکړئ چې بې خالقه هيڅ شی ولو که مېږی وي وعالم وجود ته نه سي راوتلای.

برگ درختان سبز درنظر هوشيار ....... هر ورقی دفتريست معرفت کردگار

وَّاَنْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اقْتَرَبَ اَجَلُهُمْ

او دوی نظر نه کوي په نژدې والي کې د آجالو د موت ددوی حتی چې تلوار وکړي په طلب کې د حق ای الايمان والطاعة.

**پوه سه**: دا جمله عطف ده پر "ملکوت السموات آه" والتقدير او لم ينظروا في ان عسى آه. او همزه د "اولم يتفکروا الخ" او د "اولم ينظروا آه" د پاره د انکار او تعجب ده.

قانون نحوي: هر ځای چې په قرآن مجيد کې تر حرف استفهام وروسته حرف عطف راسي هغه معطوف پر محذوف دی. مناسب د مقام سره، والتقدير هٰ الم يؤمنوا بالقرآن والنبي ﷺ ورموه بالجنون ولم ينظروا آه.

**درويش وايي**: چې دا قانون ما په دې تفسير کې څو ځای نور ذکر کړی فائده د تکرار يې داده چې دا يو غريب قانون دی چې په اذهانو کې د مطالعه کونکو ښه تقرر پيدا کړي.

فَبِاَيِّ حَدِيْثٍ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ

نو په کومه خبره سره وروسته تر قرآن کفار مکه ايمان راوړی يعني قرآن مبارک چې معجز دی يعني چې څوک يې راتنگ په مثل سره نه سي کولای او د اخبار بالغيب او علم او حکمت څخه غالب دی او پر داسي چا نازل دی چې هغه امي دی او متهم پد کذب سره نه دی هيڅ وخت، نو چې پر دې قرآن لا هم دوی ايمان نه راوړي نو پر څه شي به ايمان بلکې داسې معلومېږي چې اجل د عذاب ددوی نژدې دی، يو عزيز وايي:

زان پیش که اجل تر رسد تنگ وایام عنان ستاند از جنگ
بر مرکب فکر خویش نه زین مردانه درآی در ره دین

مَنْ يُضْلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ ۚ وَيَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ

څوک چي خدای پاک ګمراه کړي، نو هغه لره هدایت کونکی نسته.

**پوه سه:** چي دا آیت علت دی د اعراض د کفارو له دین څخه د اسلام، ددې آیت معنا داده چي څوک چي په علم ازلي کي د خدای ﷻ معلوم وي چي دا سړی وروسته تر اخراج له کتم څخه د عدم به په خپل اختیار کافر کېږي او پر کفر به اصرار کوي تر مرګه پوري، نو هغه لره هدایت کونکی یعني په دین مشرف کونکی نسته لانه یلزم خلاف علمه تعالی وهو محال. نو دا سوال نه وارد ېږي چي کافر والی د کافر او اصرار پر کفر چي له جانبه د خدای ﷻ دی، نو کافر ته پر څه عذاب ورکول کېږي وقس علیه هدایت الاسلام. فلا یرد ان هدایت المؤمن ودوامه علی الهدایت چي له جانبه د خدای ﷻ دی نو دی ولي مستحق د جنت دی. او دا معنا د هغه قول د اهل عقائدو چي بنده کاسب دی او خالق خدای ﷻ دی فتامل فیه جداً. او خدای ﷻ دوی یعني کافران پرېږدي په خپله سرکښي او کفر کي یترددون متحیرین.

**پوه سه:** چي ابن جریر رحمه الله له قتاده رحمه الله څخه روایت کړی دی چي قریشو ر علیه الصلوٰة والسلام ته وویل چي زموږ او ستا تر منځ قرابت دی ته موږ ته ووایه چي قیامت کله دی فانزل الله تعالی هذه الآیة.

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰهَا ۭ

قوم او قریش له تا څخه پوښتنه کوي د ساعت په باره کي چي څه وخت دی اثبات او وجود د قیامت.

**پوه سه:** چي ساعت په اصطلاح د قرآن او شریعت له اسماً غالبه وو څخه دی د قیامت کالنجم للثریا في قوله تعالی "والنجم اذا هوی" سورة النجم. چي مراد له نجم څخه علی الاصح في تفسیره کما سیأتي بیانه في تفسیر سورة النجم ان شاء الله تعالی ثریا یعني پېروني.

وجه تسمية القيامة بالساعة اما وقوعها بغتة او سرعة حسابها، او يا نظر وعلم ته د خدای ﷻ د قیامت سره د ډېر اوږد والي لکه یو ساعت دی.

**فائده:** مرسی "مصدر میمي دی په معنی د ارساً چې معنی یې ثابت او استقرار ده. او ابن عباس ﷺ یې په منتهی سره تفسیر کړی دی. او قتاده ﷺ یې په قیام سره والکل صحیح.

قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّيْ

ته ورته ووایه چې د قیامت د قیام علم فقط د خدای ﷻ سره دی چې نه خدای ملکه مقربه په خبره کړې ده او نه یې نبي مرسل په خبر کړی دی. البته علامات د قرب یې و علیه الصلوة والسلام ته خدای ﷻ ښوولي دي چې په احادیث مبارکه وو کې راغلي دي.

لَا يُجَلِّيْهَا لِوَقْتِهَآ اِلَّا هُوَ ثَقُلَتْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

چې نه ښکاره کوي قیامت په خپل وخت مگر خدای ﷻ فاللام بمعنی في.
په روح المعاني کې وایي کبرت وعظمت علی اهلها حیث لم یعلموا وقوعها یعني درنه ده پر اهل سموات والارض دا چې دوی یې په وقوع د قیامت نه دي خبر، ویؤید ما روی عن السدي ﷺ چې پر یوچا د یو شي علم پوشیده وي پر هغه ډېر درونډ وي دا جهل. او قتاده ﷺ ددې آیت په تفسیر کې وایي چې د قیامت ورځ پر اهل سمٰوات والارض درنه ده په دې معنا چې دوی د دغې ورځې له سختیو څخه بېرېږي.

**درویش وایي:** چې د روح المعاني و تفسیر ته ورته تفسیر په روح البیان او تفسیر مظهري کې هم راغلي دي.

لَا تَاْتِيْكُمْ اِلَّا بَغْتَةً

نه راځي وتاسي ته ورځ د قیامت مگر نه نابیره، په مختلفو روایاتو کې د احادیث صحیحه وو ددې نابیره راتلو په بیان کې داسې راغلي دي، بخاري او مسلم له ابو هریره ﷺ څخه داسې روایت کړی دی چې رسول الله ﷺ وویل "لتقو من الساعة. ولقد نشر الرجلان الثوب بینهما ولتقو من الساعة وهو ینیط

حوضه فلا یسقی فیه، ولتقو من الساعة وقد انصرف رجل بلبن لقحته فلا یطعمها، ولتقو من الساعة.

**ژباړه**: قیامت به قائم سي یعني په نفخ د اسرافیل په اوله نفخه. نو یوه جامه یا کمبله به په منځ کي دوو کسانو سره نیولې وي یعني د خرڅلاو یا رانیولو د پاره نو به دوی نه خرڅلاو سره وکړي او نه به یې سره تړوله کړي یعني نفخ الصور به پر وکړل سي، او قیامت به قائم سي په داسي وخت کي چي یو سړی خپل حوض گلماله کوي، نو په هغه حوض کي به دی اوبه ونه څښېښي، یعني نفخ الصور به پر وکړل سي، او قیام به قائم سي په داسي حال کي چي یو سړي به د غوا یا اوښې شیدې راحستي وي څکه به په ونه کړي، او قیامت به قائم سي په داسي حال کي چي یو سړي به د ډوډۍ یا د ښوروا گوله د خولې وخواته پورته کړې وي او ده به یې نه خوري، او له ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دی "لینفخن في الصور والناس في طرقهم واسواقهم ومجالسهم حتی لیکون بین الرجلین یعني ثوباً فیسا ومان فما یرسله احدهما من یده حتی ینفخ في الصور فیصعق به وهي التي قال الله تعالی "ماینظرون الا صیحة واحدة.

**درویش وایي**: چي نور ډېر ورته احادیث صحیحه سته وفي ذکرناه کفایة لمن له عقل سلیم.

يَسْـَٔلُونَكَ كَأَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ اللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٨٧﴾

دوی ستا څخه سوال د قیامت کوي لکه تاچي ډېر سوال کړی دی او مبالغه دي په سوال کي د ورځي د قیامت کړې ده او ځان دي په خبر کړی دی، ته ورته ووایه یعني سائلانو ته د ورځي د قیامت چي علم د ورځي د قیامت په نېز د خدای جل جلاله دی، لکن ډېر کسان نه پوهېږي چي علم د قیامت خدای جل جلاله د ځان سره ساتلی دی نه یې ملکي مقربي ته ښوولی دی او نه یې نبي مرسل ته.

قُل لَّا أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلَا ضَرًّا إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ

ته ورته ووایه اي محمد ﷺ چي زما په ملک او طاقت کي نسته د ځان د پاره

جلب د نفع او نه دفع د ضرر له ځان څخه مګر هغه چي د خدای ﷻ مشیت او اراده وي من جلب النفع ودفع الضرر چي یا نفعه ماته ورسوي او یا دفع له ضرر څخه وکړي یو شاعر وایي

تو له انداز ه د خیر او شر بو له له خدایه څخه
کله پېښېږي نېک وبد له خپلي رایي څخه

وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوءُ

که چېري زه وایي په غیب سره خبر ما به ډېره منافع ځان ته راجلب کړي وای او دفع د ضرر به مي له ځان څخه کړې وای حتی یو وخت به هم ماته سوء نه وای رسېدلی. او نه به زه مغلوب وای په بعض جنګو کي لکه احد او غالب په بعض مغازیو کي لکه بدر. او بعض مفسرین رحمهم الله د توجهیه له لاري داسي ترجمه کوي که زه په غیب خبر وای چي زه به کله مرمه مابه ډېر والی کړی وای په عمل صالح کي او ماته به نه وای رسېدلی سوء یعني اجتنب من الشر والفتنة. او بعض له رایي څخه دا ترجمه کوي که زه خبر وای په غیب سره یعني چي ورځ د قیامت کله ده مابه تاسي ته خبر درکړی وای، نو تاسي به ایمان راوړی وای او زه به نه وای مسه کړی سوء د تکذیب ستاسي.

**درویش وایي:** چي پر ته له اولي ترجمې څخه نوري ټولي ترجمې خود رایي دي اعتماد نسته وربانديي والله اعلم بما في کتابه من الصواب.

إِنْ أَنَا إِلَّا نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ۝

نه یم زه مګر بېرونکی له عذاب څخه د خدای ﷻ کافرانو لره، او زېری کونکی یعني په جنت سره و هغه قوم ته چي ایمان یې راوړی وي یعني زما پر رسالت او د قرآن پر حقیقت او پر ورځ د قیامت.

هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ وَجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ إِلَيْهَا

او خدای ﷻ هغه ذات قادر دی چي تاسي یې پیدا کړي یاست له یوه نفس څخه چي آدم علیه السلام دی، او پیدا کړی یې دی له هغه نفس څخه یعني جسده څخه

"ماچي ترجمه په نفس سره وکړه د پاره د مراعات د ضمير مؤنث او بيا چي ترجمه په جسد سره وکړه ددې د پاره چي زوج د آدم عليه السلام چي حوا عليها السلام ده خداى پاک د آدم عليه السلام د جسد يعني يوې پوښتۍ څخه پيدا کړه داسي چي پرده يې داسي خوب مسلط کړى لکه په ننني زمانه کي چي ډاکټر د يو چا اپريشن کوي يعني د نشې ستن ورولګوي. وروسته يې د آدم عليه السلام چپه پوښتۍ څندي اپرېشن کړه او د حوا عليها السلام ماده يې وګرځول بقدرته تعالى او د زوجې د پيدا کېدلو يو سبب دا ؤ چي دى الفت ورسره وکړي او له يوازي والي د دېغت له دريابه ووځي. لکه په اوسني زمانه کي چي يو سړى مانينه نه لري نا آرامه او دېغ وي قرار نه لري او چي مانينه پيدا کړي آرام سي او له دربدرۍ څخه خلاص سي.

## فَلَمَّا تَغَشّٰىهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيْفًا

چي دا يې پټه کړه، دا لفظ کنايه ده له جماع څخه، حوا عليها السلام حمل واخستى يعني اميدواره سوه په سپک حمل سره يعني دومره تکليف نه ؤ ورباندي لکه پر نورو حوامل ښځو چي تېرېږي غالباً په وخت کي د حمل.

## فَمَرَّتْ بِهٖ

نو دې هميشه توب وکړى پر حمل يعني ضائع او نقصان نه سو، او يا معنى داده چي حمل چي نطفه يا علقه او يا مضغه وي سپک وي پر تولو ښځو. او ولاړ او ناسته کولاى سي، دا تر هغه وخت پوري چي عيال يې په نس کي نه و لوى سوى کما يدل عليه قوله تعالى.

## فَلَمَّآ اَثْقَلَتْ

هغه وخت چي دا درنه سوه په حمل سره يعني ولد يې په بطن کي غټ سو چي ولاړه او ناسته پر تکليف وه کما في اکثر النساً وقت کبر الولد في رحمها.

## دَّعَوَا اللّٰهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ اٰتَيْتَنَا صَالِحًا لَّنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ

نو آدم او حوا خداى جل جلاله ته چي رب د دواړو ؤ دعا وکړه که چېري تا موږ ته راکړى له دې حمل څخه صالح اولاد يعني په بدن سره برابر لکه موږ غوندي هر

ائينه به موږ ستا شکر وايو ، دا سوال له دې سببه دوی کاوه چې چونکه د حوا ﷺ
دا اول حمل ؤ، نو آدم او حوا په دې نه پوهېدل چې څه شی به په نس کي وي د نوع
د انسان او که بل شی به وي. لکن وروسته چې آدم او حوا له حمل سره آموخته
سوه اضطراب يې دفع سو نو په هر حمل کي به يې دعا نه کول. په بعض رواياتو
کي راغلي دي چې حوا ﷺ غبرګه لنګېدله يو نر او يوه ښځه به يې راوړل، او
حوا پينځه سوه بطنه له آدم ﷺ څخه لنګه سوه چې زر عياله يې پورهٔ کړه.

**يوه سه:** چې بغوي رحمه الله وايي چې مفسرين يعني بعضهم وايي چې حوا چې
اميدواره سوه. نو ابليس په صورت د يو سړي ورته راغلی او دې ته يې وويل
چې ته خبره يې چې ستا په نس کي څه شی دی؟ حوا ﷺ ورته وويل يا نه يم خبره
ابليس ورته وويل چې زه بېرېږم چې ستا په نس کي دې يو چارپای وي يا دي
سپی وي يا دي سرکوزی وي. او ته په دې پوهېږې چې دا شی به تر کومه څوا
راوځي. که تر دبره راوځي خو تا وژني، او يا به دې تر خوله راوځي او يا به دې
نس څيري، نو حوا وبېرېدله او دا خبره يې آدم ﷺ ته وکړه، نو دوی دواړه په
غم کي وه چې دا قصه به څرنګه سي، يو څو ورځي وروسته بيا شيطان ورته
راغلی او ورته وه يې ويل چې د خدای ﷻ د قرب يو منزلت لرم فان دعوت ان
يجعله خلقاً سويا مثلک چې دا ستا مافي البطن ستا غوندي انسان وي او له تا
څخه يې وتل هم اسانه سي، آيا ته عبد الحارث نوم پر ايږدې او د ابليس يو نوم
قبل اللعنة حارث ؤ، نو دې آدم ﷺ ته دا خبره وکړه، نو آدم ﷺ ورته وويل
چې شايد دا سړی به هغه څوک وي چې زه او ته يې له جنت څخه را ايستلي يو
يعني ابليس، څو ورځي وروسته بيا ابليس ورته راغلی بيا يې هغه دمخه خبره
ورته تکرار کړه، نو همېشه ابليس تلی او راتلی څو چې دوی يې خطايستل چې
هلک پيدا سو نوم يې عبد الحارث پر کښېښو.

**يوه سه:** چې احمد او ترمذي يو حديث راوړی دی چې حسن يې بللی دی او
حاکم هم په مستدرک کي راوړی دی او هغه صحيح بللی دی چې په رتبه کي د
تر حسن بالا دی کما تقرر في علم اصول الحديث عن همزة بن جندب رضي الله عنه قال



Scanned by CamScanner

قال رسول الله ﷺ لما ولدت حواً طاف بها ابليس يعني في سورة الرجل وكان لايعيش لها ولد" يعني ددې عيال نه پائيدی، نو ابلس ورته وويل د عبد الحارث نوم پر كښېږده. نو دې چې دا نوم پر كښېښود نو هغه خدای ﷻ وپائيوی فكان ذالك من وحي الشيطان. بغوي رحمه الله چې ابليس آدم او حواً دواړه خطا يستلي دي يو وار په جنت كې چې غنم يې په وخوړل چې خدای ﷻ ځني منع كړي وه. نو له جنت ځخه يې راوه ايستل والقصة مشهورة وفي هذا التفسير مذكورة. او يو وار يې په ځكه كې خطايستل چې پر زوی يې د عبد الحارث نوم كښېښو.

فَلَمَّآ ءَاتَىٰهُمَا صَٰلِحًا جَعَلَا لَهُۥ شُرَكَآءَ فِيمَآ ءَاتَىٰهُمَا

چې خدای ﷻ ورکړی ودوی ته "صالحاً" زوی يعني "بشراً سوياً" دوی دوو گرځول خدای ﷻ لره شريكان په وركړه كې د زوی.

**پوه سه:** چې صاحب د روح المعاني وايي چې دا آيت د آيتو مشكل ترين دی په قرآن مجيد كې. مظهري رحمه الله وايي چې ابوبكر رحمه الله دا لفظ د قرآن مبارک چې "شركاً" دی مصدر بولي چې معنی يې شرک دی، او نور قاريان يې په صيغه د جمع وايي كما هو المشهور في المصاحف المطبوعة كلها. بغوي رحمه الله وايي چې عبد الواحد وايي چې د "شركاً" په لفظ د جمع هم معنا شرک دی يعني جمع يې په معنا د مفرد ده، نو مظهري رحمه الله وايي چې د عبد الحارث تسميه اشراک په عبادت كې نه دی او نه ددوی يعني آدم او حواً عليهما السلام دا عقيده وه چې حارث رب ددوی دی فان آدم عليه السلام كان نبياً معصوماً عن الشرک.

**درويش وايي:** چې آدم عليه السلام له ټولو معاصيو ځخه لكه نور ټول انبياً كرام معصوم دی كما اثبته في رسالتي كشف الغطاً عن عصمة الانبياً. بلكې ددوی قصد دا ؤ چې د عبد الحارث په نوم ايښولو سره به سبب د نجات د ولد وگرځي او د سلامتيا د مور يې يعني حواً. مظهري رحمه الله زياته كړې ده چې له عبد ځخه مربې نه دی مراد لكه رب چې اطلاق يې روا دی پر هغه چا چې د قائل معبود نه وي ځندي مراد لكه يو سړي ته چې مېلمه راسي دی ورته ووايي تواضعاً انا عبد الضيف. وليس مراده ان الضيف ربه. وقال يوسف عليه السلام لامرئة العزيز حين

طلبت منه الزنا "معاذ الله انه ربي احسن مثوای" ولم يرد يوسف انه ای عزيز معبود دده دی کما لا يخفی.

**درویش وایي:** چي تسميه په عبد الحارث سره یې ولي شرک وبلل تعظيماً بان الاولى لآدم و حوا عليهما السلام الاجتناب عن ذالک الاسم ای عبد الحارث.

**فائده:** حسن بصري او عکرمه رحمهما الله تعالى په نقل د مظهري رحمه الله وايي چي معنا د "جعلا له شركا" ان اولادهما ولو بالوسائط الكثيرة يعني كفار مكه وغيرهم له تعالى شركا فيما آتى اولادهما على حذف المضاف في الموضعين واقامة المضاف اليه مقامه. والمراد "فلما آتاهما" ای اولادهما "جعلا" ای اولادهما، نو پر دې تقدير لفظ د شركا پر خپل جمعيت صحيح دی لان الاولاد لکه کفار د مکې ډېر شريکان خدای ﷻ ته ويل لکه عزی، لات، منات وغير ذالک وسموا اولادهم عبد العزى عبد المناف وغير ذالک. نو ددې مثال يعني حذف د مضاف او اقامت په ځای کې د هغه دا قول د خدای ﷻ دی "واذ قتلتم نفسا" يا "ثم اتخذتم العجل" ولي مخاطب په دې دوو آيتو کې خو يهودان د عصر نبوي دي، او سره ددې د عليه الصلوة والسلام د زماني يهودانو نه قتل د نفس کړی ؤ او نه یې اتخاذ العجل کړی ؤ. فالتقدير بحذف المضاف ای قتل آبائکم نفسا او اتخذ آبائکم العجل الهاً.

**درويش وايي:** چي صاحب د روح البيان هم دغه ترجمه مختاره کړې ده او صاحب د روح المعاني په ډېر طويل بحث سره دغه لار خپله کړې ده، او صاحب د روح المعاني په خپله توجيه يعني حذف المضافين ډېر په زړه پوري سوالونه راوړي دي او بيا یې جوابونه ورکړي دي او په اخير کې یې داسي عبارت راوړی دی والانصاف ان الاسئلة قوية والآية على هذا الوجه من قبيل اللفظ انتهى.

**درويش وايي:** چي حذف د مضاف په دوه ځايه کې او د سياق د کلام وتل ولي سوق د کلام خو د آدم او حوا عليهما السلام سره ؤ او کسب د فعل د اولاد ودوی ته که څه هم ظاهر آوي کوم معمولي خبره نه ده، نو د درويش په ناقص عقل سره د مظهري رحمه الله اول قول به ډېر زيبا وي که لفظ د شركا په صيغه د جمع نه

وای او یا په معنا د مفرد وای هذا بیان الآیة المذکورة علی وجه الاختصار والله اعلم بالصواب في كل باب.

**درویش وایي:** چي هغه قرائت چي په هغه کي "شركا" په لفظ د مفرد راغلی دی زما حیرت نه ؤ مگر په لفظ کي د "شركا" په صیغه د جمع راغلی زه متفکر وم. او واحدي رحمه الله چي د "شركا" ترجمه کړي وه هم زه حیران وم. ولي د ترجمي په مفرد سره په قرار د ما تقرر في المعاني هلته صحیح ده چي جمع معرف باللام وي او لام یي د پاره د جنس وي. نو جمعیت یي لغوه کېږي او په معنا د مفرد گرځي دلته لفظ د شركا معرف باللام نه دی حتی چي تلاش ته یي ادامه ورکړه او په بعض تفاسیرو کي مي ولیدل چي په لفظ کي د جمع تنبیه پر دوی ده چي په شرک کي د یوه او جمع فرق نسته. یعني که څوک خدای پاک ته یو شریک وایي لکه ثنویه او که ډېر شریکان ورته وایي لکه وثنیه یعني مثل کفار مکة بلا فرقه. که دی في احکام الدنیا من الجهاد معهم و وجوب قتلهم او په احکامو کي د اخیرت من وجوب الخلود في النار فاطمئن قلبي وحمدت الله في دفع اضطراب قلبي في جمعیة الشركا مع ان الصادر من آدم وحوا علیهما السلام لفظ واحد وهو تسمیة ولدهما بعبد الحارث.

فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿١٩٠﴾

نو ډېر لوړ دی خدای جل جلاله له هغه مرتبې څخه چي دوی شرک کوي. یعني الاصنام وکذا مابعدها من الآیات. بغوي رحمه الله وایي قیل هو ابتدا کلام یعني د آدم او حوا د قصې سره تعلق نه لري بل اراد به اشراک اهل مکة. او که چېري تعلق د ماقبل قصې سره ولري. نو هم صحیح کېږي من ان الاولی بحال آدم وحوا علیهما السلام ان لا یفعلا ما فعلا من الاشتراک في التسمیة لابنهما بعبد الحارث که څه هم ددوی حقیقت اشراک نه ؤ مراد. یعني چي حارث معبود دی بلکي غرض ددوی حفاظت د ولد بهذا الاسم کمامر.

**پوښتنه:** ضمیر د تثنیې یې ولي نه راوړی؟

**ځواب:** اجلالاً لآدم و حوا علیهما السلام لعدم اراتها الشرک حقیقة. جلال الدین

السیوطي رحمه الله وايي چي دا جمله معطوفه ده پر خلقکم وما بینهما جملې معترضه دي. فالتقدير هو الذي خلقكم فتعالى عما يشركون.

**درویش وايي:** چي پر دې تقدير هغه سوال او ځواب چي آنفاً تير سو ضرورت نسته فافهم. ابن کیسان رحمه الله وايي چي مراد په دې آیت کي مشرکان دي چي پر خپلو اولادو به يې د عبدالعزیٰ، عبداللات، عبدالمناف، عبدالشمس نومان ايښوول انتهی.

**درویش وايي:** چي د ابن کیسان په نېز هم دا آیت ابتدا کلام ده. نو د جمع د ضمير توجيه ته ضرورت نسته وكون هذه الآية ابتدا كلام هو الاحوط عند الفقير وان هذا يستغنى المتعلم عن المتكلفات.

أَيُشْرِكُونَ مَا لَا يَخْلُقُ شَيْئًا وَهُمْ يُخْلَقُونَ ﴿١٩١﴾

استفهام انکاري دی ای لا ینبغي لهم ذالک. آیا دوی ای کفار مکه وغيرهم من المشرکین د خدای جل جلاله سره شریکان بولي هغه شیان چي بتان دي او یا ملکي دي او یا لمر دی. هغه کسان چي د بتانو، د ملکو یا د لمر عبادت کوي چي هغو شریکان نه دي پیدا کړي هیڅ شی او دغه ددوی معبودان په خپله مخلوق دي او لائق د عبادت نه دي، مګر هغه څوک چي خالق وي، دا کلام مبتدا دی بالاتفاق.

وَلَا يَسْتَطِيعُونَ لَهُمْ نَصْرًا وَلَا أَنفُسَهُمْ يَنصُرُونَ ﴿١٩٢﴾

او قدرت نه لري دغه اصنام ودوی ته یعني عابدینو ته د کومک په یو مهم کي. او نه د خپلو ځانو مرسته کولای سي، یعني که څوک دغه بتان ماتوي دوی خپل ځانونه نه سي خلاصولای.

وَإِن تَدْعُوهُمْ إِلَى الْهُدَىٰ لَا يَتَّبِعُوكُمْ ۚ

او ته رابولې دغه شریکان و هدایت ته چي توحید او دین د اسلا دی. دوی ستا متابعت نه کوي یعني تقلید آللآبا الضالون.

سَوَاءٌ عَلَيْكُمْ أَدَعَوْتُمُوهُمْ أَمْ أَنتُمْ صَامِتُونَ ﴿١٩٣﴾

برابره ده وتاسي ته که تاسي دعوت ودوی ته ورکړی او که ساکت او په خوله ناست یاست چي تبليغ او موعظت نه ورته کوئ.

**پوه سه:** چي مراد له تسويه څخه پر مسلمانانو دعوت او صمت په دې معنى دى چي ستاسي مقصود چي د دوى هدايت دى نه حاصلېږي، كه څه هم په تبليغ سره خداى ﷻ ومسلمانانو ته ثواب وركوي. ولهذا جاء في سورة البقرة "إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٦﴾"

إِنَّ ٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ عِبَادٌ أَمْثَالُكُمْ ۖ فَٱدْعُوهُمْ فَلْيَسْتَجِيبُوا۟ لَكُمْ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿١٩٤﴾

په تحقيق هغه شيان چي تاسي يې عبادت كوئ اې مشركانو پرته له خدايه، او تاسي عبادت كوئ او آلهه يې بولئ هغه شيان بندگان او مخلوق د خداى ﷻ لكه تاسي او د خداى ﷻ تر حكم لاندي دي يعني اصنام. نو تاسي دوى ته خواست وكړئ يعني يو شى غوښتل وغواړئ دوى دي ستاسي قبلونه وكړي هغه مطلب چي تاسي غوښتل غواړئ هغه دي تاسي ته دركړي كه تاسي چېري رښتيا واياست چي دوى آلهه دي. ولي چي آلهه او معبود بايد خپل د عابد مقصود ور تر سره كړي مع انهم لا يستطيعون ذالك فكيف يكونون آلهة.

**پوښتنه:** الذين آه" خو د ذوى العقول د پاره مستعملېږي ددوى آلهه خو جمادات وه؟

**ځواب:** دا لفظ ددوى پر زعم يا گمان مستعمل سو.

**سوال:** عباد خو انسانانو ته وايي. نو بتانو ته څرنگه استعمال سو؟

**ځواب:** دوى دغه بتان پر صورت د انسانانو جوړ كړي وه.

أَلَهُمْ أَرْجُلٌ يَمْشُونَ بِهَآ ۖ أَمْ لَهُمْ أَيْدٍ يَبْطِشُونَ بِهَآ ۖ أَمْ لَهُمْ أَعْيُنٌ يُبْصِرُونَ بِهَآ ۖ أَمْ لَهُمْ ءَاذَانٌ يَسْمَعُونَ بِهَا ۗ

**پوه سه:** چي استفهام د پاره د انكار دى. او كلمه د "ام" د پاره د انتقال ده د يوه مطلب و بل ته. او په معنا د بل دى. همزه استفهامي يې د پاره د انكار دى ايضاً آيا دوى ستاسي خدايانو لره پښې سته چي تگ پر كولاى سي، آيا دوى لره غوږونه سته چي شى په هغو اوري. يعني تاسي عابدين دغه مذكوره تولـه

اعضا لري او له هغو اعضاو ځخه فوائد مذکوره اخلي او ستاسي خدایان یې نه لري، نو تاسي خو اعلی حالاً یاست تر دوی نو تاسي څرنګه دوی خدایان او معبودان ګرځوئ. او څرنګه معبود اسو حالاً وي تر عابد.

**پوه سه:** چې ددې آیت دا معنا نه ده چې په معبود کي دا اعضا او قوی ضروري دی حتی چې پوښتنه وکړي چې خدای پاک خو هم جسم نه لري، او نه هم دا اعضا لرئ بلکې مقصود دادی چې معبود باید اعلی رتبةً وکمالاً وي تر عابدانو دده او خدای پاک خو خالق السموٰات والارض دی او علم تام لري حتی پر زراتو د عالم الی غیر ذالک من الصفات الجمالیة والجلالیة، چې نسبت د عابدانو وده ته کالعدم دی فافهم.

قُلِ ادْعُوا شُرَكَاءَكُمْ ثُمَّ كِيدُونِ فَلَا تُنظِرُونِ ﴿١٩٥﴾

ووایه ته یا محمد ﷺ وکفارو ته د مکې چې راوبولئ هغه ستاسي شریکان چې تاسي یې د خدایه سره شریکان بولي په عبادت کي، بیا تاسي او ستاسي خدایان په اصابة المکروه کي ډېره مبالغه وکړي زما په مرګ کي یا په اصابة المکروه کي وماته، چې تاسي او ستاسي خدایان به پر دې قدرت ولري؟ نو ماته مهلت مه راکوئ یعني زما باک نه کېږي، ولي چې زما اعتماد او ایمان دی چې خدای ﷻ ما ساتي.

إِنَّ وَلِيِّيَ اللَّهُ الَّذِي نَزَّلَ الْكِتَابَ ۖ وَهُوَ يَتَوَلَّى الصَّالِحِينَ ﴿١٩٦﴾

په تحقیق ساتونکي زما الله ﷻ دی، هغه الله ﷻ چې کتاب یعني القرآن یې نازل کړی دی او هغه خدای ﷻ تولی او حفاظت کوي د نفس د صالحینو بندګانو فضلاً عن الانبیا علیهم السلام ولا یضرهم عداوة والاعدا.

وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَكُمْ وَلَا أَنفُسَهُمْ يَنصُرُونَ ﴿١٩٧﴾

او هغه بتان چې تاسي یې عبادت کوئ بېله خدایه هغه طاقت نه لري ستاسي د کومک او نه د خپل ځان کومک کولای سي، یعني که یې څوک په ډېره وولي او یا یې ماتوي دوی ځانونه نه سي ځندي خلاصولای لکونها جمادات لا یشعرون بشیئ ولا یقدرون علی شیئ.

وَإِن تَدْعُوهُمْ إِلَى الْهُدَىٰ لَا يَسْمَعُوا

او تاسي يا كفار مكه دا خدايان ستاسي چي بتان دي ولار ښوونې ته، يعني ورته ووايا ست چي موږ ته د نجات لار راوښاياست. له دنيوي عذاب څخه دا خواست ستاسي دوی يعني بتان يې نه اوري لكونها جمادات لاسمع لهم.

وَتَرَاهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ وَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ

او ته وينې اې مخاطبه غير معينه دا بتان چي دوی گوري وتاته لكن حال دادی چي په سترگو هيڅ شي نه ويني.

**يوه سه**: چي كفارو د مكې خپل بتان د انسانانو پر شكل جوړ كړي وه او سترگي يې وركړي وې، د چا به دا خيال سو چي دا بت ماته گوري.

**درويش وايي**: چي ددې آيت په تائيد كي يوه تاريخي واقعه واورئ. راوي وايي چي سلطان محمود الغازي الغزنوي رحمه الله يوه ورځ شيخ رباني ابو الحسن الخرقاني قدس سره د ملاقات او زيارت د پاره ورغلی. وروسته تر يو څه گفت وشنيد محمود رحمه الله ورته وويل چي ستا څه عقيده ده په باره كي د ابي يزيد بسطامي رحمه الله، نو ابو الحسن رحمه الله ورته وويل چي ابو يزيد رحمه الله داسي شخصيت و چي چا ليدلی وای خدای جل جلاله هدايت كاوه وه هغه سړي ته. محمود رحمه الله ورته وويل وكيف ذالک او سره ددې چي ابو جهل خو رسول الله صلی الله علیه وسلم ليدلی و او هدايت او سعادت يې نه سو په برخه. او له ځاه څخه د شقاوت او شرک نه ووتی. ابو الحسن رحمه الله وويل چي ابو جهل رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دی ليدلی بلكې محمد بن عبدالله يتيم د ابو طالب يې ليدلی دی. ولو رئی رسول الله صلی الله علیه وسلم يعني په عنوان د رسالت خرج من الشقاوة ودخل في السعادة. يعني د سترگو ليدل په كار نه دی بلكې د زړه ليدل په كار دی. ثم قال الشيخ ومصداق ذالک قوله تعالى "وتراهم ينظرون اليک وهم لا يبصرون.

**يوه سه**: چي د زړه د ليدلو په باره كي يو شاعر ډېر په زړه پوري بيت ويلی دی

برای دیدن روی تو چشم دیگرم باشد
که این چشم که من دارم جمالت رانمی شاید

## خُذِ الْعَفْوَ

ته واخله یا محمد ﷺ یعني خپل عادت وګرځوه عفو یعني درګذشت له اخلاق او له اعمالو څخه د خلګو او هغه عمل چي ودوی ته اساني پکښې وي، مثلاً که عذر درته وکړي عذر یې قبلوه او عفوه ورته کوه او تساهله او اساني ورسره کوه او ظاهر ته ګوره باطن یې پر خدای ﷻ سپاره او تجسس د احوالو د خلګو مه کوه او له خلګو څخه طلب د هغه شي مه کوه چي پر دوی سخت تماميږي كذا قال عبدالله بن الزبير ﷺ ومجاهد رحمه الله. بخاري له ابن عباس ﷺ څخه روایت کړی دی چي عيينة بن الحصن الفزاري رحمه الله مديني منورې ته راغلی او دده د وروروزوی الحر بن قیس پر کور یې واړول یعني مېلمه سو، او الحر بن قيس له هغو نفرو څخه ؤ چي امير المؤمنين عمر فاروق ﷺ په خپل مجلس کي د ځان سره کښېناوه، او د عمر ﷺ دا عادت وُ چي دده د مجلس خلګ به قاریان وه که به ځوانان وه او که به ګړ ویښتي او ددوی سره به یې په هر کار کي مشوره کوله. نو عيينه مذکوره و خپل وراره ته وویل چي ته دومره اعتبار لرې پر عمر ﷺ باندي چي ما ته اجازه راواخلې چي زه دده مجلس ته ورسم، وراره یې ورته وویل چي زه به اجازه ستا د ورتګ ځندي واخلم فاستاذن الحر لعيينة المذكور، نو عمر ﷺ هم اجازه ورکړه، نو عيينه چي د عمر ﷺ دربار ته ورغلی داسي یې ورته وویل یا ابن الخطاب والله لا تعطينا الجزل" موږ ته له بيت المال څخه ډېري روپۍ نه راکوې ولا تحکم بيننا بالعدل، فغضب عمر ﷺ . نو ده ته درد ورغلی حتی چي قصد یې وکړی ان يوقع به یعني چي يو عذاب ور کړي. فقال الحر يا امير المؤمنين ان الله ﷻ قال لنبيه ﷺ خذ العفو وامر بالعرف واعرض عن الجاهلين وان هذا یعني عيينه من الجاهلين چي داسي سختي بېځایه خبري تا ته وکړي، راوي وايي "والله ماجاوزها عمر حين تلاها" قسم په خدای ﷻ دی چي عمر ﷺ تر دغو آیاتو چي حر یه یې تلاوت وکړی نه سو تېر، یعني عيينه ته یې هیڅ نه وویل او يو تر خه خبره یا ضرب وغیره یې ورنه کړه، او د عمر ﷺ دا عادت وُ چي ده به و کتاب الله ته غاړه اېښوول یعني تجاوز تر کتاب الله یې نه کاوه، او له انس بن مالک ﷺ څخه روایت دی چي د

قيامت په ورځ چي عباد د حساب د پاره حاضر کړل سي، نو حديث بطوله ذکر کړي او په هغه حديث کي يې دا خبره هم ذکر کړه "ثم نادى مناد ليقم من کان اجره على الله فليدخل الجنة" يو ناره کونکي به ناره وکړي چي ولاړ د سي هغه کسان چي اجر يې پر خداى پاک سته او جنت ته دي داخل سي، چا وويل "ومن ذا الذي اجره على الله قال يعني المنادى العافون عن الناس" يعني په دنيا کي به يې و خلگو ته ددوى د بدچلن عفوه کول راوي وايي چي په زرو مسلمانان به ولاړ سي او جنت ته به بي حساب ولاړ سي رواه الطبراني.

روح البيان يو صحيح حديث راوړى دى له جابر ﷺ څخه چي عليه الصلوة والسلام له جبرائيل ﷺ څخه پوښتنه وکړه "ما الاخذ بالعفو" له اخذ بالعفو څخه څه مراد دى؟ جبرائيل ﷺ ورته وويل "لاادري" زه به له خدايه پوښتنه در وکړم، جبرائيل ولاړى او بيرته راغلى "وقال ان ربک يأمرک ان تعطي من حرمک" چي ته هغه چاته شى ورکوه چي ته يې محروم کړې له ورکړې څخه د شي "وتصل من قطعک" او ته صله رحمي کوه د هغه چا سره چي ستا سره يې قطع د صلې کړې وي "وان تحسن الى من اساْ اليک" او ته احسان کوه د هغه چا سره چي ستا سره بد وکړي.

**درويش وايي:** چي دا خصلتونه په انبياْ عليهم السلام کي او په صحابه کرامو ﷺ کي کمامر من قصة عمر ﷺ مع ابن عيينة او په نورو کامل اولياؤ کي پيدا وه او په اوسني زمانه کي ددې خويو لکه د عنقا نوم سته مسمى يې نسته، ددې خويو کونکي نسته الا من شذ وندر.

## وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ

او امر کوه خلگ په معروف سره يعني په ښو افعالو سره شرعاً وعقلاً، له ابي سعيد خدري ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وويل چي که چا وليدى منکر يعني د شرع شريفي مخالف کار نو دي تغير ورکړي په لاس سره يعني صاحب المنکر دي ووهي يا دې تر لاس ټينګ کړي چي دا کار بله ورځ مه کوه يعني که يې په طاقت پوره وه که هغه سرې جنګ نه درسره کاوه "فان لم يستطع فبلسانه" يعني په خوله دي نصيحت ورته وکړي، او که يې د خولې د نصيحت

طاقت هم نه درلودی یعني يو جابر ظالم حاكم يا رئيس جمهور ؤ فبقلبه نو په زړه دي نصيحت ورته وكړي، يعني بد ايسوي په سبب ددغه بد كار "وذالک اضعف الایمان" یعني تر دې کښته درجه د ایمان نسته.

**درویش وایي**: چي په اوسني زمانه کي ملا یان د یوه منکر نه بلکې د ډېرو منکراتو مرتکبان وي لکن دوی ورسره هم په خندا ژوند کوي او په زړو کي بد ځه چي ډېر ښه ایسي په شرط ددې چي دراهم ورکوي. او د اوس وخت علماً على الاکثر هغه منکرات چي په مقتد یانو کي یې وي په خپلو مواعظو کي یې پېر خوله نه راوړي، نو په داسې ملا یانو کي هغه ضعیف ایمان هم نسته والى المشتکی: چوکفر از کعبه بر خیزد کجا ماند مسلمانی.

وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَٰهِلِينَ ﴿١٩٩﴾

یعني مخ واړوه له جاهلانو ځخه. که یې یوه د بې عقلی خبره درته وکړه یا یې ښکنځل درته وکړه ته مکافات ودوی ته په مثل د افعالو ددوی مه ورکوه. وهذا مثل قوله تعالى "واذا خاطبهم الجاهلون قالوا سلاماً. جعفر صادق رحمه الله وایي چي خدای ﷻ امر کړی علیه الصلوة والسلام په مکارم اخلاقو سره او دی وایي لیس في القرآن اجمع لمكارم الاخلاق من هذه الآية يعني خذ العفو الى ههنا.

وَإِمَّا يَنزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ إِنَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٠٠﴾

**یوه سه**: چي اصل د "اما" ان ما ؤ. نو کلمه د ما زائده ده سره د ان شرطیه. په حدیث کي د عبد الرحمن بن زید رحمه الله راغلي دي چي دا آیت چي نازل سو "خذ العفو" قال النبي ﷺ كيف يا رب الغضب؟ فانزل الله تعالى واما ينزغنك ۔.

والنزغ، والنخس وهل دي د چا د گوتو په سرو مراد ځندي دلته تحریک ورکول دي وشر ته او باعثه کول دي پر شر بالوسوسة، نو معنا داده که تاته ورسېدی تحریک د شیطان له خوا ځخه پر غضب و یو چاته نو پناه له خدای ﷻ ځخه ددې تحریک.

**یوه سه**: چي جواب د امر محذوف دی ای یزیله عنک خدای ﷻ به یې درځخه واخلي دغه نزغ. په تحقیق خدای ﷻ سمیع دی ستا د استعاذه او علیم لري ستا پر التجاً وبما فيه صلاح امرک. ولنعم ماقيل:

چون فرود آید بلا بی دافعی جز تضرع نبود دیگر دافعی

**فائده:** په دې کې اختلاف دی چې له شیطان څخه مراد ابلیس دی او که د سړي ملګری له اولاد څخه د ابلیس مراد دی چې قرین یې بولي، نو ظاهره داده چې زموږ په حق کې خو قرین مراد دی کما یدل علیه قوله سبحانه وتعالی "ومن یعش عن ذکر الرحمن نقیض له شیطاناً فهوله قرین" او په حق د علیه الصلوة والسلام مراد ابلیس دی، ولې زموږ په باره کې خو موږ ته ضرر نه رسوي مګر قرین زموږ، نو سړی خو له هغه چا څخه پناه په خدای ﷻ غواړي چې د هغه ضرر وده ته متوجه وي وهو القرین، واما ابلیس فلا یضرنا بشیئ فلا معنی للاستعاذة منه، واما النبي ﷺ فان قرینة قد اسلم کما جا في حدیث البخاري، نو استعاذه له هغه څخه څه فائده کوي او څه معنا یې ده، نو استعاذه د علیه الصلوة والسلام له بل موذي څخه ده ولیس هو الا ابلیس او اکابر جنوده فافهم واحفظ هذه الفائدة السنیة.

﴿إِنَّ الَّذِينَ اتَّقَوْا إِذَا مَسَّهُمْ طَٰئِفٌ مِّنَ الشَّيْطَٰنِ تَذَكَّرُوا فَإِذَا هُم مُّبْصِرُونَ﴾

په تحقیق هغه کسان چې د خدای ﷻ او د خدای ﷻ له عذابه بېرېږي چې دوی مسه کړي یعني وسوسه ورواچوي یو طواف کوونکی چې "لمة" یې بولي چې یو ضعیف خیال فاسد ته وایي، نو طائف اسم فاعل دی من طاف یطوف اذا دار حول الشیئ، نو ګویا دا لمة پر سړي باندې شاوخوا راګرځي یعني ګاهې د زنا وسوسه وي ګاهې د شراب خورې خیال وي الی غیر ذالک.

**فائده:** مراد له شیطان څخه جنس دی، ولې چې "الذین اتقوا" خو ډېر کسان دي نو شیطانان ددوی هم ډېر دي په دې معنا چې د هر سړي یو شیطان سته وهو قرینة کمامر، نو له دې سببه یې وروسته د جمع ضمیر راجع کړی یعني في قوله تعالی "واخوانهم" نو ددوی وریاد سي امر او نهي د خدای ﷻ او ثواب پر مامور به ورکول او عقاب پر فعل د منهي عنه نو دوی پوه سي، که یې په ترک د مامور به وسوسه ور اچولې وي او که یې په اتیان د منهي عنه خیال فاسد ور اچوي چې دا لمة د شیطان ده، وهذا معنی قوله تعالی "فاذاهم مبصرون" یعني

دوی د لمة الشیطان په ضرر پوه سي، نو احتراز ځندي وکړي.

**وَاِخْوَانُهُمْ يَمُدُّوْنَهُمْ فِي الْغَيِّ ثُمَّ لَا يُقْصِرُوْنَ**

یعني ورونه د شیطانانو چي مراد ځندي فساق او فجار او بدکاران د انسانانو دي، کومک کوي د شیطانانو په گمراهي کي د نورو مسلمانانو، بیا دا اخوان الشیطین تقصیر نه کوي په گمراه کولو کي د مسلمانانو، او دا اخوان الشیطان د خپل دغه کار په بدي نه پوهیږي چي توبه ځندي وکاږي فهم لایبصرون. بخلاف المومنین اذا طاف بهم طائف هغه پوه سي ولذا قال الله تعالی "فاذا هم مبصرون"

له یوه عالم ځخه نقل دی چي زه له شیطانانو ځخه دومره نه بیریږم لکه د اخوان الشیطاین ځخه چي بیریږم ولي د شیطانانو دفع خو په اعوذ بالله من الشیطان الرجیم سره ده، او د اخوان الشیاطین دفع خو په اعوذ بالله سره هم نه کیږي.

**درویش وایي:** چي والامر کذالک کما یدل علیه التجربة. اعاذنا الله من الشیاطین واخوانهم من الفساق والفجار من المسلمین.

**وَاِذَا لَمْ تَاْتِهِمْ بِاٰيَةٍ**

چي ته یا محمد ﷺ راتگ ونه کړې دوی ته په آیت. ځیني مفسرین وایي چي مراد آیت قرآني دی ولي چي قریشو به د علیه الصلوة والسلام ځخه دا مطالبه کوله چي ستا په قرآن کي داسي یو آیت نازل کړه چي زموږ د خدایانو مدح پکښي وي، او بعض مفسران وایي چي مراد له آیت ځخه معجزه ده یعني هغه معجزه چي دوی به تعنتاً غوښته مثلاً د صفا غر دي سره زر وگرځي چي موږ له فقر او لوږي په ووځو. یا به یې ویل چي مکه چي تول غرونه دي غرونه یې ایسته کړه او جاري ویاله پکښي روانه کړه چي موږ زراعت پکښي کوو. نو نوري ورته معجزې چي د تعنت له لارې یې دوی غوښتنه کوله دوی به ویل.

**قَالُوْا لَوْلَا اجْتَبَيْتَهَا**

ولي ته اختراع او له ځانه جوړول نه کوې ددغه آیت. بعض علماً وایي چي ته یې له خدایه ولي طلب نه کوې.

**بوه سه**: چي د اجتبا اول معنى مراد وي يوازې پر معنى اول د آيت جوړېږي ولي چي ددوی خو دا عقيده وه چي محمد ﷺ دا قرآن جوړوي، نو داسي آيت دي هم جوړ کړي چي زمونږ د خدايانو مدح پکښې وي بخلاف المعنى الثاني من الآية لانه لايمکن اتيان امثال الآيات الثانية من عند نفسه ﷺ او که له اجتبا څخه معنى ثاني وي چي له خدای ﷻ څخه ولي طلب نه کوي، نو دواړې معناوي د آيت صحيح دي فتدبر.

**قُلْ إِنَّمَآ أَتَّبِعُ مَا يُوحَىٰٓ إِلَيَّ مِن رَّبِّي ۚ هَـٰذَا بَصَآئِرُ مِن رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ۝**

ته ورته ووايه يا محمد ﷺ چي زه متابعت نه کوم مگر د هغه شي چي ماته يې وحي وکړل سي زما د خدای ﷻ له خوا څخه او دا قرآن سترگي د زړو دی چي حق او باطل په ليدل کېږي او صواب و خطأ په معلومېږي، او يا د بصائر معنى حجج او دلائل دي چي په هغو سره صدق د دعوی د نبوت زما معلومېږي. وحاصل الجواب د خدای ﷻ له خوا وقريشو ته دادی چي زه خو تابع د وحي يم زيادت او نقصان په کتاب الله کي نه سم کولای او نه مي اتيان د آياتو تعنتيه وو په وسه دی او نه د داسي کارو چي تعنتاً وي له خدای ﷻ څخه کوم. البته ماته قرآن بصائر د رب ستاسي له خوا راغلی دی او هغه قرآن بصائر هدی او رحمة د هغه قوم د پاره چي ايمان يې راوړی وي.

**وَإِذَا قُرِئَ ٱلْقُرْءَانُ فَٱسْتَمِعُوا۟ لَهُۥ وَأَنصِتُوا۟ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ۝٢٠٤**

او چي ويل کړه کېږي قرآن نو تاسي غوږ ورته نسي او پټه خوله اوسئ يعني په وخت کي د تلاوت القرآن خبري مه کوئ ددې د پاره چي پر تاسي به رحم وکړل سي. يعني د خدای ﷻ له خوا څخه.

**درويش وايي**: چي مظهري رحمه الله په روايت د ابن ابي حاتم له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام پر لمانځه ولاړ و ما سلام ورواچاوه ده جواب رانه کړی او دمخه به لمونځ کونکي په لمانځه کي خبري

كولې او ويل چاته به يې خپل حاجت امر كاوه، نو عليه الصلوة والسلام چې له لمانځه څخه فارغه سو ماته يې د سلام ځواب راكړى او عليه الصلوة والسلام وويل چې "ان الله يفعل ما يشأ وانها نزلت اذا قرئ القرآن فاستمعوله وانصتوا لعلكم ترحمون" او بل مظهري د عبد الله بن مغفل ﷺ څخه په روايت داسې حديث هم نقل كړى دى لكه هغه دمخه حديث، او له قتاده ﷺ څخه نقل دي چې مسلمانانو به يو د بل سره اول خبري كولې ما امروا بها حتى چې يو سړى به راغلى خلگ به پر لمانځه ولاړ وه، نو هغه نژدې سړي ته به يې وويل كم صليتم څو ركعته لمونځ مو كړى دى هغه به ورته ويل دومره ركعته فانزل الله تعالى هذه الآية فامروا بالاستماع والانصات.

**مسئله**: امام اعظم ابو حنيفه ﷫ وايي چې په لمانځه كي خبري كول كه عامداً وي او كه ناسياً كه كراروي كه په زوره يا يې بل سړي په وكړي او كه عالم وي په تحريم د خبرو او كه جاهل وي په تحريم د خبرو نه وي خبر، كه لږ خبري وي كه ډېرې لمونځ فاسدوي، مگر سلام گرځول په هېره سره لمونځ نه فاسدوي. او ائمة ثلاثه وايي كه خبري په لمانځه كي په هېره سره او يا جاهل بالتحريم وُ او يا پر خوله ورغلې لمونځ نه باطلوي وان طال.

**فائده**: امام اعظم ﷫ په دغه آيت سره دليل وايي چې انصات پر مقتدي واجب دى وان قرائة الامام له قرائة، نو قرائت به مقتدي خلف الامام نه وايي كه سري لمونځ وي او كه جهري، ولې چې خداى ﷻ پر مصلي دوه شيان واجب كړي دي، يو استماع يعني قرآن ته غوږ نيول، او بل انصات پټه خوله والى، نو په سري لمانځه كي د امام كه استماع نسته انصات خو پر واجب دى.

**سوال**: انصات مأموربه في الصلوة خو نهي له خبرو څخه دى لامن القرائة؟

**ځواب**: مفسرين ﷭ ټوله وايي چې اعتبار عموم لره د لفظ دى خصوص لره سبب نه دى، او لفظ د قرآن خو عام دى خبرو او قرآئت دواړو ته شامل دى، علاوه چې يوه ډله د مفسرينو وايي چې دا آيت په لمانځه پوري خاص دى حين كانوا اى الصحابة ﷺ يقرؤن القرآن خلفه ﷺ، په اشباه او نظائر كي وايي چې قرائت

خلف الامام مکروه دي په کراهة التحريم سره کما في شرح المجمع لابن ملك رحمه الله. له حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی من قرأ خلف الامام فقد اخطأ الفطرة ای الطريقة المسنونة.

**پوښتنه:** چي په تاريخ کي د امام اعظم رحمه الله راغلي دي چي يوه ډله له سني علماؤ څخه و امام اعظم رحمه الله ته راغله ددې د پاره چي امام اعظم رحمه الله قرائة خلف الامام ممنوع بولي، نو دده سره به مناظره وکړي او ملزم و ملامت يې کړي او له دغه حکم څخه يې الزاماً واړوي، نو امام اعظم رحمه الله ورته وويل چي زه خو د دومره کسانو سره مناظره نه سم کولای. نو تاسي خپل د مناظرې امر خپل يو عالم ته وسپارئ زه به د هغه سره مناظره وکړم نو هغو و يوه نفر ته اشاره وکړه. امام اعظم رحمه الله ورته وويل چي دغه ستاسي لوی عالم دی؟ هغو ورته وويل هو! امام عليه الرحمة ورته وويل که ما دی ملامت او مغلوب کړی تاسي ټول له ملامت او مغلوب ياست؟ دوی ورته وويل نعم؟ امام عليه الرحمة ورته وويل چي څرنګه تاسي واياست چي مغلوبول دده زموږ مغلوبول دي. دوی ورته وويل چي دی زموږ امام دی نو دده خبره زموږ خبره ده، نو امام عليه الرحمة ورته وويل چي موږ چي په لمانځه کي يو سړی امام مقرر کړو فقرائته قرائة لنا، نو ټولو اقرار وکړی په الزام سره او د امام عليه الرحمة مذهب يې ومانه.

**پوښتنه:** استماع او انصات پر هغه چا چي خارج الصلوة وي او ده ته ورسيږي قرائت د هغه چا چي په لمانځه کي قرائت وايي او يا خارج الصلوة قرائت وايي لازم دی او که څرنګه؟

**ځواب:** قاضي بيضاوي رحمه الله وايي عامة العلماً پر دې دي چي خارج الصلوة ته استماع او انصات مستحب دی علامه ابن همام صاحب د فتح القدير وايي وفي کلام اصحابنا مايدل على الوجوب يعني په دوو صورتو کي استماع او انصات واجب دی بلکي په مطلق جهر په قرائت کي واجب دی. په خلاصه کي وايي که يو سړی ؤ د فقهي شريفي کتابت يې کاوه او وده ته نژدې يو سړی ؤ قرآن شريف يې په جهر وايه چي فقيه يې استماع نه سوای کولای. نو فقيه نه دی ګناه ګار

بلکې قاري ګناه کار دی.

**درويش وايي:** چي تخصيص د كتابة الفقه اتفاقي دی که یې تفسیر لیکی یا یې حدیث لیکل هم یې حکم داغه دی چي ګناه پر قاري ده، او که یو سړي په جهر سره قرآن وايه او خلګ بیده وه دا قاري ګناه کاره دی. وهذا كله يدل على الوجوب انتهى قول ابن الهمام رحمه الله.

**درويش وايي:** چي بعض امامان د روژې په میاشت کې چي خلګ وسحري یا پیشلمی ته را ویښوي، نو په لوړ سپیکر کې قرآن شریف وايي چي ټوله خلګ یې اوري په دې وخت کې بعض نر او ښځې پر اودس مات ناست وي او بعض خلګ د ماینې سره په جماع اخته وي، نو دا ټوله ګناه د قاري په غاړه ده.

**پوه سه:** چي مظهري رحمه الله چي خپل ځان لکه مجتهد چي ګڼي د بعض دلائلو د مذهب د ابو حنيفه رحمه الله جوابونه ورکړي دي حيث قال واجيب بان حديث معاوية حجة على ابي حنيفة لاله آه، وهذا ديدنه في تفسيره عبد الله بن المبارك رحمه الله چي لوړ محدث بلا انکار دی وايي:

وحسبي من الخيرات كلها ........... دين الاسلام واعتقادي مذهب النعمان
فما بالمشرقين له نظر ........... ولا بالمغربين ولا بكوفة

الى اخير القصيدة او مظهري رحمه الله د بل په خوله خبري کوي یعني هر مذهب وال يا اصحاب ظواهر الحديث چي د امام اعظم رحمه الله د مذهب پر دلائلو سوالونه کړي دي هغه رانقل کوي.

**درويش وايي:** چي که چاته تقوی، فقاهت او محدثيت د امام ابو حنيفه رحمه الله نه وي ور معلوم، نو د درمختار یا د رد مختار مقدمه دي په غور سره مطالعه کړي او د درويش یوه شرحه چي پر ابو المنتهى باندې ده په پښتو ژبه په هغه کې مناقب د امام الائمة ابو حنيفه رحمه الله حواله د تواريخو معتمده ؤمي پکښې بيان کړي دي هلته یې مطالعه کړئ.

**وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً**

او ته ذکر کوه د خدای جل جلاله یا محمد ﷺ او دا هم روا ده چي مخاطب دي ټوله

مسلمانان وي فالمعنى اذكر يا ايها المخاطب "ربک" ستا رب په زړه کي.

**پوه سه:** چي تضرعاً او خيفةً دواړه مصدر دي او حال دي له ضمير څخه د "اذكر" نو په معنی د متضرعاً وخفياً دي يعني ته له خدای ﷻ څخه ويرېږي، ابن عباس رضي الله عنه وايي چي مراد له ذکر څخه قرائت دی چي هغه به په سري لمانځه کي لکه ماپښين او مازديگر في نفسک وايي يعني دومره مقدار چي په خپله يې اوري.

وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ

او کم تر د ډېر جهر په جهري لمانځه کي يعني د ډېر شديد جهر دي نه کوي بلکي جهر دي په خفض الصوت او ارام سره کوي چي من خلف سامعان يې اوري كذا قال ابن عباس رضي الله عنه في تفسير الآية.

**درويش وايي:** چي په بعضو ملا يانو پسي پينځه کسه ولاړ وي مثلاً بيا هم دي قرائت په دومره لوړ اواز سره وايي چي خارج المسجد خلگ يې هم اوري او په اوسني زمانه کي لمونځونه په لوډ سپيکر کي ورکوي او سره ددې چي دده اواز توله مقتديان اوري تر دغه آيت لاندي ودون الجهر من القول ددغه آيت امتثال نه کوي حتی چي بعض ملا يان چي قرائت په لوډ سپيکر کي وايي د بل مسجد خلگ يې هم اوري او دده د قرائت له سببه په لمانځه کي خطاوزي، وعندي هذا الفعل اشد كراهة، نو مفهوم د آيت دادی چي په صلوة جهريه کي دي جهر متوسط کوي كما في قوله تعالى "ولا تجهر بقولک ولا تخافت بها واتبع بين ذالک سبيلاً" په حديث کي د ابي هريره رضي الله عنه راغلي دي كانت قرائته النبي ﷺ بالليل يعني في التهجد يرفع ظوراً ويخفض طوراً او جمهور د علماؤ پر دې دي چي مصلي د تهجد بالخيار دی ان شاء جهر وان شاء خفية، وبهذا يقول ابو حنيفه وابو يوسف رحمهما الله تعالى ثم القائلون بالتخير منهم من قال الا اخفاء افضل لكونه ابعد من الرياء وقال محمد رحمه الله الجهر افضل لما في الاحاديث من جهره ﷺ في صلوة التهجد على الاكثر امام همام ابو حامد محمد الغزالي رحمه الله په احياء العلوم کي وايي چي طريقه د جمع په منځ کي د احاديثو چي په جهر او اخفاء کي راغلي دي يعني په صلوة التهجد کي راغلي داده چي اسرار ابعد دی له رياء څخه نو څوک

چي له ریا څخه بېرېږي د هغه د پاره اسرا افضل دی او که پر ریا نه بېرېږی جهر افضل دی لان العمل في الجهر اكثر وهو رفع الصوت او بل په جهر سره د قاري زړه بیداره کېږي او خوب څنډي دفع کېږي او نشاط او خوشالي پـه زړه کي پیدا کېږي او غوږونه په اورېدلو د قرآن مشرف کېږي فهما حضر الشيئ من النيات المذكورة فالجهر افضل وان اجتمعت النيات ثواب يې مضاعف کېږي. لکن پوه سه! چي په جهر بالقرآن في صلوة التهجد كثيرة والآثار المنقولة من الصحابة ﷺ والتابعين رحمهم الله اكثر من ان تحصى لكن دا په هغه ځا کي چي خوف د ریا نه وي پکښې او که چېري خوف د ریا وي او یا نور کسان بیده وي چي هغه د تهجد د لمانځه سره عادي نه وي په جهر سره د هغه ویښېدل او یا پر بل متهجد لمونځ ګډوډ کېدی، نو بیا متهجد ته جهر بالقرائة نه دی روا

**پوه سه:** چي اصل د "خيفة" خوفة" ؤ واو په سبب د سکون او انکسار د ماقبل په یا بدل سو، ابن الشيخ وايي چي دا خوف شامل دی خوف لره د تقصير في العمل او خوف لره د خاتمې.

بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ وَلَا تَكُن مِّنَ الْغَافِلِينَ ﴿٢٠٥﴾

**پوه سه:** چي حرف جر متعلق دی په "اذكر" پوري او "غدوة" جمع د غدوة ده، په قاموس کي وايي چي غدوة بالضم البكرة يعني اوله ورځ او مابين صلوة الفجر الى طلوع الشمس وهو المراد ههنا "والآصال" جمع د اصيل ده يعني اخير النهار او مابين صلوة العصر والمغرب وهو المراد ههنا.

**فائده:** تخصيص د دې دوو وختو چي لانهما افضل اوقات الذكر. او مه ګرځه ته له غافلانو څخه يعني په هيڅ وخت کي د اوقاتو.

إِنَّ الَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ وَيُسَبِّحُونَهُ وَلَهُ يَسْجُدُونَ ۩ ﴿٢٠٦﴾

په تحقيق هغه کسان چي په نبز د خدای ﷻ دي عندية بالكرامة والفضل لا عندية جسمانية فانها ممتنع في حقه لاستحالة كونه جسماً هغه کسان تکبر نه کوي له عبادت څخه د خدای ﷻ او تسبيح د خدای ﷻ وايي يعني سبحانه يا سبحان ربي الاعلى كما هو تسبيح السجود وغيره من الالفاظ الدالة على جلال

ذاته وكمال صفاته وخاص خدای ﷻ ته سجدې کوي والمراد بالموصول الانبیا والملائکة وصالحوا المؤمنين. له ثوبان ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وويل چي ابن آدم چي آيت د سجدې ووايي شيطان گوښه سي او ژاړي او وايي يا ويلني ای هلاک او افسوس ما لره، ابن آدم امر سو په سجده سره او سجده يې وکړه فله الجنة، او زه امر سوم په سجده سره ما منع وکړه فلي النار رواه مسلم.

له معدان بن طلحة ؓ څخه روایت دی چي زه ملاقي سوم د ثوبان ؓ سره مولی رسول الله ﷺ ما ورته وويل ماته خبر راکړه په داسي يو عمل سره چي زه يې وکړم خدای ﷻ به ما داخل کړي وجنت ته؟ دی ساکت سو، بیا مي سوال څندي وکړی بیا سکت سو بیا مي دریم سوال څندي وکړی، نو ثوبان ؓ وويل چي ما دغه سوال له علیه الصلوة والسلام څخه وکړی فقال علیک بکثرة السجود لله فانک لاتسجد لله سجدة الا رفعک الله بها درجة وحط عنک بها خطيئة. فقال معدان ؓ ثم لقيت ابا الدرداء ؓ فسألته يعني هغه مخکښی سوال مي څندي وپوښتی چي ما له ثوبان ؓ څخه کړی ؤ فقال لي ماقال ثوبان ؓ رواه مسلم.

**درویش وايي:** چي دا آيت د سجدې دی او سجده تلاوت واجب دی پر تالي او پر اورېدونکو.

**مسئله:** په اجتماع کي يو قاري قرآن وايه، نو مستحب داده چي قاري د سجدې آيت کرار ووايي تاچي نور سامعان په ترک سره د سجده تلاوت په گناه کي واقع نه سي.

**مسئله:** يو سړي که د قرآن مبارک تلاوت کاوه چي پر آيت د سجدې به راغلی هغه بې نه وايه دا فعل اشد کراهة دی، ولي چي د سجدې سره لعزه وله ده.

**فائده:** که څوک څورلس آيته د سجدې ووايي په قرآن کي او د هر آيت د پاره سجده وکړي هر مهم چي لري وخدای ﷻ ته دې عرض کړي امید قوي دی چي خدای ﷻ به يې هغه عرض قبول کړي.





سورة الانفال مدنية، وقيل مكية، وقيل اكثرها مدنية وبعض مكية، ددي سورت آيات څني وايي پينځه اويا دي او څني وايي شپږ اويا آيته دي.

سُوْرَةُ الْاَنْفَالِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ خَمْسٌ وَسَبْعُوْنَ اٰيَةً وَعَشْرُ رُكُوْعَاتٍ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ ؕ

صحابه ﷺ له تا څخه پوښتنه کوي د غنائمو د حکم چي په جنګ کي له کفارو څخه تر لاسه سي، نو سوال د طلب د فتوی دی لا من قبيل قول القائل سألته درهماً لانه ح ء الى المفعول الثاني بنفسه لا بكلمة عن والسوال الاستفتائي يعدي الى المفعول الثاني بعن فافهم هذا الفرق.

**فائده:** نفل په لغت کي زيادت ته وايي، نو غنيمت ته له دې سببه نفل وايي چي غنيمت زائد عطاً الهي ده پر هغه شي چي خدای ﷻ يې وعده کړي ده د مجاهدينو في سبيل الله سره من الثواب في الآخرة او بل غنيمت زائد شی دی چي خدای ﷻ امت محمدي ته ورکړی دی، په نورو امتو کي به چي يو شی به يې تر لاسه کړی له کفارو څخه، نو له اسمانه به اور نازل سو هغه هر څه چي به وه هغه به يې وسوځل او هم ددې سببه صلوة نافله نفل بولي چي زائد دی تر فرضي لمانځه، او دغه رنګه لمسي يا کړوسي ته نافله وايي چي زائد دی تر اصلي ولد د سړي، او په اصطلاح کي د مغازي نافله هغه ته وايي چي امام المسلمين يې د بعض دلاوره مجاهدينو سره وعده وکړي زائد تر سهمه دده په غنيمت کي.

**فائده:** د مسلمانانو په منځ کي اختلاف په غنائمو کي د بدر په وېشلو کي و، نو ځکه يې د عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه چي دا غنائم د بدر په مهاجرينو او پر انصارو ﷺ على سوا وېشل کېږي او که څرنګه، او تولی د قسمت به يې د چا په لاس کي وي او دا غنيمتونه به په څه شي کي مصرف کېږي

يعني الات د جهاد به په رائيول كېږي او كه بې مجاهدين پر خپلو عيالو مصرف كوي، نو دا آيت نازل سو "يسئلونك عن الانفال"

**پوښتنه**: د "يسئلونك" ضمير خو و اصحاب بدر ته راجع دی، نو دا به اضمار قبل ذكر المرجع نه وي؟

**ځواب**: يا! ولي چي اصحاب بدر خو متعين وه په غزا كي د بدر فلا حاجة الى ذكرهم.

**پوه سه**: چي ابو داؤد او نسائي او حاكم او ابن حبان او نورو ګڼ شمېر محدثينو رحمهم الله له ابن عباس رضي الله عنهما څخه داسي روايت كړی دی چي عليه الصلوة والسلام يوه ورځ داسي وويل "من قتل قتيلاً فله سلبه" سلب و هغه جنګي توكو ته وايي چي په جنګ كي ورسره وي لكه توره زغره غشي وغيره، نو مطلب دادی چي دغه سلب په غنيمت كي نه دی داخل بلكې يوازي د قاتل دی، نو ځوانانو د غازيانو د بدر په وژلو د كفارو لاس پوري كړی، او سپين ږيري كسان د اهل بدر تر بيرغو لاندي ولاړ وه. نو د ځوانانو چي جنګ سوړ سو او مشركان اوويا كسان ووژل سوه او اوويا كسان اسيران سوه، دا غنيمت يې يوازي خپل حق بالله ولي چي دوی جنګ وكړی او كفارو ته يې شكست وركړی، نو سپين ږيرو ځوانانو ته داسي ويل چي موږ هم په دې غنيمت درسره شريكان يو، ولي چي موږ ستاسي شا خوندي كول چي په عربي يې ردوا بولي او كه تاسي ته يو شكست درپه برخه سوی وای موږ ته راتلاست، نو دا موضوع و عليه الصلوة والسلام ته پېش سوه، نو د دفع د اختلاف د اصحاب كرامو رضي الله عنهم دا آيت نازل سو.

قُلِ الْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِۚ

ته ورته ووايه دوی ته چي انفال د خدای جل جلاله دي يعني ملكاً او د رسول دي از روی تصرف دی به يې وېشي څرنګه چي خدای جل جلاله يې امر كوي. ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي تصرف او وېش د غنائمو د بدر خلګو له لاسه خدای جل جلاله وكښی او د عليه الصلوة والسلام په لاس يې وركړی، نو عليه الصلوة والسلام ټوله غنائم د بدر يعني ماسوی د سلبه په منځ كي د مسلمانانو يعني كه ځوانان وه او كه

سپین ږیري او که مهاجرین وه او که انصار علی السوا یې وویشي، نو دغه وه تقوی او بېره له خدای ﷻ څخه او دغه ؤ طاعت د خدای ﷻ او د رسول الله ﷺ او هم دغه وه اصلاح د ذات البین یعني د اختلافاتو ددوی کما بینا من قبل آنفاً لکه چي خدای پاک وایي.

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَیْنِكُمْ ۪

نو له خدای ﷻ څخه وبېرېږئ او مشاجره مه سره کوئ. او تاسي به وګرځوئ هغه صفت چي په تاسي کي ؤ له پخوا څخه، یعني یو له بل سره به مو کومک او مرسته کول چي په عربي یې مواسات بولي او الفت ته هم وایي یعني په هغه شي کي چي تاسي ته په بدر کي در نصیب سو من الغنائم په هغه تاسي خپل پخوانی عادت مه هېروئ او تسلیم سئ و امر ته د خدای ﷻ او د رسول دده لکه پخوا چي واست.

وَاَطِیْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗۤ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِیْنَ ①

یعني فرمانبرداري د خدای ﷻ او د هغه د رسول ﷺ که تاسي یاست کامل الایمان، مونږ کامل وو ایه، ولي چي په ایمان کي د بدریانو شک نه ؤ.

**دروېش وایي**: چي په مناسبت د کمال الایمان دا ابیات د مثنوي معنوي ډېر موزون دي.

**پوه سه**: چي دا بیتونه په مانحن فیه سره مربوط نه کړئ بلکې دا ابیات صرف او صرف د کمال د ایمان بیان دی.

بود گبری در زمان بایزید ......... گفت اورا یک مسلمان سعید
که چه باشد گر تو ایمان آوری ......... تا بیابی صد نجات و سروری
گفت این ایمان اگر هست ای مرید ......... انکه دارد شیخ عالم بایزید
من ندارم طاقت آن تاب آن ......... که آن فزون آمدز کوششهای جان
گرچه در ایمان و دین ناموقنم ......... لیک در ایمان او بس مؤمنم
مؤمن ایمان اویم در نهان ......... گرچه مهرم هست محکم بردهان
باز ایمان گرخود ایمان شما است ......... نی بدان میلستم ونی اشتهامست
آنکه صد میلش سوی ایمان بود ......... چون شمارا دید آن باطل شود

زانکه نامی بیند و معنیش نی............چون بیابان را مفازه گفتی
اللهم ارزقنا حقیقة الایمان و اوصلنا الی درجة العمل بالاحسان.

**پوه سه:** چي قاضي بيضاوي رحمه الله هغه د وعدې د نافله مشروطي د عليه الصلوة والسلام په دې دول راوړی دی شرط رسول الله ﷺ لمن له غنا يعني فائدة في القتال ان ينفله فتسارع شبانهم حتى قتلوا سبعين واسروا سبعين. ثم طلبوا نفلهم وكان المال قليلاً فقال الشيوخ والوجوه الذين كانوا عند الرايات كنا رده لكم وفئة تتحازن اليها فنزلت الآية المتلوة فقسمها رسول الله ﷺ بينهم على سوا يعني لم يعط للشبان النفل الموعود وهذا ايضاً بالوحي.

**إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ**

"المؤمنون" يعني الكاملين في الايمان لان الافعال والصفات الآية انما هي للكاملين" په تحقيق سره مؤمنان يعني هغه کسان دي چي خدای جل جلاله وریاد کړل سي يعني تلاوت د قرآن ورته وسي يا کلمه طيبه "لا اله الا الله" ورته وويل سي او يا فقط الله الله واوري وبېرېږي زړونه يې له استعظام يعني د لوی والي او هيبته د جلال د خدای جل جلاله

**پوه سه:** چي کلمه د "انما" د حصر ده په معنی لا والا ده ای ليس الكاملون في الايمان الا هؤلاً چي دا هغه خلگ له مسلمانانو څخه دي چي قصد د معصيت د خدای جل جلاله وکړي او بيل څوک ورته ووايي اتق الله او دوی هغه د معصيت قصد ترک کړي خوفاً من عقابه فالمعنى بحذف المضاف ای اذا ذكر وعيد الله كذا قال المظهري رحمه الله.

**درويش وايي:** چي په مجرد ذكر سره له خدای جل جلاله څخه بېرېدل لازم دی د اهل کمال سره د ايمان سوا كان ملكاً مقرباً او نبياً مرسلاً او مؤمناً تقياً نقياً بخلاف خوف العقاب فانه لا يحصل بمجرد ذكر الله بل بملاحظة المعصية د ذكر عقاب الله انتقاماً من العصات فعلى هذا المعنى الذين ذكره المظهري رحمه الله بلفظ قيل ضعيف خصوصاً اذا احتاج عبارة القرآن الى حذف المضاف ولعل المظهري اشار الى ضعفه بايراده بلفظ قيل فافهم.

وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا

او چي ولوستل سي پر دوى آيات د خداى ﷻ يعني آيات د قرآن كريم ودوى ته زيات كړي دغه آيات ايماناً يعني اطمنان قلوبهم ببركة تلاوة القرآن لنزول البركات عند تلاوة آيات القرآن.

**پوه سه:** چي مشهوره عقيده د اهل سنت داده چي ايمان زيادت او نقصان نه قبلوي لان زيادة الايمان ونقصانه بزيادة المؤمن به او نقصانه او مؤمن به د ټولو يو دى يعني وروسته تر وفات د عليه الصلوة والسلام كما يدل عليه قوله تعالى "اليوم اكملت لكم دينكم واتممت عليكم نعمتي ورضيت لكم الاسلام ديناً" البته په طاعاتو سره او په ډېر والي سره د دلائلو نور د ايمان په زړه كي پيدا كېږي او زړه ته اطمنان پيدا كېږي وهذا معنى قولهم الايمان يقبل القوة الضعف كايمان العالم بالبراهين على صحة عقائد الاسلام والعامي الجاهل بالبراهين.

**تفريع:** مراد په آيت كي زيادت حقيقي دى في وقت حياة النبي ﷺ لزيادة المؤمن به يوماً فيوماً، ولي چي دين د اسلام كامل سو په ديارلس كاله كي د حيات نبوي ﷺ او كه د وروسته زمانو خلگو ته وايي نو مراد څخه دي اطمنان القلب ببركة القرآن العظيم وزيادة نوره في القلب وهذا هو المعنى من القوة والضعف. ويدل عليه قوله تعالى في شان ابراهيم ﷺ "وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِيمُ رَبِّ أَرِنِى كَيْفَ تُحْىِ ٱلْمَوْتَىٰ ۖ قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِن ۖ قَالَ بَلَىٰ وَلَٰكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِى ۖ" نو ابراهيم ﷺ لره ايمان وچي موتى خداى ﷻ ژوندي كوي په قيامت كي لكن د هغه ايمان بالغيب سره چي مشاهده ضم سي اطمنان د زړه پيدا كېږي او قوت د ايمان رونما كېږي، ولذا قال ابراهيم ﷺ "ليطمئن قلبي" او علامه تفتازاني رحمه الله وابي وتبعه المولى ابو السعود في تفسيره ان نفس التصديق الذي هو الايمان على التحقيق يقبل الزيادة والنقصان للفرق الظاهر بين ايمان النبي ﷺ وارباب المكاشفات وبين يقين الامة، او دغه فرق سته چي يو چا ته يو دليل حاصل وي او بل ته لس دلائله حاصل وي.

**درویش وايي:** چي دا تړوله چي دوی ذکر کړه راجع دي و قوت او اطمنان القلب ته نه زیادت حقیقي ته لما قلنا ان المؤمن به للكل واحد فافهم.

وَّعَلٰى رَبِّهِمۡ يَتَوَكَّلُوۡنَ ۚ

او خاص پر خدای ﷻ ددوی توکل وي. یعنې تفویض د کارو خاص الخاص و خدای ﷻ ته کوي نه له چا څخه ببربږي او نه و چاته طمع کوي.

**پوه سه:** چي که خدای ﷻ تر دې اوسه پوري اولاً اعمال حسنه د زړو ذکر کړه من الخشية والوجل عند ملاحظة عظمت جلاله تعالى والاخلاص والتوكل. تر هغو وروسته اوس بعض عبادات بدنیه او مالیه ذکر کوي او وايي.

الَّذِيۡنَ يُقِيۡمُوۡنَ الصَّلٰوةَ

هغه کسان دي چي لمونځ کوي والمراد به الجنس وهو الفرائض بر پایه کوي.

درویش وايي: چي په اتفاق د مفسرينو او په اجماع د محدثينو رحمهم الله او په یوه خوله د فقهاوو رحمهم الله اقامت د لمانځه عبارت دی له ادا څخه د لمانځه سره د کامل مراعات د شرائطو من الوضوء وطهارة الثوب والمكان او سره د مراعاتو د ارکانو او واجباتو او سنن او مستحباتو والخشوع والخضوع و تعديل الاركان نه نفس لمونځ کول هر ډول چي وي لکه لمونځ بعض عوامو. نو ځکه علماً وايي چي لمونځ کونکی ډېر دي او مقيمي الصلوة ډېر لږ دي. نو له دې سببه په حدیث د بخاري وغیره کي راغلي دي چي هغه اعرابي چي په لمانځه کي يې تعديل الاركان نه کاوه. رسول الله ﷺ دوه واره لمونځ په راوګرځاوه او دریم وار چي هغه مصلي سوال د کیفیت د لمانځه وکړی. نو علیه الصلوة والسلام پوره لمونځ وروښود.

**درویش وايي:** چي په تړوله قرآن کریم کي قیام الصلوة د منافقینو په باره کي آیت کریمه واذا قاموا الى الصلوة قاموا كسالى.

وَمِمَّا رَزَقۡنٰهُمۡ يُنۡفِقُوۡنَ ۙ

له هغه مال څخه چي ما ورکړی بعض نفقه کوي. نو کلمه د "من" په مما کي لپاره د تبعیض ده. نو که زکوٰة مفروضه وي هغه خو دی بعض مال کما تقرر في كتب الفقه. او که صدقه نفلیه وي. نو من تبعیضي تنبیه ده چي ټوله مال دي په نفلي

صدقه کي نه ورکوي، ولې چې سړی او عیال دده هم احتیاج ونفقې ته لري.

أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا

دغه کسان چې ددوی حالات د مخه تیر سوه وقد ذکرتها قريباً دوی مؤمنان دي په حق سره، نو حقاً صفت د مفعول مطلق دی ای ایماناً حقاً.

**مسئله**: استثنا یعني ان شاء الله ویل په سوال کي د سړي چې له تاسي څخه يې وکړي چې مؤمن يې صحيح ده او که نه. له حسن بصري رحمه الله څخه چا پوښتنه وکړه اموٴمن انت؟ ده ورته وویل چې که د داسي ایمان پوښتنه را څخه کوې امنت بالله وملائکته وکتبه ورسله واليوم الآخر والقدر خيره وشره من الله تعالی والبعث بعد الموت فانا مؤمن او که ته سوال د دې آيت را څخه کوې "انما المؤمنون الذين اذا ذكر الله وجلت قلوبهم واذا تليت عليهم آياته الى اخير الآية فلا ادري امنهم انا ام لا.

**پوه سه**: چې مراد د حسن رحمه الله دا دی چې کمال د ایمان په اخلاص او په تفضية الباطن او په تزکیه پوري د نفس له رذائلو څخه او تحليه پوري د جوارحو په طاعاتو سره او په ترک پوري د ټولو معاصيو اړه لري او دا يو امر نادر دی زه نه يم خبر چې په ما کي به وي او که نه واما نفس الايمان فموجود بفضله تعالی، نو دا قول د حسن رحمه الله استثنا في الايمان نه ده کما توهمه بعض الناس.

له علقمه رضي الله عنه څخه روايت دی چې موږ په يو سفر کي ؤ او يو قوم په مخه راغلی موږ ورته وویل من انتم؟ تاسي څوک یاست یعني کافران یا مسلمانان، دوی راته وویل انا مؤمنون حقاً. نو موږ بالا نه پوهېدلو چې موږ نو څه ورته ووایو حتی چې موږ د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه سره ملاقي سو او دا قصه مو ورته وکړه، ده راته وويل چې تاسي نو څه ورته وویل؟ موږ ورته وویل چې موږ نه پوهېدلو چې نور نو څه ورته ووایو ده راته وویل چې ورته ویلي به مو وای چې امن اهل الجنة انتم ان المؤمنون من اهل الجنة. سفيان ثوري رحمه الله وايي چې له دي خبري څخه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه غرض دادی چې که چا وویل چې زه مؤمن یم حقاً او دا شاهدي يې نه کړه ادا چې زه جنتي یم فقد آمن بنصف الآية.

**پوه سه**: چي امام الائمة ابو حنيفه رحمه الله دا قول يعني انا مؤمن ان شاء الله تعالى مكروه بالله، ولي چي له دې قول څخه توهم ددې کېږي چي دی په خپل اعتقاد في الحال کي شک دی، بل يقول انا مؤمن حقاً باعتبار حصول الاعتقاد الجازم في الحال لا بمعنى الجازم في الخاتمة لانها مستورة، فالاختلاف انما هو في اللفظ دون المعنى لكن مع هذا الاحوط قول ابي حنيفة رحمه الله، راوي وايي چي امام اعظم رحمه الله وقتاده رحمه الله ته وويل چي ته ولي ان شاء الله په ايمان کي روا بولې، قتاده رحمه الله ورته وويل اتباعاً لابراهيم عليه السلام حيث قال والذي اطمع ان يغفرلي خطيئتي آه، نو ابراهيم عليه السلام لفظ د طمع ووايه او جرم يې ونه کړی، نو امام اعظم رحمه الله ورته وويل چي په هغه قول د ابراهيم عليه السلام به دې اقتدا پسي کوله حيث قال الله تعالى له اولم تؤمن قال بلى ولكن ليطمئن قلبي، ولي چي د ابراهيم عليه السلام ددې قول معنا خو دا وه چي مؤمن يم يعني الجزم بالايمان ولكن د سوال د كيف تحي الموتى آه غرض مي دا دی چي اطمنان قلبي راته حاصل سي بانضمام المشاهدة بالبصر مع الايمان بالقلب فافهم.

لَهُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ

دوی لره درجي د کرامت او فضل او احسان دي په نېز د خدای جل جلاله يعني په ورځ کي د قيامت في الجنة.

**پوه سه**: چي درجات يې په لفظ د جمع راوړی لما روى عن عبادة بن الصامت رضي الله عنه ده وويل چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وويل چي په جنت کي سل درجي دي، په منځ کي د هرو دوو درجو دومره مسافت دی لکه د اسمان او د مځکي او فردوس تر ټولو بالا درجه ده، له فردوس څخه څلور ولې راوځي اوبه. شيدې. عسل او شراب، او د فردوس تر درجي لوړ عرش الرحمن دی فاذا سألتم الله فاسئلوا الفردوس، رواه الترمذي.

وَمَغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيمٌ ④

او دوی لره بخښنه سته د بعضي تقصيراتو که له دوی څخه صادر سوي وي. او ښه رزق سته چي خدای جل جلاله اراسته کړي دي، ومحمل بيانه مالا عين رئت ولا

اذن سمعت يعني بالتفصيل ولا يخطر ببال احد يعني هر څو چي سړی ووايي جنت به يې هكذا او هكذا وي جنت تر هغه بالا دی او لوی کرامت یې دادی لا ينقطع ابداً رزقنا الله وایاکم جنته الفردوس ومغفرة لذنوبنا بلا عقاب ولا عتاب ورزقنا الله بفضله الرزق الكريم انه على كل شيئ قدير وهو تعالى ارحم الراحمين

ندارم توشه راه قیامت ............ بجز شرمندگی و آه آهی
ندارم طاقت مقبول درگاه ............ بجز اشک ندامت وروه سیاهی

كَمَا أَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنْ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ لَكَٰرِهُونَ ۝

لکه چي ته اي محمد ﷺ وه ایستی رب ستا له بيت څخه ستا چي خونه د عائشې رضي الله عنها وه، او بعض مفسرين رحمهم الله وایي چي مراد خودي مدينه ده. ولي چي مدينه منوره ځای د هجرت دده وه. فختصه به كاختصاص البيت لصاحبه "بالحق" اى اخراجاً متلبساً بالحق والحكمة والصواب لقتال المشركين ببدر.

**پوه سه**: چي تشبيه چي په دې آيت کي ذکر ده معنی يې داده بتقدير المبتدأ چي دا حال يعني كون الانفال لله والرسول وتقسيم رسول الله ﷺ الانفال بين الناس على السوية مع كراهة بعض الناس وهم الشباب المقاتلون ثابت كحال اخراجک الله للحرب وكراهتهم له كما سيئاتي في الآيات الآتية تفسيره ان شا الله تعالى.

**پوه سه**: چي واو په "وان من المؤمنين آه" کي د پاره د حال دی ای والحال دا چي يوه ډله ده له مؤمنانو څخه سته چي دا ستا خروج يې مکروه وباله.

**سوال**: څرنګه مؤمنانو فعل د عليه الصلوة والسلام مكروه وباله مع انه ورد في القرآن ما آتاكم الرسول فخذوه الآية؟

**ځواب**: دا كراهت اختياري نه دی بلکي طبع له جنګ څخه كراهت لري او يا له دې سببه چي مسلمانان خو ځانونه وجنګ ته نه وه اماده کړي بلکي لکه خالي السلاح وه كما سيئاتي، حاصل د قصې دادی چي يوه قافله وه د قريشو په مشرۍ د ابو سفيان بن حرب له شام څخه راروان وه او په دې قافلي کي ډېر تجارتي اموال د قريشو وه او څلوېښت سپاره ورسره وه منهم ابو سفيان رئيس القافلة وعمرو بن العاص ومخرمة بن نوفل وكان في السنة الثانية من الهجرة.

نو جبرئیل ﷺ و علیه الصلوة والسلام ته ددې قافلې خبر ورکړی، نو علیه الصلوة والسلام مسلمانانو ته وویل چې ددې قافلې مخ ونسئ او تاراج یې کړئ او ورسره خلک یې قتل کړئ په دې سبب چې په دې قافله کې مالونه ډېر دي او خلګ یې لږ دي، بعض منافقان یا یهودان چې په مدینه منوره کې وه ابو سفیان ته یې خبر ورکړی چې مسلمانان ستاسې د قافلې مخ نسي او تاسې وژني او قافله په غنیمت وړي، نو ابو سفیان ضمضم بن عمرو الغفاري مزدور او مکې ته چټک واستاوه چې قریشو ته خبر ورکړي او ورته ووایي چې محمد ستاسې د قافلې مخ نیوی کوي. او راوه یې پاروه چې راووځي د قافلې د ساتنې د پاره او ابو سفیان سره د خبر استولو بېرېدی چې کومک د مکې والو به نه راورسېږي، موږ به محمد مړه کړي او مالونه او اوښان به په غنیمت یوسي. نو د مدینې له لارې څخه یې مخ چپ کړی د دریاب پر غاړه په امن او امان تېر سوه، او سمدلاسه یې سړی واستاوه چې قریش خبر کړي چې مه راځئ زه تېر سوم د مدینې تر حدودو په سلامتیا. خیر تر دې خبر دمخه ضمضم ور رسېدلی ؤ او قریش یې له ماجرې څخه خبر کړي وه، د ضمضم خبر چې مکې ته ورسېدی، ابو جهل د کعبې شریفې بام ته وختی او ناري یې کړې یا اهل مکة النجاه النجاه ځانونه خلاصوئ والمراد القافلة علی کل صعب وذلول پر هر اوښ که په سپرتیا اموخته وي او که نه وي عیرکم و اموالکم ای تدارکوها ان اصابها محمدا ﷺ لن تفلحوا بعدها ابداً که دا قافله محمد ﷺ ته په لاس ورغله بیا تاسې تر ابده پر محمد بری نه سئ پیدا کولای. راوي وایي چې دمخه تر رسېدلو د ضمضم عاتکه چې د عباس خور وه او عباس تر دې وخته پوري نه وه مسلمان سوی عاتکې خپل ورور ته وویل چې ما بېګاه عجیب خوب ولیدی چې یوه ملکه د اسمان له خوا راکښته سوه له یوه غره څخه یې غټه ډبره راوا خستله او پر مکې یې لوړه را وغورځول او د مکې یو کور پاته نه سو چې ددې ډبرې ټوټې دې نه وي پکښې لوېدلې، نو عباس دا خوب دده یو اشنای عتبه بن ربیعه ته ذکر کړی عتبه دا خوب خپلې لور ته ووایه خیر د خوب قصه مشهوره سوه او تر ابو جهل

ورسېدله، نو ابو جهل و عباس ته وویل یا ابا الفضل چي د عباس اسم کنیه وه چي ستاسي نر یعني محمد ﷺ چي عباس یې اکا ؤ دده په نبوت مو قناعت ونه کړی چي ښځو مو هم د نبوت دعوه وکړه یعني عاتکې، خیر خو ابو جهل د زرو کسو په شاوخوا کي لښکر جوړ کړی او لسو کسو په نوبت د ورځي لس اوښان ذبح کول د لښکر د خوراک د پاره. راوي وايي چي د قریشو لښکر په لار کي ؤ چي د ابو سفیان د خوا خبر ورته راورسېدی چي موږ په امان تر مدینې راتېر سوو او د مسلمانانو له خطره خلاص سوو، دا خبر چي د ابو جهل لښکر ته راورسېدی نو د لښکر خلګو ده ته وویل چي نور نو موږ څه کوو چي روان یو قافله تېره سوه نو خلګو ته دعوت ورکړه چي بیرته مکې ته وګرځي ابو جهل ورته وویل یا مکې ته نه ځو بلکې بدر ته ورځو هلته به شپې او ورځي تېري کړو او شرابونه به څیښو او ښځي به رقصونه راته کوي ډول، سورنا او ربابونه به اورو، نو عرب به ټول زموږ په شجاعت خبر سي او محمد خو قافله نه کړه لوټ لکن موږ یې وځان ته وکارولو، خیر ابو جهل سره د لښکره بدر ته ورسېدی په بدر کي اوبه وې یا څاهان یا کاریز چي عربو به په جاهلیت کي یوه ورځ مېله پکښې کوله او د تجارت مالونه به یې خرڅول او رانیول. وروسته علیه الصلوة والسلام د اصحابو کرامو ﷺ سره مشوره وکړه چي ابو جهل د ډېر درانه فوج سره له مکې څخه راوتلی دی علی کل صعب وذلول. نو ستاسي عیر خوښ دی یعني قافله او که نفیر یعني که د ابو جهل د لښکر سره جنګ کوئ خلګو ورته وویل بل العیر احب الینا من لقآ العدو فتغیر وجه رسول الله ﷺ وروسته یې دا خبره ورته وکړه چي عیر پر ساحل البحر تېر سو وهذا ابو جهل قد اقبل ابوجهل دادی راروان دی، د علیه الصلوة والسلام مراد دا ؤ چي د دښمن سره چي مشرکان د مکې دي جهاد افضل دی تر عیر او فائده د مسلمانانو د پاره من الظفر علی العیر، ولي چي د نفیر په جنګ کي شوکت او دبدبه د کافرانو له منځه ځي او اظهار د دین حق د اسلام پر ټولو ادیانو تاثیر کوي یعني د قریشو شکست ګویا د ټولو کافرانو شکست دی. بیا خلګو ورته وویل یا رسول الله علیک بالعیر ودع

العدو ای النفیر فغضب رسول الله اشد غضباً فقام ابوبکر وعمر رضي الله عنهما يعني بالتوبة يعني غضب د عليه الصلوة والسلام چي يې وليدی نو دوړي په زړه پوري خبري يې وکړې هر يوه په وار سره په اتباع د مراد د عليه الصلوة والسلام يعني الجهاد مع العدو وهو النفير. ثم قام سيد الخزرج يعني مشر د قبيلې د خزرج سعد بن عبادة رضي الله عنه عليه الصلوة والسلام ته يې وويل ته په خپل حال کې فکر ووه او هر امر چي ستا خوښ سو پر هغه رفتار ورکړه فوالله لو سرت الى عدن ابين ماتخلف عنک رجل من الانصار. وروسته مقداد بن عمرو رضي الله عنه وويل چي رفتار وکړه پر هغه لار چي ته خدای جل جلاله په امر کړی يې موږ له تا سره ملګري يو تر هر ځايه چي ستا خوښه وي او موږ تاته نه وايو لکه بني اسرائيلو چي موسی عليه السلام ته وويل اذهب انت وربک فقاتلا انها ههنا قاعدون لکن موږ داسي درته وايو اذهب انت وربک فقاتلا انا معک مقاتلون ما دامت عين ناظرة. فتبسم رسول الله صلى الله عليه وسلم. وروسته عليه الصلوة والسلام وويل: ماته مشوره راکړئ اې خلکو او مراد د عليه الصلوة والسلام انصار وه وذالک لان الانصار كانوا عاهدوا رسول الله صلى الله عليه وسلم ليلة العقبة في مكة ان ينصر مادام في المدينة واذا خرج منها لايكون عليهم نصرته ومعاونته. نو د عليه الصلوة والسلام مراد دا و چي تاسي انصار ماته د زړه خبره وکړئ چي تاسي پر هغه پخواني قرارداد معاهده باندي ياست او که په دې جنګ کې چي زه يې خارج المدينة کوم شرکت او معاونت راسره کوئ. نو سعد بن معاذ رضي الله عنه ولاړ سو او وه يې ويل چي ستا موږ انصار مد نظر يو. قال عليه الصلوة والسلام اجل! نو سعد بن معاذ رضي الله عنه وويل قد آمنا بک وصدقناک وشهدنا ان ماجئت به الحق واعطيناک على ذالک عهودنا ومواثيقنا. نو درځه يا رسول الله صلى الله عليه وسلم لما ارت پر هره خوا چي ستا اراده وي نو په خدای جل جلاله دي زموږ قسم وي چي ته يې بعث کړی يې په حق سره يعني رسول يې را استولی يې په حق سره چي که ته موږ ته ووايه چي په دغه لوی دریاب کې ولوېږئ چي غالباً د مرګ ځای دی موږ به خانونه ور اچوو. زموږ له انصارو ځخه به يو فرد هم ستا تخلف ونه کړي او موږ مکروه نه بولو يعني په طبعيت کې چي



Scanned by CamScanner

ته موږ د دین دښمن ته ورپاسي موږ صبر کوو په وخت کې د جنګ او شاید زموږ له خوا به تاته ولیدل سي هغه شی چې تاته مسرت په حاصلېږي یعنې ته په خوشاله کېږي. نو رسول الله ﷺ د سعد بن معاذ ﷛ په خبره خوشاله سو. نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل سیروا علی برکة الله فان الله وعدني احدی الطائفتین ای العیر والنفیر یعني عیر خو تېر سو پر ساحل البحر باندې نو موږ ته اوس نفیر پاته دی او علیه الصلوة والسلام زیاته کړه چې قسم په خدای ﷻ دی چې زه اوس لکه چې وګاپو ته د هلاک د قوم یعنې ابو جهل ومن معه ګورم، نو حاصل د آیت دادی چې خدای ﷻ ته وه ایستې له خپل کوره څخه لان تترک التوجة الی العیر وتوثر علیه مقاتلة النفیر في حال کراهة فریق من اصحابک ما اثرته من محاربة النفیر وقد مر بیان تلک الکراهة.

## يُجَادِلُونَكَ فِى الْحَقِّ بَعْدَ مَا تَبَيَّنَ

ستاسره ناحقه بحث کوي په حق کې جنګ د نفیر دی ولې چې ددوی تلقی د عیر خوښه وه، وروسته تر دې چې ښکاره سو ودوی ته.

**پوه سه:** چې "بعد" منصوب دی په "یجادلونک" سره یعنې ظرف یې دی او کلمه د ما مصدریه ده والمعنی یخاصمونک په حق کې وروسته تر تبیین الحق یعنې چې حق ودوی ته ښکاره سو یعنې ستا په ویینا سره چې خدای ﷻ زموږ مرسته کوي هرې خواته چې مو مخ سي یعنې که عیر وي او که نفیر او دوی تاته ویل یعنې دمخه تر اتفاق پر نفیر باندې ما کان خروجنا الا للعیر. او تا ولې نه راته ویل چې ان الخروج لمقاتلة النفیر چې موږ خانونه ورته تیار کړي وای او موږ به د جنګ تیاري نیولې وای.

## كَأَنَّمَا يُسَاقُونَ إِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنظُرُونَ ۝٦

لکه دوی چې روان کړل کېږي ومرګ ته، او دوی ومرګ ته ګوري. په حدیث صحیح کې راغلي دي چې د علیه الصلوة والسلام تولـه مجاهدین درې سوه دیارلس کسه وه لکه وروسته چې په راسي. لکن تر دې عدد بعض راویان یو لږ بالا وایي لکن په بخاري کې راغلي دي چې د رسولانو عدد درې سوه دیارلس ؤ لکه عدد د اهل بدر. نو ددوی سره یو ازې درې دانې اسان ورسره وه چې یو د

زبیر ؓ بل د مقداد ؓ و. او و یا داني او ښان ورسره وه، شپږ زغرې او اته توري ورسره وې، او مشرکین په عدد او جنګي اسبابو کي د مسلمانانو مضاعف وه بلکې بالا تر مضاعف وه، مثنوي مېګوید.

شیر دنیا جوید اشکاری و برگ .......... شیر مولی جوید آزادی ومرگ
چونکه اندرمرگ بیندصدوجود .......... همچو فروانه بسوزاند وجود
کل شیئ هالک جزء وجه او .......... چون نه ئی هستی مجو دروجه او
هرکه دروجه او باشد فنا .......... کل شیئ هالک نبود جزاء

وَإِذْ يَعِدُكُمُ اللَّهُ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ أَنَّهَا لَكُمْ

په یاد کړئ اې مؤمنانو هغه وخت د وعدې د خدای ﷻ ستاسي سره، یوه د دوو ډلو، یعني ابو سفیان والعیر او ابو جهل والنفیر.

**یوه سه**: چي "واذ یعدکم آه" منصوب دی په اذکر مقدر سره او "انها لکم" بدل اشتمال دی د احدی الطائفتین، مبین لکیفیة الوعد ای یعدکم ان احدی الطائفتین کائنة لکم مسخرة لکم مخصوصة بکم یعني تاسي به پر مسلط سئ لکه مالکان پر خپلو اموالو.

وَتَوَدُّونَ أَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُونُ لَكُمْ

او ستاسي خوښه ده چي هغه ډله دي شوکت او دبدبه نه لري یعني ابو سفیان او عیر لا ذات الشوکة چي د ابو جهل ډله ده چي زر کسه مقاتل ورسره دي او د ابو سفیان سره صرف څلوېښت کسه وه.

وَيُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُحِقَّ الْحَقَّ بِكَلِمَاتِهِ وَيَقْطَعَ دَابِرَ الْكَافِرِينَ ۝٧

او خدای پاک اراده لري چي حق ثابت او عالي وګرځوي په امر سره ستاسي په قتال سره، او بعض مفسرین رحمهم الله وایي چي په امر سره د ملکو ستاسي په امداد سره، او خدای ﷻ قطع کړي اخیر د کافرانو یعني استیصال یې وسي، والحاصل چي ستاسي رسیدل ومال ته خوښ دی بېله اصابته د مکروه لکه په عیر کي او د خدای پاک منظور اعلاً د دین اسلام او د کلمة الله ده او ستاسي د پاره یې فوز د دارینو خوښ دی.

لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ الْبَاطِلَ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُونَ ﴿٨﴾

چي خدای پاک ثابت او محکم وګرځوي حق چي دين د اسلام دی او محو او نابود کړي باطل چي کفر او شرک دی که څه هم د مجرمانو چي کفار د مکې دي دا غلبه د اسلام او شکست د کفر يې نه دی خوښ.

**پوه سه:** چي حرف جر متعلق دی په يقطع پوري، د بدر د قصې راويان وايي چي وروسته عليه الصلوة والسلام کوچ سو له اذقران څخه چي د يو ځای نوم دی او په هغو غرو کي تېر سو چي اصافر يې بولي اصافر جمع د اصفر ده هغه غرونه دي چي وحجفة ته نژدې دي، بيا ورشوه سو يوه ښارګوټي ته چي ريه يې بولي ثم نزل قريباً من بدر، وروسته عليه الصلوة والسلام او ابو بکر ﷺ پر اوښ باندي سپاره سوه حتی چي يو سپين ږيری د عربو يې وليدی نو يې د قريشو او د محمد او د اصحابو پوښتنه ځني وکړه، او شيخ ته يې وويل چي ته څه معلومات لرې ددوی په باره کي؟ نو شيخ ورته وويل چي ماته يو چا خبر راکړی دی چي محمد او دده اصحاب په فلاني ورځ راوتلي دي له مديني څخه، نو که د هغه مخبر خبره رشتيا وي نو به دوی په فلاني ځای کي وي، هغه ځای يې ورياد کړی چي عليه الصلوة والسلام او ابوبکر ﷺ په هغه ځای کي وه في الحال يعني چي دوی د شيخ سره خبري کولې، او شيخ ورته وويل چي ماته چا خبر راکړی دی چي قريش له مکې څخه په فلاني تاريخ او په فلاني ورځ راوتلي دي نو هغه د هغه خبره رشتيا وي، نو به قريش اوس په فلاني ځای کي وي هغه ځای يې ياد کړی چي قريش هم هلته وه.

**پوښتنه:** دا شيخ په غيبو څخه خبر و؟

**ځواب:** په غيبو خو نه ؤ خبر لکن د مسافت حساب يې ورته کاوه. نو شيخ ورته وويل چي تاسي څوک ياست؟ عليه الصلوة والسلام توريةً او کنايةً ورته وويل نحن من ماء ای من ماء دافق چي نطفه ده. د شيخ دا خيال سو چي يو ځای پر يوه چينه پراته دي، بيرته عليه الصلوة والسلام خپلو اصحابو ته سره د ابوبکر ﷺ راغلی. نو چي شپه سوه علي بن ابي طالب، زبير بن عوام، سعد بن

ابي وقاص او يو څو نفره نور هم ورسره وه ﷺ و اوبو ته د بدر يې واستول چې د قريشو معلومات که مو راوړي، دوی په شپه کي دوه کسه يو اسلم د زامنو د حجاج مريي او بل ابو يسار چې د بني العاص غلام و چي ژر يې د ک کړی وُ او قريشو ته يي اوبه وړلې. نو د معلومات د پاره يې په زوره عليه الصلوة والسلام ته راوستل په دې وخت کي عليه الصلوة والسلام پر لمانځه ولاړ وُ، اصحابو ﷺ پوښتني ځندي شروع کړې چي موږ د مسکينانو او بې کسه د قريشو يو او موږ قريشو د اوبو راوړلو پر کار مجبوره کړي وُ، نو د اصحابو په خيال دا ورغله چي دروغ يې وويل، نو اصحابو د هغو ضرب او کوب شروع کړی هغو دوو کسانو ورته وويل چي وهئ مو مه زه به رښتيا درته ووايم موږ د ابو سفيان نفر يو، نو اصحابو هم دوی پر پښبول عليه الصلوة والسلام له لمانځه څخه سلام وګرځاوه او اصحابو ته يې وويل چي دې دوو کسانو چي رښتيا درته وويل تاسي ضرب وکوب پر شروع کړی او چي دروغ يې درته وويل خوشي مو کړه والله انهما لقريش. بياره عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي د قريشو خبر راکړئ يعني چي اوس چېري دي؟ هغو ورته وويل چي ددغه غره وشاته دي چي ددغي شبلي پر لوړه غاړه دي، نو عليه الصلوة والسلام پوښتنه ځندي وکړه چي قريش به څو نفره وه؟ هغو ورته وويل چي ډېر دي په صحيح شمېر يې موږ نه يو خبر، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي څو اوښان يې د و رځي حلالول؟ هغو ورته وويل چي يوه ورځ يې نهه اوښان حلالول او بله ورځ يې لس اوښان حلالول، نو عليه الصلوة والسلام تخمين ولګاوه چي په منځ کي د نهه سوه او د زرو کسانو دي، بيا عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي د اشرافو او رئيسانو څخه د قريشو څوک پکښې دي؟ هغو ورته وويل چي عتبه او شيبه چي زامن د ربيعه دي او ابو البخری بن هشام، حکيم بن حزام، نوفل بن خويلد، حارث بن عامر، طميمه بن عدي، نضر بن الحارث، ربيعه اسود، ابو جهل بن هشام، اميه بن خلف، نبيه و منبه د حجاج زامن، سهل بن عمر او عمر بن عبدود، نو عليه الصلوة والسلام داسي ارشاد وفرمايه چي دا مکه ده چي موږ ته يې خپل د هينې

توتې را واستولې يعني خپل مشران . له دې خبرې څخه د عليه الصلوة والسلام مطلب دا و چي دغه کسان توله په بدر کي وژل کېږي لکه يو څوک چي د هيڅي توتې د کباب د پاره ور واستوي، د قصې راوي وايي چي قريش دمخه تر عليه الصلوة والسلام او اصحابو ﷺ د بدر پر اوبو اړولي وه او غلبه يې پر کړې وه . او عليه الصلوة والسلام پر رېګو چي د بدر په لوړه حصه کي وه خېمې ودرولې . نو مسلمانان ډېر تږي سوه نه يې د څښلو اوبه درلودې او نه يې د اوداسه او غسل اوبه درلودې، نو شيطان ددوی په زړو کي دا وسوسه ورواچول چي تاسي واياست چي په موږ کي د خدای ﷻ رسول موجود دی او مشرکانو پر اوبو غلبه درڅخه وکړه او داسي د لمانځه او اوداسه د پاره او د جنابت د غسل د پاره د ابو ضرورت لرئ، نو په هم دغه شپه خدای ﷻ باران وورواوه چي د مسلمانانو پر رېګو نرم باران کېدی چي دا قانون دی چي پر رېګو باران ووري رېګ تخته سي تر نوري مځکي ښه تګ راتګ پر کېږي او د رېګو په مينځو کي ډېب ځايونه وه هغه توله د اوبو حوضونه ځندي جوړ سوه او د مسلمانانو د څښاک اوبه د اوداسه اوبه او د غسل اوبه ډېري سوې او د شيطان وسوسه هم له زړو څخه ووتل او زړونه و جنګ ته ډېر محکم سوه او دغه باران د قريشو لښکر پر حدود ډېر غټ څاڅکي باران چي په عربي يې وابل بولي شروع وه، په يوه روايت کي راغلي دي چي دمخه ورځ چي مسلمانانو اوبه نه درلودې عليه الصلوة والسلام و ابو جهل ته سړی ورواستاوه چي زموږ يو څو کسه به درځي ستاسي د څاهانو څخه به اوبه راوړي چي موږ تږي يو د جنګ خبري به پر مخ ګورو، ابو جهل ورته وويل چي موږ ستاسي په مرګ پسي راروان يو تاسي اوبه لاهم غواړئ، دا شپه چي هغه څاڅکي باران پر دوی وورېدی او په څاهانو يې خړي اوبه ننوتلې چي د څښلو نه وې دا بله ورځ چي د مسلمانانو په مځکو صافي اوبه ولاړي وې . نو ابو جهل عليه الصلوة والسلام ته يو څوک ورواستاوه چي زموږ خلګ به درځي ستاسي له حوضو څخه به اوبه راوړي چي زموږ اوبه في الحاله د څښاک نه دي، ساقي د حوض کوثر ﷺ ودوی ته اجازه ورکړه او خپل کريمانه اخلاق يې په کار واچول او

ددوی د بد عمل مکافات یې ورنه کړی، وروی ابن ابي شيبة واحمد ومسلم و ابو داؤد والترمذي عن عمر ابن الخطاب ﷺ ده وويل چي ورځ د بدر سوه او رسول الله ﷺ وکتل ومشرکینو ته چي هغه زر کسه وه او خپل و اصحابو ته یې وویل چي هغه درې سوه دیارلس کسه وه او یا درې سوه نولس کسه وه. نو علیه الصلوة والسلام مخامخ وقبله ته یعني په خپله خېمه کي کښېنستی او دواړه لاسونه یې د بر پورته کړه، نو خدای ﷻ ته یې ناري کړې او وه یې ویل اللهم انجزلي ماوعدتني اللهم آتيني ماوعدتني، خدایه ته پوره کړې ماته هغه څه چي تا زما سره وعده کړې وه، او خدایه راکړې هغه څه چي تا زما سره وعده کړې وه اشاره دده و هغه ایت ته وه "ان احدى الطائفتين لكم" چي عیر ۆ یا نفیر اي خدایه که ته هلاکه کړي دغه ډله د علیه الصلوة والسلام مراد ځندي ځان او اصحاب وه لاتعبد في الارض ستا عبادت به بیا نه کېږي په مځکه کي، نو همېشه د علیه الصلوة والسلام داغه ناري وې پر خدای ﷻ باندي لاسونه یې د قبلې پر خوا پورته کړي وه حتی چي پټو یې له ورو ځخه ولوېدی. نو ده ته ابوبکر ﷺ ورغلی پټو یې پر ورو بېرته ورواچاوه او بیا یې د شا له خوا په ځان پوري تینګ کړی او ورته وه یې ویل کافي دی زاری او عجز ستا و خدای ﷻ ته، ولي چي خدای ﷻ به ژر پوره کړي هغه شی چي د تا سره یې وعده کړې وه چي عبارت د نصرت دی پر مشرکانو، په یوه روایت کي داسي هم راغلي دي چي حضور اکرم ﷺ چي زغره یې هم اغوستې وه چټک ولاړ سو او داسي یې وويل.

اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ رَبَّكُمْ

په یاد کړه هغه وخت چي تاسي طلب د غوث یعني معونت او د فوز یعني برې او د نصر کاوه له خدایه ځخه ستاسي.

**پوه سه:** چي "اذ" منصوب دی په اذکر مقدر سره.

چون فرود آید بلا بی دافعی ............ جز تضرع نبود دیگر شافعی

فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي مُمِدُّكُم بِأَلْفٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُرْدِفِينَ ⑨

نو قبلونه يې وکړه تاسي لره يعني ستاسې د مرستې غوښتنې انې اى بانى بحذف الجار چې زه مدد کوونکی يم ستاسي په يو زر ملکو سره چې مردفين به وي يعني يو تر بل وروسته به نازلېږي، نو ګويا هره وروسته ملکه رديف ده د ملکې الى ان ينتهى الى الالف په صحيح حديث کې راغلي چې عليه الصلوة والسلام يو ګړى بيده سو په کوډل کې يعني له لږ ګيو څخه جوړه سوې منا، بيا رابيدار سو. نو ابو بکر ﷺ چې دلته ورته ناست ؤ وه يې ويل چې په هيئت د بشر جبرائيل ﷺ چې مول يې وهلى ؤ په لنګوټه سره چې رنګ يې زېړ د آخذ بعنان فرسه الى اخير الحديث.

وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ وَلِتَطْمَئِنَّ بِهِ قُلُوبُكُمْ ۚ وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِندِ اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ⑩

او نه دى دا امداد د ملکو مګر ته لپاره د خوشالۍ ستاسي او د دې لپاره چې ستاسي زړونه ارام سي چې زموږ سره زر ملکي ملګري دي، نو موږ حتماً پر کفارو غالبه کېږو، ولې چې عادت دى چې د ډېر خلګ پر لږ خلګو غالبه کېږي او نه دى کومک مګر د خداى ﷻ له جانبه څخه په تحقيق خداى ﷻ غالب دى او خاوند د حکمت دى هر کار چې کوي.

**تنبيه**: د نبي ﷺ د حال مثال په بدر کې چې مضطرب الحال ؤ او خداى ﷻ ته يې ډېرې زارۍ کولې وروسته تر دې چې خداى ﷻ د نصرت وعده هم ورسره کړې هم وه داسې ؤ لکه حال د ابراهيم ﷺ حيث قال "وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَىٰ ۖ قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِن ۖ قَالَ بَلَىٰ وَلَٰكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِي"

شجاعت نبوي ﷺ: صحابه کرام ﷺ وايي چې د نبي ﷺ شجاعت دومره اندازه ؤ چې موږ په جنګ کې د بدر نژدې ومشرکينو ته تر عليه الصلوة والسلام نه دى ليدلى او ډېر سخت جنګ يې هم کاوه لو شوقه بنصره تعالى.

دعايي ضعيفان اميدوار ............ زبازوى مردى به آيد بکار

پر حديث نبوي اعتماد: شيخ اكبر محي الدين ابن العربي په فتوحات مكيه
كي وايي چي زموږ په وخت كي يو سړی د جذام يعني آتشک په مرض مبتلا و
اعاذنا الله منه، نو طبيبانو ټولو وده ته ويلي وه چي ستا د مرض هيڅ علاج
نسته، نو يو محدث چي سعد سعود يې ورته ويل چي دی محدث ايمان كامل
پر قول او پر حديث د عليه الصلوة والسلام درلودی، جذام والا ته يې وويل چي
ته ولي د خپل مرض علاج نه كوې، هغه ورته وويل چي طبيبانو په اتفاق ماته
ويلي دي چي چونكه ستا جذام د پای درجې ته رسېدلی دی. نو علاج يې امكان
نه لري سعد السعود ﷺ ورته وويل طبيبان دروغ وايي والنبي ﷺ احذق او
نبي ﷺ ويلي دي چي حبة السوداً يعني په عربي يې شونيز هم بولي او په
فارسي يې سياه دانه بولي او په اردو يې كلونجي بولي او په پښتو يې توروانجه
بولي شفاً لكل داً د هر مرض شفاً ده ستا مرض جذام خو هم په كل داً كي داخل
دی. جذامي ته يې وويل ورسه حبة السوداً او عسل راوړه هغه چي ورته راوړه
جذامي يې سر تر نوكه پوري په ولاړه يعني مخ او سر تر پښو پوري او يو څه يې
د خوراک لپاره وركړه او يو ساعت قدر يې مريض پرېښو. بيا شيخ مذكور
جذامي ته غسل وركړی له مريض څخه پخوانی پوست ټوله وختی او نوی
پوست يې پر بدن پيدا سو او هغه وېښان چي د مريض تویی سوي وه نوي
وېښتان په قدرت د خدای ﷻ په ځای كي پيدا سوه وبرء وعاد الى ماكان عليه
قبل المرض فتعجب الاطباً والناس قوة ايمانه بالحديث النبوي ﷺ. تجربة
العبد في الاعتقاد والتقين المحكم بالحديث النبوي، زه تخميناً څلوېښت كاله
دمخه مي په معده كي يوه لويه دانه پيدا سوې وه يو وار له كندهار څخه وكوټي
ته راغلم يوه مياشت مي په سيول هسپتان كي تېره كړه او ډېري روپۍ مي هم
مصرف كړې لكن علاج ونه سو، كندهار ته چي ولاړم هغه زه هغه مي تكليف.
وروسته كابل او د ابن سينا هسپتال كي داخل سوم چي د جراحي لوی ډاكټر يې
امريكايي و، قصه به لنډه كړو، خو هغه ډېر لوی آفرېشن يې راوكړی لكن
كاميابه سو چونكه دوې مياشتي زه په هسپتال كي پاته وم، نو ځيني نرساني

ښځي چي د مريضانو خدمت به يې کاوه چونکه ما لمونځ اودس کاوه او عائذين
مي د پر وه ددې نرسانو پر ما د ښه سړي ګمان ؤ يو وخت دوی راته وويل چي ماته
د فلاني شي تعويذ راوکړه، خير ما چي به ورکړی هغه به خدای ﷻ ښه ولګاوه
ثم وثم حتى د وزير اکبر خان د هسپتال ښځي او نر به تعويذو ته راتله، او اوازه
سوه چي په ابن سينا کي يو بزرگ ملا سته چي تعويذ يې خطا نه لري، خير خو
يو نفر ؤ له هيرات څخه يې خپل پښغله لور د داخلي امراضو په داخلي شعبه کي
د هسپتال داخله کړه، ناجوړي هر څه چي وه له هغې ناجوړی څخه خدای ﷻ
جوړه کړه، لکن په دواړو سترګو ړنده سوه هر څه چي ډاکټرانو يې علاج وکړی
سترګي يې نه سوې بينا، يو چا ورته وويل چي په جراحي کي ملا سته يعني
درويش ته يې اشاره وه، هغه ته يې راولـه ګوندي هغه يې يو علاج وکړي خو
پلار يې ماته راغلی، زه چي ورسته ورغلم د ښځي روغي سترګي دي لکن شی
نه په ويني، نو زما د بخاري شريفي هغه حديث راپه ياد سو "الکمائة من المن
ومائها شفاً للعين" پر دې قول مي ټينګ يقين ؤ د نجلۍ پلار ته مي وويل چي
بازار ته ولاړ سه يو څو داني پوڅکۍ ماته راوړه، خير هغه بازار ته ولاړی لندې
پوڅکۍ خو نه وې وچي پوڅکۍ يې راوړې، نو ما د خاصې په تبوکر کي غوټه
کړې او په اوبو کي مي کښېښولې، سهار مي هغه پوڅکۍ سره کښې کښلې
چي اوبه څنډي راووتلې، نو ما خدای ﷻ ته دا خواست کاوه اشف عيني هذه
المرئة وصدق رسولک فيما قال، نو ورغلم د نجلۍ په سترګو کي مي درې درې
څکه ورواچول تقريباً تر يوې هفتې دا کار دوام درلودی او په فضل د ذوالجلال
والاکرام د هغې نجلۍ دواړې سترګي بيرته بيناً سوې د ټول هسپتال ډاکټران
ورته حيران پاته سوه والله يفعل مايشاً دا وه د درويش شخصي تجربه.

إِذْ يُغَشِّيكُمُ النُّعَاسَ أَمَنَةً مِّنْهُ

**پوه سه:** چي "نعاس" نوم خفيف ته وايي چي په پښتو يې "نوړی" يا پينکی
بولي والمعنی درپياد کړئ دا نعمت چي تاسي به پټولاست نوم خفيف.

**پوښتنه:** دا نوم خفيف نو ولي نعمت دی؟

**ځواب:** په داسي حال کي چي درې سوه دیارلس کسه په مقابل کې د زرو کسو قرار لري او هر ګړی د شپې او د ورځي د قریشو د حملې احتمال موجود و نو نوم خفیف نعمت عظیم دی. نو ځکه خدای پاک وایي دا امن ؤ ستاسي په زړو کي د خدای ﷻ له جانبه.

وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ السَّمَآءِ مَآءً لِّيُطَهِّرَكُم بِهِۦ وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَٰنِ وَلِيَرْبِطَ عَلَىٰ قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الْأَقْدَامَ ﴿۱۱﴾

**پوه سه:** چي "وینزل" عطف دی پر "اذ یغشیکم الله" باندي، او دا بل نعمت د خدای ﷻ دی چي د بدر مسلمانانو ته خدای پاک ورکړی او نازل کړی خدای پاک پر تاسي باندي اوبه د اسمان له خوا څخه. ینزل چي باب د تفعیل دی اشاره ودې ته ده چي پر کرار کرار ډول اوبه له اسمانه پر تاسي نازلي کړې بخلاف الکفار کمامر في القصة چي تاسي یې پاک کړلاست د اوداسه او غسل لپاره او ستاسي څخه لیري کړي وسوسه دشیطان کمامر في بیان القصة نو زړونه به مو محکم سي و جنګ ته چي دا معجزه تاسي ولیدل او پښې به مو په ریګو کي ټینګي سي کل ذالک قد مر في بیان القصة. بیت

دلاور عاشقی ثابت قدم باش......... که درین ره نباشد کار بی اجر
علی المرء ان یسعی لتحسین حاله......... ولیس علیه ان یساعده الدهر
توانگرا دل درویش خوبدست آوره...... که مخزن زر و گنج درم خواهد ماند

إِذْ يُوحِي رَبُّكَ إِلَى الْمَلَٰٓئِكَةِ أَنِّي مَعَكُمْ

چي وحي وکړي هغو ملکو ته چي لپاره د امداد د مسلمانانو یې را استولي وې چي زه ستاسي ملګری یم په اعانت کي د مؤمنینو.

**پوه سه:** چي له "معکم" څخه دا مطلب نه دی چي د ملکو له زره څخه بېرته وځي له کافرانو څخه. ولي ملکي خو د کافرانو څخه نه بېرېږي بلکې صرف تعظیم د امر د مسلمانانو.

فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا

تاسي ټينګ کړئ جهاد الذين آمنوا بمحاربة اعدائهم وتكثير سوادهم او زړې د نصرت ورته وکړئ. مقاتل رحمه الله وايي ملکه په صورت د بشر ده د مسلمانانو د صف تر شا به روانه وه او دا به يې ويل ابشروا فان الله ناصركم.

سَأُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ

ژر دی چي زه به واچوم په زړو کي د هغو کسانو چي د کفر په فعل اخته وي رعب.

**پوه سه**: چي رعب امتلاء القلب من الخوف يعني الخوف من المؤمنين. نو تاسي وهئ دوی تر غاړي سربېره يعني پر سر باندي او تاسي وهئ له دوی څخه پر بندو د ګوتو کما قال الله تعالی.

فَاضْرِبُوا فَوْقَ الْأَعْنَاقِ وَاضْرِبُوا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ

**درويش وايي**: چي د فاضربوا مخاطب څوک دي، تفسير مظهري وايي چي مخاطب ملکي دي، او مظهري رحمه الله ډېر احاديث راوړي دي چي ملکو په بدر کي جنګ کاوه او بعض مشرکان د ملکو په لاس مړه او قتل سوي دي فارجع الى التفسير المظهري وطالع تلك الاحاديث فان في نقلها اطناب لا يليق بموضوع هذا لتفسير يعني تفسير ايوبي. او د روح المعاني ميل هم ودغه ته دی چي مخاطبين ملکي دي او دوی قتل د کفارو کړی دی. وروسته روح المعاني په قيل سره دا قول راوړی دی چي مخاطب مؤمنان دي او په اخير کي يې ولي دي وهذا القول اضعف الاقوال آه. او روح البيان وايي "فاضربوا" سره مخاطب مؤمنان دي فلا دلالة فيها على قتال الملائكة انتهى.

**پوښتنه**: که ملکو جنګ کولای او دوی هم زر نفره وي کما نطق به القرآن. نو دا زر ملکي خو کافي وي د زرو کسو مشرکانو د وژلو لپاره، نو بدري مسلمانانو ته ولي لوړ مقام ورپه برخه سو. او بله پوښتنه داده چي په بدر کي څورلس کسه مسلمانان شهيدان سوله نو ملکو دا کسان له مرګه نه سوه خلاصولای.

**ځواب**: والجواب الفيصل لحل هذا الاشكال چي يقيناً مخاطب په



Scanned by CamScanner

فاصبروا آه کي ملکي دي او قول د روح البيان چي مخاطب د فاصبروا مؤمنان دي ضعيف دی کما صرح به صاحب روح المعاني. لکن دا خبره هم غلطه ده چي زړو ملکو په تمام قوت سره جنګ کاوه بلکې خدای ﷻ خو ملکو ته داسي وويل فثبتوا الذين آمنوا يا په تکثير د جماعت د مسلمانانو او يا د زړونو د نصرت ناري پر وهي، او هغه احاديث چي مظهري راوړي دي هم پر دې دلالت نه کوي چي ملکو په استيعاب کلي جنګ کاوه بلکې په هغو احاديثو کي داسي راغلي دي چي يو صحابي وايي چي ما د يو مشرک د قتل اراده وکړه چي زه به نه وم ور رسېدلی د هغه سر به چا پرې کړی دغه د ملکو قتل ؤ. حاصل دادی چي ملکو جزوي جنګ ددې لپاره کاوه چي د مؤمنان زړونه داده شي چي زموږ سره ملکي راسره دي نو شجاعت يې نور زياتېدی او په هغه احاديثو کي دا هم راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام و جبرائيل ﷺ ته وويل چي دا کومه ملکه وه چي پر آس يې زغ اقدم يا حلزوم او د کافر سر قطعه سو؟ جبرائيل ورته وويل چي زه خو يې نه پېژنم، نو جنګ کلي د بدر غازيانو او دلاوره صحابه کرامو ﷺ وکړی څکه يې څورلس کسه شهيدان ورکړه لکن د مسلمانانو د زړونو قوت مزيد شجاعت په ملکو سره ؤ چي دوی يې اثار وليدل.

**درويش وايي:** چي دا تحقيق، تفصيل او حل د ټولو سوالو او توهماتو د بعض الناس به په مطاوئ کي تفاسير عظام به راسي ولله المحمد الذي وفقني لهذا التحقيق الانيق وما انا بهذا التحقيق مفتخر بل لتوفيق الله اياي مظهر. وانما الاعمال بالنيات حديث صحيح رواه البخاري.

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَآقُّوا اللّٰهَ وَرَسُولَهُۥ

اشاره وضرب ته ده والامر به والخطاب لرسوله ﷺ (ذالک مبتدأ ده خبر يې دا وروسته جمله ده) په سبب ددې دی چي دوی يعني کفارو د قريشو عناد کاوه له خدای ﷻ او له رسول ﷺ سره.

وَمَنْ يُشَاقِقِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۱۳﴾

**پوه سه**: چي ربط د خبر چي "فان الله آه" په من موصوله چي متضمن معنا لره د شرط دی په حذف د عائد دی یعني "لهم" دی، والتقدیر فان الله شدید العقاب لهم.

ذٰلِكُمْ فَذُوْقُوْهُ وَاَنَّ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۴﴾

تاسي څکئ یعني ورېږي یاست، او په تحقیق کافرانو لره عذاب د اور دی.

**پوه سه**: چي دا خطاب د کفارو سره دی علی طریقة الالتفات من الغیبة الی الخطاب او محلاً مرفوع دی په حذف د مبتدأ ای الأمر ذالکم "واو" په معنی د مع دی ای ذوقوا ماعجل لکم في الدنیا مع ما احل لکم في الآخرة وهو عذاب النار.

**مسئله**: مسلمان ته که یو څه عذاب ورکړل سي یعني په دنیا کي په سبب د معصیت دده، نو هغه کفاره ده ولایعذب بها في الآخرة ان شآ الله. د علي رضي الله عنه روایت دی چي ده خلګو ته وویل الا انبئکم بافضل آیة في القرآن صدقنا بها رسول الله ﷺ وما اصابکم من مصیبة فبما کسبت ایدیکم ویعفو عن کثیر "علیه الصلوٰة والسلام وویل چي زه به ژر ددې آیت تفسیر درته بیان کړم، یا علي ما اصابک من مرض او عقوبة او بلاء في الدنیا بما کسبت ایدیکم والله ﷻ اکرم من ان یثنی علیهم العقوبة وما عفی الله عنه في الدنیا فالله احکم من ان یعود بعد عفوه.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا لَقِيْتُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوْهُمُ الْاَدْبَارَ ﴿۱۵﴾

اې هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی چي تاسي ملاقي سئ د الذین کفروا په زحفاً سره، نو به ور ګرځوئ ودوی ته شاوي.

**پوه سه**: چي زحفاً مصدر دی حال د فاعل او مفعول د لقیتم الذین آه. نو په معنا د متزاحفین دی. یعني مسلمانان او کافران چي په جنګ کي ببخي سره نژدې سي. د "زحف" اصل معنی پر کونه ښکېدل د کوچني.

**پوه سه**: چي چونکه "زحفاً" مصدر دی نو ځکه یې جمع نه کړی. نو تاسي مه ګرځوئ شاوي خپلي ودوی ته یعني کفارو ته د شکست او تېښتي پر دول.

**مسئله**: مراد له زحف څخه تېښته ده له جنګه چي ګناه کبیره ده عند اکثر اهل

العلم وبه قال الائمة الاربعة رحمهم الله. لكن دا هلته ګناه کبیره ده چې مسلمانان پر نیمايي د کافرانو وي، او که اکثر یا تر نیمايي کم وه یا ثلث د کفارو وه یا ربع یا تولی روا ده ګناه کبیره نه ده، قوله تعالی "الآن خفف الله عنکم وعلم ان فیکم ضعفاً فان کان منکم مائة صابرة یغلبوا مائتین الآية. عطأ بن ابي رباح رحمه الله وايي چې اول آیت پر اطلاق دی لکن منسوخ دی په دې آیت الآن خفف الله عنکم.

وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُۥٓ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَىٰ فِئَةٍ فَقَدْ بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَمَأْوَىٰهُ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴿١٦﴾

او که څوک وروګرځوي و کفارو ته په دغه ورځ شا یعنې د جنګ په ورځ في حال من الاحوال فالاستثنا مفرغ مګر نه چې دی جنګ ته حیله جوړوي یعنې چې ظاهراً دښمن ته دا په نظر ورکوي چې ما شکست وکړی نو دښمنان چې ده ته رانژدې سي چې حمله پر وکړي دی نابیره حمله پر وکړي او قتل یې کړي یعنې داسي شا ګرځول روا دی، ولي چې دا خو په حقیقت کي فرار نه دی، عربي تعبیر یې دادی یریه الفر وهو یرید الکر غرة، او یا ځان رسوي و جماعت ته د مسلمانانو یو ګړی ځان وسا کوي او بیرته جنګ ته عود کوي، ولي دا خو هم فرار نه دی، نو که دغه دوه حاله نه وي او شا وګرځوي فقد بأ نو یې رجوع وکړه متلبساً په غضب د خدای جل جلاله او ځای یې جهنم دی او بد ځای د ورتلونکو دی جنهم.

**مسئله**: په کفارو سره په جنګ کي هر چم او حیله روا ده مثلاً کافر پر مسلمان ټک وکړي مګر مردګ دده د غوږ سره تېر سو مسلمان ځان مځکي ته ایله کړي چې زه خو سخت وویشتل سوم. نو چې هغه پر رامیدان کړه چې توپک وغیره ځندي تر لاسه کړي نو په دې وخت کي دہ ټک پر وکړی او مړ یې کړی. مګر غدر نه دی روا چې کافر ته ووايي چې راسه تاته آمان درکوم هغه چې راسي دی یې مړ کړي والفرق ظاهر عند التامل في الامثلة.

**فائده**: علما کرامو رحمهم الله کبیره ګنهونه تر اوویا پوري رسولي دي چې یو یې له هغو څخه فرار عن الزحف ګڼلی دی کما یدل هذه الآية صراحةً.

**یوه سه**: چې څه وخت چې مسلمانان د بدر له جنګه فارغه سوه، نو یوه به ویل چې

ما فلانی مشرک مړی کړی بل به ویل چي ما فلانی قتل کړی، نو دا آیت نازل سو.

فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ قَتَلَهُمْ

تاسي کفار نه دي وژلي يعني په خپل طاقت سره بلکي خدای پاک دوی ووژل په حقیقت کي چي امداد د ملکو يې درواستاوه او ستاسي زړونه يې قوي کړه او د کفارو په زړونو کي يې رعب واچاوه.

**فائده**: کلمه د فا جزا د شرط محذوفه ده والتقدير ان افتخرتم بقتل الكفار فقد اخطأتم في هذا الافتخار لانكم لم تقتلوهم ولكن الله قتلهم.

**درویش وایي**: چي په صحیح روایت کي راغلي دي چي قریش چي پر عقنقل چي د یوې غونډۍ نوم دی راوختل او د شېلې پر خوا راروان سوه علیه الصلوٰة والسلام وویل هذه قريش بخيلائها وفخرها يكذبون رسولك يريد نفسه المباركة ﷺ اللهم اني اسئلك ما وعدتني. مراد يې نصرت پر اعداؤ، نو جبرئیل ورته راغلی او ورته وه یې ویل چي ته یو موټ له خاورو ځخه راواخله او دوی په وولہ. نو ځه وخت چي قریش او مسلمانان سره مخامخ سوه علیه الصلوٰة والسلام، وعلي ﷺ ته وویل اعطني من حصباً الوادي فرمى بها في وجوههم وقال شاهت الوجوه ای قبحت" نو یو ددغو زړو کسانو د قریشو نه سو پاته چي دغه شیګي یې په سترګو او غوږو کي نه وي لوېدلي. نو قریشو شکست وکړی مسلمانان په پسې سول وژل یې او بندي کول یې. فنزلت هذه الآية

وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ

تا ویشتل نه دي کړي یا محمد ﷺ اذ رمیت حقیقةً وتاثیراً. یعني صورةً وظاهراً. لکن خدای ﷻ ویشتل وکړه. ولي رسېدل د یوه موټ شګو سترګو او غوږو ته د زړو کسانو رسول د طاقت بشري له امکان ځخه خارج دی. بل هو من شان خالق القوى القدر دی.

**دقیقه**: په دمخه آیت کي چي تفاخر ځیني کسانو کاوه چي ما فلانی مشرک قتل کړی، او د خدای ﷻ فخر نه دی خوښ. نو په هغه آیت کي یې نفي د قتل له دوی ځخه وکړه حيث قال "فلم تقتلوهم" او په دې ځای کي چي علیه الصلوٰة

والسلام د عجز او انکسار لار خپله کړه خدای پاک نفي د رمي له ده څخه نه وکړې بلکې وه یې ویل "اذ رمیت" بایزید بسطامي قدس سره وایي.

چاز چیز آورده ام شاها که در گنج تو نیست
عاجزی و مسکینی فقر و گناه آورده ام

**درویش وایي:** چي دا د رمي واقعه هغه وخت منځ ته راغله چي د مسلمانانو او مشرکانو صفونه بیخي سره نژدې سوه، له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چي بخاري هم راوړی دی وایي چي زه په صف کي ولاړ وم، یوه بغل ته چي مي وکتل یو ښائسته ځوان ولاړ دی او پر بل اړخ مي هم تنکی ځوان ولاړ دی، زما په زړه کي دا اندېښنه سوه چي دا دوه هلکان خو بې تجربې دي یعني د جنګ تریخ خوند یې نه دی څکلی، که ماز ي جنګ شروع سو نو دا دواړه ځوانان زما اړخ خالي کوي فتمنیت ان اکون بین اضلع منهما، زما تمنا وه چي کاشکي د یوه قوي سړي په اړخ کي ولاړ وای تر دغو دوو هلکانو چي په عین حال کي یوه ځوان پټ راته وویل، هل تعرف اباجهل، ما ورته وویل یا ابن اخي ته ابو جهل څه کوې؟ ده راته وویل چي ما اورېدلي دي چي دی و علیه الصلوٰة والسلام ته تکذیب کوي او بنکنځل هم ورته کوي، نو ما چي له کوره توره راواخستل په زړه کي مي دا وه چي که ما ابو جهل وپېژندی زه به له ده څخه جلا نسم حتی چي د هر یوه اجل دمخه ؤ هغه به وژل کېږي یعني که زه وم او که ابو جهل، ما چي وده ته د جواب اراده وکړه، نو د دا بل اړخ ځوان هم پټ ورته خبره راته وکړه، نو ابو جهل په خپل لښکر کي ولاړ ؤ ما دغو دوو ځوانانو ته وویل هغه سړی ګوره هغه ابو جهل دی، دوی د مسلمانانو له لښکر څخه په ابو جهل پسي په هوا لکه بازان چي په کوترې پسې خې ورغله او هورې دواړو ابو جهل په توره وواهه، ابو جهل چپه سو دوی دواړه بیر ته سالم له منځه څخه د کفارو راووتل توري یې د ابو جهل په وینو سرې وې الی اخیر القصة.

وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا

چي خدای جل جلاله نعمت ورکړي و مسلمانانو ته د هغه فعل په سبب چي په بدر کي پر دوی راغلی نعمت عظیمة في الدنیا من المغانم وفي الآخرة نعیماً مقیماً دائماً.

**پوه سه:** چي "ليبلي آه" معطوف دی پر محذوف باندي، والتقدير فعل ما فعل ليظهر دينه ويقهر اعدائه وليبلي آه.

**پوښتنه:** خدای ﷻ خو پر دې قادر ؤ چي کفار يې هلاک کړي وای پېله جهاده د مؤمنانو او پېله قتاله ددوی او پېله د امداد د ملکو. او بله پوښتنه داده چي يوه ملکه د ملکو د خدای ﷻ کافي وه په اهلاک کي د کفارو کما في اهلاک بعض الکافرين في الامم السابقة قال الله تعالى في شان اهلاک قوم من الکافرين انکانت الا صيحة واحدة فاذا هم خامدون" نو څه فائده وه په امداد د زرو ملکو وروسته بيا د پينځو زرو ملکو؟

**ځواب:** دغه آيت ځواب دی ددې تېولو توهماتو لپاره. وحاصل الجواب چي موږ داسي وکړه دا احسان د خدای ﷻ ؤ پر مؤمنانو باندي چي اجر او ثواب پيدا کړي او نصرت پر اعداً الدين او الفت په منځ کي د ملکو او مجاهدينو کي راسي، او که خدای پاک په خپل قدرت سره کفار د بدر وژلي وای او يا په صيحت د يوې ملکي ولم يبق من المشرکين احد. مانال المؤمنون اجر الجهاد والشهادة والغنيمة والفضل وايضاً مانال الملائکة ذالک الفضل الحاصل لهم في امداد المؤمنين.

**ښهانه فائده:** في فضائل اهل البدر، بخاري له زمعة بن رافع رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي جبرئيل راغلی و عليه الصلوٰة والسلام ته او ورته وه يې ويل چي ته څرنګه درجه ورکوې و اهل بدر ته په مسلمانانو کي؟ عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چي موږ يې افضل د مسلمانانو بولو. جبرئيل ورته وويل کذالک من شهد بدراً من الملائکة. او امام احمد رحمه الله له حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي رسول الله ﷺ وويل لن يدخل النار رجل شهد بدراً والحديبية. او ابو داؤد او ابن ماجه روايت کړی دی له ابو هريره رضي الله عنه څخه قال رسول الله ﷺ چي زما اميد دی چي نه به سي داخل و اور ته ان شا الله احد ممن شهد بدراً او الحديبية.

**درويش وايي:** چي نور ډېر احاديث په فضائلو کي د اهل بدر راغلي دي وفي نقل کلها خوف الاطناب.

**فائده**: تنبیه! درویش وایي چي اهل تجربه د اولیاء الله رحمهم الله وایي که څوک نومان د اهل بدر پر هغه ترتیب چي په بخاري شریف کي مذکور دي ولیکي او غسل په وکړي او دوه رکعته نفل هم وکړي او یو څه خوشبویي هم استعمال کړي، نو هغه نومان نوشته کړي او درې پوښه د پاکي جامي هر رنګ چي وي ورکړي او وروسته د ساخت پوښ هم ورکړي مګر نه د موچي په لاس. ولي چي هغه لوی تعویز نه ګنڼي د خپل وهم څخه چي پر ما تاثیر ونه کړي دوه درې واره نیره په تعویز کي دننه ښوروي چي بعض الفاظ خراب سي، بلکي په ډېر احتیاط سره دي په خپله په چمړه کي پوښ کړي او پر راسته موټ دي وتړي ان شاء الله تعالی هیڅ سلاح به تاثیر پر ونه کړي او د سرو مردکو په منځ کي به خدای ﷻ نجات ورکړي.

**تنبیه**: دا عمل مخصوص دی په مجاهدین في سبیل الله پوري وه غله یا ناحقه بدي دار ته هیڅ فائده نه کوي. او څوک چي دا عمل کوي باید چي پر خدای ﷻ یې یقین کامل وي لکه درې سوه دیارلس مسلمانان چي یې د زرو کسو څخه خلاص کړه او اوویا کسه یې په شمول د ابو جهل مردار کړه او اوویا کسه یې په حصارت ونیول او ملکي یې ورته راواستولې، او دا به یې یقین وي چي ماته به هم پر کافرانو خدای ﷻ کومک راکړي او دوی ته به هزیمت او شکست ورکړي.

**تتمة قتل ابو جهل**: درویش وایي چي موږ دمخه ذکر کړه په روایت د ابن مسعود رضي الله عنه چي ابو جهل دوو تنکیو ځوانانو په خپل لښکر کي په توره ووهه او چپه یې کړی لکن مړ نه ؤ. دا دوه ځوانان یو معاذ او بل معوذ ابنی عفرا رضي الله عنهما وه دا دوه ځوانان راغله و علیه الصلوٰة والسلام ته یې وویل چي موږ ابو جهل مړ کړی یعني ددوی په خیال یوه ویل ما مړ کړی بل ویل ما قتل کړی، علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل هل مسحتما سیفیکما تاسي خپل توري له وینو څخه پاکي کړي دي دوی ورته وویل یا، علیه الصلوٰة والسلام چي توري وکتلې داسي یې ورته وویل کلاکما قتلهما ولي چي اثر د وینو پر دوارو تورو باندي ؤ ولکن سلب یې د معاذ دی، ولي چي د هغه توره ډېره په بدن کي د ابو جهل ښخه سوې وه.

بخاري رحمه الله روايت کړی دی له انس بن مالک رضي الله عنه څخه چي عليه الصلوٰة والسلام د بدر په ورځ وويل چي څوک به وګوري چي د ابو جهل حال څرنګه سوی دی، نو ابن مسعود رضي الله عنه پسي ورغلی او ابو جهل يې پيدا کړی مړ خو نه ؤ لکن اخيري نښته د ژوند يې وه، نو يې تر بيره ونيوی او ورته وه يې ويل انت ابو جهل، ابو جهل ورته وه يې ويل هل فوق رجل قتلتموه او توره ورته پرته وه په هغه توري مي سر ور پرې کړی. او قاضي عياض رحمه الله په شفا کي وايي چي ابو جهل په هغه ورځ چي ابنی عفرا پرده حمله وکړه ده په توره د معوذ بن عفرا لاس غوڅ وروپرې کړی ؤ، نو معوذ خپل لاس په لاس کي را اخستی ؤ و عليه الصلوٰة والسلام ته د خپل پرې سوي لاس سره راغلی، نو عليه الصلوٰة والسلام يې پر پرې سوي ځای ورتوه کړه او هغه جلا سوې ټوټه يې پوري ونيوله لاس يې بيرته سم لاس سو. وهذه معجزة جليلة او شفا د قاضي عياض په حديثو کي د اعتماد وړ کتاب دی.

**درويش وايي**: چي دا يوه حيرت انګيزه معجزه د آنحضرت ﷺ وه.

**إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ**

په تحقيق خدای ﷻ اورېدونکی دی يعني لا بجارحة السمع لعدم کونه تعالی جسماً فمرجعه الی العلم بالمسموعات يعني په استغاثه د مؤمنانو او په دعاؤ ودوی خبر دی په قلة ددوی.

**ذَٰلِكُمْ وَأَنَّ اللَّهَ مُوهِنُ كَيْدِ الْكَافِرِينَ**

"ذالکم" يا اشاره و بلاً حسن ته ده يا قتل د کفارو يا رمي بالحصی ته ده، او په تحقيق خدای ﷻ ضعيف کونکی د حيلو د کافرانو دی چي کفار قريش دلته څندي مراد دي.

**يوه سه**: چي ذالکم مرفوع محلاً دی خبر يې محذوف دی ای المشار اليه بذالکم حق.

**إِن تَسْتَفْتِحُوا فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ وَإِن تَنتَهُوا فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ**

که تاسي اې مؤمنانو طلب د فتح کوئ پر کفارو د قريشو نو فتح راغله تاسي ته چي قتل د ابو جهل دی سره د اوويا کسانو، او که تاسي ای کافرانو د مکې له

شرک بالله څخه او له قتال څخه د نبي د خدای منع سئ دا تاسي لره خیر دی یعني په دنیا او اخیرت کي.

وَإِن تَعُودُوا نَعُدْ

او که تاسي بیا و قتال ته د نبي ﷺ اماده سئ زه به هم لکه په بدر کي د خپل نبي او مؤمنانو ته راوګرځم یعني بیا لکه په بدر کي امداد به ورسره وکړم.

وَلَن تُغْنِيَ عَنكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْئًا وَلَوْ كَثُرَتْ وَأَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٩﴾

او هر ګز فائده نه کوي یعني دفع نه سي کولای ستاسي جماعت تاسي ته هیڅ شی که څه هم جماعت ډېر وي، او په تحقیق خدای پاک معاون دی د مؤمنانو والمعاونة هي المراد بالمعية کما لایخفی.

**یوه سه:** چي بعض مفسرین لکه روح البیان وایي چي خطاب د ان تستفتحوا خطاب د مشرکینو ته د مکې دی، له عکرمه ﷺ څخه روایت دی چي د مکې مشرکینو به ویل ما نعرف ماجاً به محمد فافتح بیننا وبینه بالحق موږ نه پېژنو هغه دین چي محمد راتګ په کړی دی، نو ته خدایه فیصله وکړې زموږ او دده تر منځ په حق سره یعنون چي هر یو پر حق وي هغه ته غلبه ورکړې پر جانب مقابل باندي، نو پر دې تقدیر ترجمه د آیت داسي ده "که تاسي چېري زما قضاوت او فیصله غواړئ هغه قضاوت وتاسي ته ورسېدی په بدر کي. ولي حق په جانب کي د محمد ﷺ ؤ نو ستاسي د وینا سره سم ما و محمد ﷺ ته بری ورکړی او تاسي ته شکست په نصیب سو. فهذا قضائي الذي تطلبونه.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَأَنتُمْ تَسْمَعُونَ ﴿٢٠﴾

اې هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی تاسي فرمان برداري کوئ د الله او د رسول دده او تاسي مخ مه اړوئ یعني نافرماني مه کوئ د رسول د خدای او حال دادی چي تاسي اورئ قرآن او مواعظ او تاسي یې تصدیق هم کوئ.

**یوښتنه:** په آیت کي خدای او رسول ذکر سوه، نو ضمیر یې ولي مفرد راوړی؟

**ځواب:** اصل مقصود په ایت کي امر په اطاعت سره د رسول ﷺ والنهي عن الاعراض عنه. او ذکر د خدای ﷻ لپاره د تنبیه پر دي چي اطاعت د خدای ﷻ په طاعت کي د رسول ﷺ دی، او ځیني مفسرین رحمهم الله وایي چي ضمیر راجع دی و جهاد ته کما یدل سیاق الآیات السابقة.

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ قَالُوا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ﴿٢١﴾

او تاسي مه ګرځئ لکه هغه کسان چي مراد ځنـدي هغه کسان دي چي دعوی د سماع او تصدیق یې کوله او حال دادی چي دوی نه اورېدی قرآن او خبري د علیه الصلوة والسلام یعني په سماع د قبول قلبي بل سماع ددوی صرف په غوږ وه.

إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ عِنْدَ اللَّهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ ﴿٢٢﴾

په تحقیق سره بد د دوابو ای مایدب علی الارض "الصم" جمع د اصم ده یعني کاڼه یعني چي په سماع قبول شی نه اوري "البکم" جمع د ابکم ده په معنی د ګونګي چي نطق ددوی په کلمه د توحید او په رسالت د علیه الصلوة والسلام د زړه د کومي نه دی وهم المنافقون ایضاً.

وَلَوْ عَلِمَ اللَّهُ فِيهِمْ خَيْرًا لَأَسْمَعَهُمْ ۖ وَلَوْ أَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوْا وَهُمْ مُعْرِضُونَ ﴿٢٣﴾

او که خدای ﷻ په دوی کي د خیر یعني د استعداد د قبول د حق اوکانوا في علمه الازلي من اهل السعادة، نو به دوی اورېدلی وای په سماع د قبول او تفهم. او که چېري خدای ﷻ په دوی اورېدلي وای په سماع د قبول او د خدای په علم ازلي کي دا معلومه وای چي په دوی کي خیر نسته هر آینه به دوی روی ګرداني کړي وای وروسته تر ایمان او تصدیق یعني بیرته به مرتد سوي وای لامتناع تخلف علمه تعالی او دوی به اعراض کونکي وای بعد ظهور الحق عناداً. او بعض مفسرین رحمهم الله وایي چي دوی به علیه الصلوة والسلام ته ویل چي ته موږ ته قصی بن کلاب راژوندی کړه چي یو شیخ مبارک ؤ چي هغه ستا په نبوت سره شاهدي ادا کړي نو موږ به هم ایمان راوړو، نو د آیت ترجمه داسي ده که زه داوروم کلام د قصی لتولوا وهم معرضون عناداً وتکبراً.

**درویش وایي:** چي راوي بیان کوي چي علیه الصلوة والسلام په ځیني

سفرو کې چې صحابه کرامﷺ به هم وسره وه چې یو سړی په مخ کې ورته ودرېدی او ورته وه یې ویل چې زه یو باغ لرم چې زه له هغه باغه د ځان او د عیال نفقه تر لاسه کوم او په دې باغ کې ما اوښې درولي دي چې په دوی به مې له ځاء ځخه اوبه راکښلې او باغ به مې په اوباوه، اوس اوښې راته یاغیاني سوي دي چې وباغ ته ددوی له بېرې نه سم ورتلای که محض وربنکاره سوم غرغرې کړي راپسې میدان کړي له باغه بیرته ځني ووځم، نو علیه الصلوة والسلام له اوښه کښېنته سو او اصحابﷺ هم پیاده ورسره روان سوه د باغ دروازې ته چې ورغله علیه الصلوة والسلام راته وویل چې د باغ دروازه خلاصه کړه ما ورته وویل چې زه له اوښانو ځخه بېرېږم علیه الصلوة والسلام راته وویل چې دروازه خلاصه کړه ماچې خلاصه کړه د اوښانو ترپې او غرغرې سوې د دروازې پر خوا را روان دي اوښانو چې ځرنګه علیه الصلوة والسلام ولیدی چوکې سوې او سرونه یې د علیه الصلوة والسلام پر پښو مبارکو کښېښول علیه الصلوة والسلام تر سروو ونیولې او مالک ته یې په لاس ورکړې او ورته وه یې ویل چې کارونه په کوه لکن ښه ورسره کوه یعنې مناسبه نفقه ورکوه وهذا معجزة له صلعم.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ

اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی تاسې قبولونه کوئ یعنې په طاعت سره د خدای جَلَّ جَلَالُهُ او د رسول چې رسول وبولي تاسې وداسې شي ته چې تاسې په ژوندي کېږئ یعنې تاسې ته فائده وي په اخیرت کې.

**فائده**: سدي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې مراد ایمان دی لان الکافر میت، قتاده رَحِمَهُ اللهُ وايي هو القرآن ولې چې په قرآن سره حیوة القلوب او نجات د دوارېدارینو په قرآن پوري مربوط دی، مجاهد رَحِمَهُ اللهُ وايي هو کل ما یکون حقاً او ابن اسحاق رَحِمَهُ اللهُ وايي هو الجهاد في سبیل الله ولې چې په جهاد سره مسلمانان له ذلت ځخه وعزت ته نقل کېږي او قتبي رَحِمَهُ اللهُ وايي هو الشهادة في سبیل الله لقوله في حق الشهدا بل احیا یرزقون الخ.

**پوه سه**: چې تقید په ما یحییکم سره احترازي نه دی ولې چې تول دعوات

الرسول خو لپاره د ما یحییکم دی بلکې که یې دا تقید لپاره د مدحې دی.

**سوال:** په آیت کې لله وللرسول ذکر سو او په اذا دعاکم کې ضمیر مفرد راوړی؟

**ځواب:** دعوت د خدای ﷻ په دعوت د رسول ﷺ دی نو دا دواړه دعوت ته ویوه ته چې دعوة الرسول راجع دی.

**فائده:** مراد له حیات څخه حیاة القلب وطرد الغفلة عنه لان القلب رئیس جمیع الاعضاً ففي حیوٰته حیوٰة جمیع اجزاٗ الجسد کما ورد في الحدیث النبوي اذا صلحت ای المضغة في الجسد صلح البدن کله الی اخیر الحدیث.

**پوه سه:** چې ترمذي او نسائي یو حدیث له ابي هریرة رضي الله عنه څخه نقل کړی دی چې ترجمه یې داده چې یوه ورځ علیه الصلوة والسلام پر ابی بن کعب تېرېدی او هغه پر لمانځه ولاړ ؤ. علیه الصلوة والسلام راوبولی ابی ژر لمونځ پوره کړی او بیا علیه السلام ته راغلی یعني یو څه وځنډېدی علیه الصلوة والسلام ورته وویل چې څه شي ته منع کړې چې ما دعوت درکړی او ته دستي نه راغلې ابی ورته وویل چې زه پر لمانځه ولاړوم علیه الصلوة والسلام دغه آیت ورته تلاوت کړی "یا ایها الذین آمنوا" تر اخیره پوري، نو ابی ورته وویل لاجرم یا رسول الله لاتدعوني الا اجبت وان کنت مصلیاً.

**مسئله:** ځیني علماٗ کرام رحمهم الله وایي چې اجابت د رسول الله ﷺ لمونځ نه قطع کوي یعني وروسته تر اجابت دي بیرته لمونځ له هغه ځایه شروع کړي. او ځیني علماٗ رحمهم الله وایي که بلنه د علیه السلام د داسي شي لپاره وه چې د هغه تاخیر نه کېدی تر لمانځه تر اخیره پوري فللمصلي ان یقطع الصلوة لاجله والا فلا.

**درویش وایي:** چې امام مظهري رحمه الله په دې مبحث یوه مسئله راوړې ده چې که یو ړوند سړی پر لار روان ؤ او په مخ کې یې څاه ؤ او بل سړی پر لمانځه ولاړ ؤ که مصلي لمونځ قطع نه کړی ړوند وڅاه ته واقع کېږي نو قطع د لمانځه پر هغه واجب ده لانه امر دیني مهم آه، فقیر وایي چې د اجابت د علیه الصلوة والسلام خو خاصه د علیه السلام ده حتی چې په اجابت دده لمونځ نه قطع کېږي بلکې د اجابت سره سره مصلي پر لمانځه دی کما دل علیه الحدیث المذکور او

قطع د لمانځه لپاره د رانده خو واجب ده لکن لمونځ یې فاسد سو بیرته به یې له سره راګرځوي کما ذکره المظهري رحمه الله نو قطع د لمانځه لپاره د اجابت د دعوت د رسول کریم ﷺ او د قطع د لمانځه د رانده لپاره څه فرق دی. نو مظهري رحمه الله چي په تفسیر کي دا مسئله راوړې ده په دي عبارت قیل اجابة الرسول لا یقطع وهو الحق او قیاس د رانده د قطع الصلوة قیاس مع الفارق دی فافهم.

وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللَّهَ يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهِۦ وَأَنَّهُۥٓ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿۲۴﴾

او په دې پوه سئ چي خدای ﷻ حائل دی په منځ کي د سړي او د زړه دده. او په دې پوه سئ چي خاص خدای ﷻ ته تاسي حشر کېږئ یعني په ورځ د قیامت لا الی غیره تعالی ولهذا قدم المجرور علی عامله والحاصل چي حشر ستاسي د خدای ﷻ ته دی لپاره د حساب او جزا د اعمالو فحاسبوا قبل ان تحاسبوا.

**پوه سه:** چي په قاموس کي وایي اذا حجز بین الشیئین فقد حال بینهما په روح البیان کي وایي چي دا تمثیل د غایت قرب د خدای ﷻ او په مابین د زړه د سړي یعني ان الله تعالی اقرب من قلبه منه یعني تر سړي، او په دې تمثیل کي تنبیه ده پر دې چي خدای ﷻ عالم دی پر پټو خبرو د زړو چي شاید سړی له هغو څخه غافله وي ولهذا قال علي رضي الله عنه اللهم اغفرلي ما انت اعلم به مني او یا باعثه کول دي پر دې باندي چي سړی باید تلوار کوي پر اخلاص د زړو او پر پاکولو د زړو د خبیث اعمال القلوب څخه لکه ریا او سمعه دمخه تر دې چي خدای ﷻ حائل ګرځي په منځ کي د زړه او د سړي یعني بالموت. ولهذا قیل موتوا قبل ان تموتوا او یا معنی داده چي خدای ﷻ حائل دی یعني عالم دی په منځ کي د انسان ومایتمناه قلبه من طوال الحیوة، نو له دې سببه په توبه کي د ګناه تاخیر کوي او وایي سوف اتوب او یا سستي کوي په امورو کي د دین. ولهذا علیه الصلوة والسلام به دعا ډېره کوله یا مقلب القلوب ثبت قلبي علی دینک الی اخیر الحدیث. نو مسلمانانو لره په کار ده چي همېشه تضرع او التجا کوي د خدای ﷻ ته خصوصاً چي خاتمه هم مستوره ده. سعدي شیرازي رحمه الله وایي

بجای که دهشت خورد انبیا ......... تو عذر ګناه را چه داری بیا

او مسلم د علیه السلام دا دعا رانقل کړې ده یا مصرف القلوب صرف قلوبنا علی طاعتک.

**درویش وایي:** چي ما په دې دوو حدیثو کي هغه الفاظ د حدیث نه راوړه چي له متشابهاتو څخه وه تاچي زما د تفسیر مطالعه کونکي د حدیثو د الفاظو پر غلطه معنا حمل نه کړي والله یعلم السرائر.

وَاتَّقُوا فِتْنَةً لَّا تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنكُمْ خَاصَّةً

او تاسي ځانونه ساتئ له هغې فتنې یعني مصیبت څخه چي نه رسېږي هغه فتنه یعني عذاب د هغې فتنې و هغو کسانو ته چي دوی ظلم کړی وي یعني هغه مصیت یې کړی وي له تاسي څخه خاص بلکې که عذاب په دنیا کي نازل سي یوازې مرتکب ته د گناه نه رسېږي بلکې عذاب یې عام وي مرتکب ته د گناه او غیر مرتکب ته دواړو ته رسېږي، پښتانه وايي چي ځنګل اور واخلي وچ او لانده دواړه پکښې سوځي فقولهم کانه تفسیر لمضمون هذه الآیة.

**پوه سه:** چي "لاتصیبن" نهی دی مؤکد په نون ثقیله دی کما تقرر في النحو او ضمیر د لاتصیبن راجع دی و "فتنة" ده لکن په تقدیر د قول یعني یقال فیها لاتصیبن او یا نفي دی.

**سوال:** نفي خو په قانون نحوي مؤکد په نون ثقیله نه راځي؟

**ځواب:** دا نفي چونکه په ضمن کي د نهي سته نو ځکه مؤکد په نون ثقیله سوې.

**درویش وایي:** چي قرطبي په خپل تفسیر کي وایي چي خدای ﷻ په بل ځای کي د قرآن مبارک ویلي دي "ولا تزر وازرة وزر اخری" او په بل ځای کي یې ویلي دي "کل نفس بما کسبت رهنیة" او په بل ځای کي یې ویلي دي "لها ماکسبت وعلیها ما اکتسبت" نو ددې آیتو مضمون خو دادی چي د یوه په گناه مواخذه بل نسته، واجاب مسلمانان چي په خپل منځ کي تظاهر د منکر وویني فالفرض علی کل واحد ان یغیره فان سکتوا فکلهم عاص، عاصي په خپل فعل سره او په دې سبب چي رضا په معصیت سره معصیت دی والسکوت دلیل

الرضا او په حکم د خدای ﷻ معصیت او رضا بالمعصیة یو دی فلذا عمم بالعذاب انتهی، عاصي وايي چي اولي ځواب دادی چي آيات مذكوره خاص په احكامو کي د اخرت دی وهذا لعموم في عذاب الدنيا كما قال ابن عباس رضي الله عنهما امر الله المؤمنين ان لا يقروا المنكر بين ايديهم واظهرهم فيعذب ويعمهم بعذاب الظالم وغير الظالم، ابوبکر رضي الله عنه وايي چي تاسي دا آيت واياست "يا ايها الذين آمنوا عليكم انفسكم لا يضركم من ضل اذا اهتديتم" ابوبکر رضي الله عنه وايي چي ما له رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي ده داسي وويل "اذا رؤا الظالم فلم يأخذوا على يديه او شك ان يعمهم الله بعقاب من عنده. دا آيت هم خاص په عذاب پوري د دنيا دی فصح الجواب الاولى الذى مر آنفاً.

وَاعْلَمُوٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۲۵﴾

په تحقيق سره خدای ﷻ سخت دی عذاب دده ای في الدنيا كما دل عليه السباق او في الدنيا والآخرة.

وَاذْكُرُوٓا اِذْ اَنْتُمْ قَلِيْلٌ مُّسْتَضْعَفُوْنَ فِى الْاَرْضِ تَخَافُوْنَ اَنْ يَّتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ فَاٰوٰىكُمْ وَاَيَّدَكُمْ بِنَصْرِهٖ وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۲۶﴾

بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي دا خطاب وه مهاجرينو ته دی، نو ترجمه د آيت داسي ده چي ياد کړئ يا ايها المهاجرون هغه وخت چي تاسي لږ واست يعني في مكة او ضعيف واست في ارض مكة او داسي بېرېدلاست چي خلګ يعني قريش د مکې به مو په يوه حمله له منځه يوسي، نو خدای ﷻ تاسي ته ځای درکړی په مدينه منوره کي عند الهجرة من مكة او تاسي محکمه کړلاست په خپل کومک سره چي انصار د مدينې یې پر تاسي مهربانه کړه لکه ورونه او تاسي ته يې رزق درکړی د پاکو او لذيذو خوړو يعني د انصارو له باغو څخه د خورما ددې لپاره چي تاسي شکر ددې نعمت د خدای ﷻ وواياست، او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي مخاطب ټوله عرب دي چي عرب ټوله ذليل وه په لاسو کي د فارس او روم، او فارسيان او روميان ستاسي ضد وه او ستاسي سره يې عداوت درلودی، نو خدای ﷻ وتاسي ته ماوی او عزت درکړی په بعثت د نبي

اخیرزمان ﷺ په تاسي عربو کي حتی چي رفته رفته محمد عربي ﷺ پر ټولو اهل ملل باندي غالب سو.

**درويش وايي:** چي زما په عقيده ټوله مسلمانانو مخاطب دي که مهاجرين دي او که انصار ﷺ. ولي په مديني او شاوخوا کي د مديني د يهودانو غلبه وه حتى عليه السلام فتح د بني قريضه او د بني النضير وکړه نو په مدينه منوره او شاوخوا کي غلبه د مسلمانانو سوه او يهود مغلوبه يا په قتل ورسېدل لکه بني قريضه او يا يې اذرعا يا اريحا ته د ارض الشام يې وشړل.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَخُونُوا۟ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ وَتَخُونُوٓا۟ أَمَٰنَٰتِكُمْ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٧﴾

اې هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی تاسي خيانت مه کوئ د خدای ﷻ او د رسول ﷺ سره او داسي خيانت مه کوئ په اماناتو چي ستاسي تر منځ وي لکه يو څوک چي بل ته امانت نقود وغيرها کښېږدي نو خيانت دي نه پکښي کوي چي يا پر سر يې منکر سي او يا په مقدار کي چي هغه زر روپۍ مثلاً امانت ورته ايښي وي دی ورته ووايي چي روپۍ خو پينځه سوه وې.

**پوه سه:** چي قرض او دين موجل هم د امانت له قسمه څخه دی بايد څوک خيانت پکښي ونه کړي نه په مقدار کي او نه په کيفيت کي او دادی چي ته خپل په خيانت پوهېږې.

**فائده:** "تخونوا" دوهم عطف دی پر تخون اول باندي او مجزوم دی په کلمه د لاناهيه په اول کي. او يا معنا ده وانتم تعلمون چي تاسي هغه بنه کار او بد کار سره پېژنئ، ابن عباس ﷺ وايي لاتخونوا الله بترک فرائضه ولاتخونوا الرسول بترک سننه واما ناتکم ما يخفى عن اعين الناس من فرائضه تعالى في حقوقکم کما بين مثالها آنفاً.

**پوه سه:** چي اکثره مفسرين پر دي دي چي دا آيت په باره کي د ابو لبابه عبد المنذر ﷺ نازل سوی دی. لکن د ابن عباس ﷺ د حديث معنا داده چي عبرت عموم لره لفظ دی خصوص لره د مورد نه دی قصة خيانة ابي لبابة. لکه څرنګه چي

بغوي رحمه الله يې روايت کړی دی چې عليه السلام بني قريضه چې د يهودانو يو قوم دی محاصره کړه يو ويشت شپې، نو دوی له عليه السلام څخه غوښتنه وکړه د صلح لکه د بني النضير سره چې بل قوم د يهودانو وُ چې تا صلح کړې وه چې اذرعات او اريحا ته د شام دي فراره سي، زموږ سره هم هغه صلح وکړه. عليه السلام له دې څخه منع وکړه او دوی ته يې وويل چې تاسي پر حکم د سعد بن معاذ قانع کېږئ بني قريضه له هغه څخه انکار وکړی او دوی ورته وويل چې موږ ته ابو لبابه بن عبدالمنذر چې ستر صحابي رضي الله عنه وُ چې ابو لبابه د بني قريضه طرفدار وُ په دې سبب چې عيال او مال د ابو لبابه رضي الله عنه په بني قريضه کې وُ نو يهودانو يعني بني قريضه ابولبابه رضي الله عنه ته وويل چې موږ ته مشوره راکړه چې موږ د سعد بن معاذ رضي الله عنه پر حکم قناعت وکړو، ابو لبابه پر خپل ستوني د چړې پر ډول لاس تېر کړی چې د سعد حکم ذبح ده ستاسي، ابو لبابه رضي الله عنه وايي چې زما پښې پر ځای وې يعني پر دين د اسلام چې دا اشاره مې وکړه پوه سوم چې پښې دي وښوېدلې او خيانت دي وکړی د خدای او د رسول سره. نو زه پښېمانه سوم فاسترجعت يعني انا لله وانا اليه راجعون مې وواېه او خلګ يعني عليه السلام او صحابه رضي الله عنهم او بني قريضه ما ته منتظر دي زه د قلعې تر شا تېر سوم بله لار مې واخستل مسجد نبوي صلى الله عليه وسلم ته راغلم او عليه الصلوة والسلام لا نه وُ راغلی مدينې ته. قصه د بني قريضه هغه وه چې پر حکم د سعد بن معاذ رضي الله عنه قلعه بندي خلاصه سوه او سعد بن معاذ په مدينه کې مريض و نو عليه السلام سړی پسې واستاوه. سعد رضي الله عنه چې راغلی او پر خره سپور وُ عليه السلام وټولو صحابه وو ته وويل قوموا الى سيدکم. خير سعد بن معاذ رضي الله عنه چې له خره څخه راکښته سو عليه السلام ورته وويل چې هؤلاء يعني بني قريضه قد نزلوا علی حکمک. سعد بن معاذ رضي الله عنه ورته وويل چې زما حکم دادی چې بالغان د دوی يعني چې قابل د جنګ وي ټول دې ووژل سي او کوچنيان دې سبي سي او اموال دې غنيمت سي. عليه السلام چې د سعد بن معاذ رضي الله عنه دا حکم واورېدی وه يې وويل الله اکبر حکمت بحکم الملک يعني الله تبارک وتعالی خير د قريضه وو سره هغه چارچلند وکړی چې حکم د سعد بن معاذ رضي الله عنه وُ.

اوس به د ابو لبابه ﷺ حال وځېږو چي په بخاري او د حديثو په نورو كتابو كي راغلي دي وايي چي ما په يوه تنبه (ستن) پوري د مسجد نبوي چي تر اوسه پوري يې استطوانة التوبة بولي ځان تينګ وتاړه او دا مي وويل چي تر هغو پوري به تړلى يم چي يا مرم يا مي توبه قبلېږي، او نه به زه طعام خورم او نه به اوبه څښم عليه الصلوٰة والسلام تر اوسه د بني قريضه په كار اخته ؤ چي د ابو لبابه حال يو چا ورته بيان كړى يعني چي په تنبې پوري يې ځان تړلى دى. عليه الصلوٰة والسلام وويل كه دى هورې ماته راغلى واى ما طلب د بخښني دده وخداى ﷻ ته كاوه، اما اوس چي ده ځان وتاړه په اسطوانه پوري، نو زه يې نه خلاصوم چي خداى ﷻ يې توبه قبوله نه كړي، راوي وايي چي اووه شبانه روزه دى تړلى ؤ چي نه يې ډوډۍ وخوړل او نه يې اوبه څښلې اوومه ورځ بېهوشه سو او خداى ﷻ يې توبه قبوله كړه يعني عليه الصلوٰة والسلام وده ته د قبلېدلو زيرى وركړى.

**سوال:** ابو لبابه چي ځان تړلى و نو لمونځونه يې څرنګه كوله؟

**ځواب:** په سبيل الرشاد كي ددې سوال ځواب داسي راغلى دى چي د لمانځه په وخت كي به يې ماينه ورغله دى به يې خلاص كړى اودس به يې تازه كړى نو ضرورت د بولو وغيره به يې پر ځاى كړى او لمونځ به يې وكړى، بيرته به ماينې تينګ وتړى، نو دا آيت نازل سو "وآخرون اعترفوا بذنوبهم خلصوا عملاً صالحاً وآخر سيئاً عسى الله ان يتوب عليهم ان الله غفور رحيم" راوي وايي چي د سدس ثالث د شپې په وخت كي دا آيت نازل سو او عليه الصلوٰة والسلام په خونه كي د ام سلمة ﷺ ؤ راوي وايي چي عليه الصلوٰة والسلام وخندل، ما پوښتنه وكړه چي د خندا سبب څه ؤ يا رسول الله ﷺ؟ عليه الصلوٰة والسلام راته وويل چي سبب د خندا او خوشالى مي دا ؤ چي د ابو لبابه توبه قبوله سوه. ام سلمة ﷺ ورته وويل چي زه به زيرى پر وكړم؟ عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل پر ويې كړه ان شئت فقامت على باب حجرتها او داسي يې وويل، زيرى مي درباندي يا ابا لبابه توبه دي خداى ﷻ قبوله كړه.

**پوښته:** چي دا زيرى د ام سلمه ﷺ پر ابو لبابه ﷺ هغه وخت ؤ چي پر بنځو

باندي د حجاب پابندي نه وه، په مسجد کي چي خلګ موجود وه هغه
وروغورځېدل چي ابو لبابه د مسجد د تنبي (ستني) څخه خلاص کړي هغه ورته
وویل لا والله حتی یکون رسول الله هو الذي یطلقني فلما خرج رسول الله ﷺ الی
صلوة الصبح اطلقه" یعني له تنبي څخه یې خلاص کړی، نو ابو لبابه و علیه
الصلوٰة والسلام ته وویل چي زما د تمام څخه د توبي دادی چي زه هجرت کوم له
کلي څخه زما د قوم چي ما هورې دا ګناه وکړه چي په بني قریضه ؤ کي ؤ او زه تر
تو له مال صدقةً لله تبریم، علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل یجزیک الثلث ان
تصدقت به، یعني ثلث تا لره کافي دی چي صدقه یې کړې، نو د ابو لبابه رضي الله عنه
په باره کي دا آیت نازل سو "یا ایها الذین آمنوا لا تخونوا الله والرسول الآیة"

**پوه سه:** چي اصل معنا د خون نقض ده لکه د اصل د وفا چي تمام دی
واستعماله في صد الامانة دی.

**پوښتنه:** په صحیح حدیث کي راغلي دي چي "المستشار مؤتمن" رواه احمد
عن حدیث ابي هریرة رضي الله عنه نو یهودانو چي د ابو لبابه رضي الله عنه سره مشوره وکړه نو که
ابو لبابه رضي الله عنه هغه فعل نه وای کړی چي ده وکړی یعني پر حلق یې لاس ورته تېر
کړی اشاره یې وذبح ته وکړه لزمه الخیانة في المشورة، نو له دي کاره څخه خو
ده چاره نه درلوده نو یې ځکه وکړی حفظاً لامانة؟

**ځواب:** له خیانت څخه د خلاصېدلو لاره وه بېله اشارې وحلق ته چي یا یې
سکوت مختاره کړی وای او یا یې داسي ورته ویلي وای چي زه تاسي ته مشوره
درکوم قد بدأ بیني وبینکم العداوة والبغضاً ابداً حتی تؤمنوا بالله ورسوله، نو
چي داسي یې ونه کړه ځکه ده ته لوی خطر پېښ سو کما سمعت في قصته والله
اعلم بالصواب.

## وَاعْلَمُوٓا اَنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ

او په دې پوه سئ چي اموال ستاسي نه دي او اولاد ستاسي نه دي مګر فتنه.

**پوه سه:** چي اصل معنی د فتن ایښوول دي د سرو زرو پر اور باندي تاچه
جودة یې معلوم سي، په روح البیان کي وایي چي فتنه قد تطلق علی الآفة

والبلاء وقد تطلق على الابتلاء والامتحان، نو پر اول تقدير يې معنا داده چې اموال او اولاد ستاسې اسباب دې د وقوع ستاسې په آفت کې يعنې معصيت په دنيا کې، والوقوع في عذاب الآخرة او پر دويم تقدير يې معنا داده چې اموال او اولاد ستاسې ذريعه ددې ده چې سړی دې په امتحان او ابتلاء کې د خدای ﷻ واقع کوي حيث يظهر من اتبع الهوى ممن آثر رضي المولى.

**پوه سه:** چې بعض مفسران رحمهم الله وايي چې دا آيت هم په شان کې د ابو لبابه رضي الله عنه نازل سوی دی. او ځيني وايي چې دا آيت عمومي بيان دی د اموالو او اولادو که څه هم په عموم کې يې ابو لبابه رضي الله عنه هم داخل دی وكلاهما صحيح.

وَأَنَّ اللَّهَ عِندَهُ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿٢٨﴾

او د خدای ﷻ په نيز ثواب دی لوی وهو جنة النعيم مؤبداً فعلى العاقل ان يختار الجنة على محبة الفتنة ويختار طاعة المولى على متابعة الهوى.

دران روز کز فعل پرسند وقول ......... اولو العزم راتن بلرزد زهول

ويختار جانب الطاعة على جانب المعصية.

درآن روز که دهشت خورد انبیا ... تو عذر گناه را چه داری بیا

ويختار جانب الخمول على جانب الشهور

بر فلک بر تر بود اسرار او .............. شيئاً لله شيئاً لله کار او

ويختار العجلة الى التوبة .............. على التسويف والمهلة

توبه بکن امروز تو هر گز مگو فردا کنم

شاید بمیری صبحدم فردا نیابی در شمر

ويختار الهمة على الكسالة

همت بلند دار که نزد خدا وخلق ........ باشد بقدر همت تو اعتبار تو

ويختار حب الفقر على محبة الغنى

آنانکه زره وار بصورت محقر اند ....... فردا زخیال وناز بفردوس نه گرند

ويختار العجز والانكسار ......... في جانب الملك الجبار

چار چیز آورده ام شاها که در گنج تو نیست

عاجزی ومسکینی فقر گناه آورده ام

ويختار متابعة الرسول على متابعة الغرور (وهذا اسم من اسماء الشيطان)

آنانکه تابعان رسولند بهتر اند ........ وآنانکه تابعان غرورند کمترند

ويختار الايثار والكرم ........ على البخل واللحم

بخیل اربود زاهد بحر وبر ........ بهشتی نباشد بحکم خبر

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَتَّقُوا اللَّهَ يَجْعَل لَّكُمْ فُرْقَانًا

اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی که چېرې تاسې وبېرېږئ له خدای ﷻ څخه سراً وعلانيةً بطاعته وترک معصية خدای ﷻ به وګرځوي تاسې لره فرقان يعنې بصيرت د زړونو چې په منځ کې د حق او د باطل په هغه بصيرت قلبې سره فرق کولای سې، يعنې بدون تعليم المعلم، او هم دادی مراد بقوله عليه الصلوٰة والسلام اتقوا فراسة المؤمن فانه ينظر بنور الله" رواه البخاري في التاريخ، او دا دی مراد بقوله عليه الصلوٰة والسلام استفت نفسک وان افتاک الفتون رواه البخاري، په اصطلاح د صوفيه کرامو ودې ته کشف قلبې وايې او به بل عبارت الهام ورته وايي لکن يحصل هذه المرتبة بعد تصفية النفس عن الرزائل، او هم ودې مرتبې ته حقيقة التقوى وايې، او مجاهد رحمه الله وايې چې مراد له فرقان څخه مخرجاً في الدنيا والآخرة عما يحذرون وقيل غير ذالک.

**پوه سه:** چې فرقان مصدر دی کالغفران.

وَيُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ

او محو به کړي تېر ګنهونه ستاسې، او تاسې ته به بخښې ګنهونه.

**پوښتنه:** د تكفير السيئات او غفران فرق څه دی. او که فرق نه سره لري نو تکرار يې څه فائده لري؟

**ځواب:** مظهري رحمه الله يې دا فرق کړی دی چې مراد له غفران څخه بخښنه ده نه شکر ویولو د نعمتو د خدای ﷻ دی پر بنده باندې، او ده په دې باره کې روايت د انس رضي الله عنه راوړی دی چې يو ډېر اوږد حديث دی او د تكفير د سيئاتو نور ګنهونه مراد دي فلا تکرار، او علامه بغدادي رحمه الله په روح المعاني کې يو فرق دا کړی دی

چي مراد له تکفیر څخه ستر في الدنیا دی او مراد له مغفرت څخه تجاوز دی تر هغو په اخیرت کي. او بل فرق یې دا کړی دی چي مفعول د یغفرلکم محذوف دی ای الذنوب او مراد له ذنوب څخه کبائر ګنهونه دي، او مراد له سیئات څخه صغائر ګنهونه دي او بل فرق یې په ماتقدم او ما تأخر سره کړی دی.

وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ

او خدای ﷻ مالک د لوی فضل دی، والمقصود خدای پاک وایي چي دغه چي ماستاسي سره وعده کړې ده پر تقوی باندي دا زما فضل او احسان عظیم دی پر تاسي باندي لانه لایحب علی الله شیئ کما هو معتقد اهل السنة والجماعة خلافاً للمعتزلة، دوی وایي ثواب د حسناتو او د سیئاتو د بنده چي بلا توبه مړ سي په دوږخ سره پر خدای ﷻ واجبه ده والدلائل والجوابات في کتب العقائد.

**درویش وایي**: چي قاضي بیضاوي په تفسیر کي د سورة البقرة وایي چي دوام پر صغیره ګناه مفضي وکبیره ته ګرځي، او همېشه توب پر کبیره ګناه منجر وکفر ته ګرځي اعاذنا الله. درویش د مثال په توګه وایي چي یو سړی چي د نامحرمي ځواني ښځي سره په خلوت کي کښېني بلا حجاب او خبري ورسره کوي دا خو صغیره ګناه ده وروسته لمس بالشهوت او مچه ځندي واخلي دا هم صغیره ګناه ده اخیر الامر زناً ورسره وکړي دا خو کبیره ګناه ده، که چېري دا سړی پر دې ګناه همېشه توب وکړي شیطان دا فکر په زړه کي ورپیدا کړي چي دا ښځه بدون الجبر والاکراه زما سره زنی کوي بلکې په خپله خوښه دا کار زما سره کوي او زه هم په عوض کي د زنی روپۍ ورکوم نو دا ولي ګناه ده، مېړه خو هم ولور ورکړي او دا ښځه په عوض کي د ولور جماع ورسره کوي او هغه خلګ روا بولي، او ما چي ورته کار وکړی زما دا ګناه ده؟ یعني په زړه کي یې د ګناه انکار پیدا سي فاذا بلغ هذا الحد فقد خلع ربقة الایمان عن عنقه.

**درویش وایي**: چي وعلی هذا فقس سائر المعاصي الکبیرة بادنی تغییر في الزام الکفر علی المرتکب، خدای ﷻ دي نجات راکړي.

# وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا

**پوه سه:** چي دا جمله عطف ده پر "اذ انتم قليل آه" والمعنى اذكر اذ يمكربك الذين كفروا واذ قالوا اللهم آه" ولي چي دا سورت خو مدني دی وهذا المكر والقول كان بمكة.

**پوه سه:** چي ابن اسحق او نورو ګڼ شمېر راويانو رضي الله عنهم له ابن عباس او نورو ګڼ شمېر راويانو رضي الله عنهم څخه داسي روايت کړی دی چي د مکې قريشو چي وليدل چي انصارو د مدينې ايمان راوړی، نو ددوی دا خيال سو چي محمد ﷺ به د غير کي د بلد ددوی چي مکه وه ډله پيدا کړه او دا يې هم وليدل چي د مکې مسلمانان په پټه مدينې ته هجرت کوي، نو دوی په دې پوه سوه چي دې سړي يعني محمد ﷺ جلا دار او جوار پيدا کړی، او له دې څخه چي عليه الصلوة والسلام كه هجرت وکړي هورې به لښکر برابر کړي او پر موږ به حمله وکړي، نو د مکې د کافرانو سرداران په دار الندوة کي چي دا سرای د قصي بن کلاب وچي قريشو به هره مهمه مشوره په دغه سرای کي کوله سره جمع سوه او دا ورځ دوی يوم الزحمة بلله، او د سرای په دروازه کي يې نګهبان ودراوه چي هيڅ څوک مه راپرېږده زموږ بېله اجازې، نو شيطان له موقع څخه په استفادې سره ځان د يو معتبر شيخ په لباس کي چي چپنه يې پر اوږو اچولې وه راغلی د سرای په دروازه کي ودرېدی، دروازه وان ورته وويل من الشيخ؟ ابليس ورته وويل شيخ من نجد، ما واورېدل چي تاسي په امر کي د محمد مشوره سره کوئ فاحضر معکم زه به هم حاضر يم چي تاسي په دې مشوره کي څه وايـاست او ښايي چي زه به خپله رايه هم پېش کړم قريشو ورته وويل اجل ادخل فاجتمع ابليس معهم. او په دې مجلس کي ټوله اشراف د قريشو حاضر وه لکه عتبه، شيبه، ابنا ربيعة وطعيمة بن عدي والنضر بن الحارث وابو البختري بن هشام وزمعة بن الاسود وابوجهل بن هشام نبيه ومنبه ابنا حجاج وامية بن خلف وابو سفيان بن الحرب وجبير بن مطعم وحكيم بن خزام او دغه درې کسه وروسته مسلمانان سوي دي او پرته له مذکورو کسانو څخه نور کسان هم وه يا له قريشو يا له غير قريشو څخه

نو یوه وبل ته سره وویل دا سړی یعنون محمداً ﷺ قد کان من امره ما رئیتم یعني چي د توحید اعلان یې وکړی او زموږ خدایان یې شرک وباله او زموږ اباً واجداد یې کافران وبلل الی غیر ذالک او زه په قسم سره دا وایم چي دېره لېري نه ده چي دا سړی به له خارجه څخه یعني له مدینې څخه پر موږ حمله وکړي فاجمعوا فیه رأیاً وتشاوراً، نو تاسي خپل فکرونه سره متفق کړئ او ستره مشوره وکړئ، نو ابو البختري بن هشام وویل چي بندي یې کړئ او پښو ته یې زولنې ورواچوئ او دروازه پسي بنده کړئ بیا نو انتظار وکړئ وده ته د هغه شي چي ده امثالو شاعرانو ته چي تر ده دمخه وه لکه زهیر او نابغه ته ورپېښ سوی و یعني الموت، نو شیخ نجدي علیه اللعنة وویل ما هذا لکم برایٔ دا ستاسي بنه رایه نه ده، ولي که تاسي دی بندي کړئ په یوه خونه کي او دروازه پسي را وتړئ نو ده امر به د جاسوس په ذریعه خپلو اصحابو ته په مدینه کي رسېږي، نو قریب ده چي ده اصحاب به پر تاسي حمله وکړي او ستاسي سره به جنګ شروع کړي تاسي به د هغو سره اخته یاست دی به له حبس څخه وباسي، قالوا صدق الشیخ النجدي، وروسته بیا ابو الاسود، ربیعة بن عمرو وویل چي له مکې څخه یې وباسئ فلا یضرنا ماصنع واین وقع اذا غاب عنا وفرغنا عنه، موږ به په مکه کي خپل خوږ ژوند کوو، شیخ نجدي علیه اللعنة دا رایه هم رد کړه، او وه یې ویل چي تاسي محمد نه دی لیدلی څه خوږ ژبی دی او د خلګو زړونه په سبب د بلاغت او فصاحة او حلاوت و ځان ته راجلبوي، شیخ نجدي وویل که تاسي دا رایه وچلوئ دی خو به له مکې څخه وباسئ لکن ده به مدینه کي قومونه قومونه ملګري پر خپل دین پیدا کړي، نو جماعت چي پوره سي پر تاسي یرغل راوړي، نو نیست او نابود به مو وګرځوي او هر څه چي یې زړه غواړي په تاسي به هغه کار وکړي، بله تر دې بنه رایه مختاره کړئ قالوا صدق الشیخ النجدي لعنه الله. نو ابو جهل وویل چي زه هم یوه رایه لرم چي تاسي وهغې رایې ته تر اوسه نه یاست رسېدلي، خلګو ورته وویل وما هو یا ابو الحکم (د ابو جهل کنیت و په عربو کي تېولي قومي فیصلې به ده کولې) نو ابو جهل وویل چي د هر څو قبیلو

مشران چي دلته جمع دي هره قبیله دي یو دلاوره ځوان توره په لاس کې واخلي چي سره جمع سوه وردي سي ټوله دي په یوه صلاح محمد په توره ووهي او مړ دې کړي، وروسته به نو دده قوم بني هاشم او بني عبدمناف څه وکړي ددې ټولو قبیلو سره خو جنګ نه سي کولای اخیر به په دیت راضي سي دیت چي سل اوښان دي موږ به یې سره اندازه کړو غاړه به یې په وباسو.

**درویش وایي:** چي د دې پرو خلګو په زړو کې دا سودا پیدا کېدل چي دومره قریش د محمد ﷺ څخه په عذاب وه او وژلو ته یې تږي وه، خو تر دې پخوا به یې یو سړی امر کړی وای چي ورسه محمد مړ کړه، ددې سودا ځواب د ابو جهل له رایي څخه معلومېږي چي که یو سړي علیه الصلوٰة والسلام وژلی وای د هري قبیلې څخه چي وای بني هاشمو د هغې سره جنګ کاوه او یوې قبیلې د بني هاشمو د جنګ توان نه درلودی لکثرتهم وشجاعتهم في الحروب، نو ځکه ابو جهل ملعون غوښتل چي دده قتل پر ټولو قبیلو تاوان وي، نو بني هاشم بیا د ټولو قبیلو سره د جنګ طاقت نه لري نو په دیت به راضي سي، شیخ نجدي علیه اللعنة وویل القول الحق ماقال هذا الرجل، نو جلسه پر قول د ابو جهل متفق پای ته ورسېدله، او شیخ نجدي علیه اللعنة پر تصویب د ابو جهل ملعون دا دوه شعرونه وویل.

الرایٔ رایان رایٔ لیس یعرفه ......... هاد ورایٔ کنصل السیف معروف
یکون او له عز و مکرمة ......... یوماً وآخره حمد و تشریف
لعن الله تعالی قائلهما ابداً

**ژباړه:** رایه دوه قسمه ده یوه رایه هغه ده چي نه په پوهېږي هادي سړی، او بله رایه داسي ده لکه سر د توري چي هر سړی په پوهېږي، او د دویمي رایي اول عزت او مکرمت وي او اخیر یې حمد او تشریف وي.

**درویش وایي:** چي د قریشو جلسه چي ختمه سوه او پر قول د ابو جهل او د شیخ نجدي په تصویب پای ته ورسېدله، نو جبرائیل ﷺ و علیه الصلوٰة والسلام ته راغلی او ورته وه یې ویل چي ته نن شپه پر هغه ځای په کور کې چي

ته پخوا پر بد پدې مه پر بد پړه او د قریشو د اختلاف او اتفاق تپوله بیان یې ورته وکړی او ورته وه یې ویل چي ته ولاړ سه مدینې منورې ته هجرت وکړه.

نو چي ماخستن سو د شپې هغه ځوانان د مختلفو قبائلو سره د تورو راغله د علیه الصلوٰة والسلام پر کور راوګرځېدله او دې ته منتظر وه چي بیده سي نو به اجتماعي حمله پر وکړو.

**سوال:** ولي يې حمله په ویښه نه پر کوله. علیه الصلوٰة والسلام خو نه محافظ ببله خدایه درلودی او دوی ډېر هم وه؟

**خواب:** لکه دمخه چي تېره سوه ابو جهل ودوی ته وویل چي تپوله په یوه پلا حمله پر وکړئ او وه یې وژنئ، نو د علیه الصلوٰة والسلام د بیداری په صورت کي خو داسي نه وه ممکنه، ولي د بیداری په صورت کي اول سړي چي دی په توره وهلی وای شاید په هغه وار یې علیه الصلوٰة والسلام وژلی وای، نو بیا به د ضارب پر قبیله تاوان وای او چي علیه الصلوٰة والسلام بیده وي ددوی زعم باطل داؤ چي شاوخوا به پر راوګرځېږو او د تپولو د توري په ضرب سره به دی مړ کړو، نو علیه الصلوٰة والسلام ته چي ددوی اجتماع معلومه سوه، نو یې علي ﷺ ته وویل چي ته راسه زما پر ځای پرېوزه او زما هغه شین پټو چي پخوا علیه الصلوٰة والسلام پکښي بیدېدی پر ځان واچوه او بېغمه بیده سه تاته هیڅ څوک ضرر نه سي رسولای.

**درویش وایي:** چي دغه فراش د علیه الصلوٰة والسلام که څه هم ظاهرا د وینو فراش ؤ لکن علي ﷺ په ډېر شوق بېغمه پر بیده سو، نو ابو جهل چي ددوی ملګری ؤ داسي یې وویل محمد وایي چي که تاسي زما متابعت وکړئ یعني پر ما ایمان راوړئ تاسي به شاهان د عربو وګرځئ او تاسي ته به داسي باغونه او جنتونه درکړل سي لکه د اُردن باغونه، او که تاسي دغسي ونه کړئ، نو ده لره به تاسي ذلیل یاست او ذبیح، بیا به وروسته تر مرګ تاسي ژوندي کېږي نو تاسي به داخلېږئ و اور ته او پکښي سوځئ به، نو علیه الصلوٰة والسلام له کوره راووتی او یو مټ خاوره ورسره وه او علیه الصلوٰة والسلام د ابو جهل د خبرې په جواب کي چي ابو جهل هم اورېدل داسي وویل نعم انا اقول ذالک

وانت احدهم، او خدای ﷻ ددوی پر سترگو د قدرت پرده واچول چي هيڅ څانته لیدی او د هر یوه پر سر خاوري اچولې او دا آیت یې وایه یس ﴿۱﴾ وَالْقُرْاٰنِ الْحَكِيمِ ﴿۲﴾ الى قوله فهم لا یبصرون" ولم یبق منهم رجل الا وقد وضع رسول الله ﷺ على رأسه ترابا او دوی تول په ناستي لکه نشه داسي وه او علیه الصلوٰة والسلام ځندي ولاړی حیث اراد یعني د ابوبکر ﷜ کور ته، وروسته و هغه خلگو ته چي د علیه الصلوٰة والسلام د وژلو لپاره راغلي وه یو بل سړی چي ددوی سره نه و راغلی، هغه راغلی پر خلگو یې زغ وکړی چي څه کوئ چي لاناست یاست؟ هغو ورته وویل چي د محمد د وژلو انتظار کوو. هغه راغلي سړي ورته وویل خیبکم الله عزوجل والله خرج علیکم محمد او بیا ده ستاسي د تولو پر سرو خاوري دراچولي دي او دی په خپل کار پسي ولاړی نو هر سړي چي به پر سر لاس کښېښو پر سر به یې خاوري پرتې وې، نو خلگو چي د دروازې تر چولو د علیه الصلوٰة والسلام کور ته وکتل د علیه الصلوٰة والسلام پر بستر علي ﷜ پروت دی او پر ځان یې د علیه الصلوٰة والسلام شین پټو اچولی دی. او دې خلگو د شپې سره وویل والله هذا محمد نائم علیه بردة فقام علي عن فراشه صلعم، نو دوی سره وویل چي رښتیا ده چي محمد د شپې وتلی دی.

**درویش وایي:** چي نوره قصه به د علیه الصلوٰة والسلام د هجرت د سورة التوبة په تفسیر کي راسي ان شا الله تعالى.

**یوه سه:** چي حاکم له علي بن الحسین بن علي ﷺ څخه داسي بیان نقل کړی دی چي ځان یې رانیوی لپاره د طلب د رضا الهي علي ﷜ و، او هم دا شعر علي ﷜ ویلی دی:

وقيت بنفسي حر من وطى الحصى ....... ومن طاف بالبيت العتيق وبالحجر
رسول الله اخاف ان يمكروا به ....... فنجاه ذو الطول الا له من المكر

لِيُثْبِتُوكَ اَوْ يَقْتُلُوكَ اَوْ يُخْرِجُوكَ وَيَمْكُرُوْنَ وَيَمْكُرُ اللّٰهُ

چي تا بندي کړي او ودي تړي لکه ابو البختري چي د قریشو په اجلاس کي

دغه توجیه کړې وه، او یا تا مر کړې لکه ابو جهل چې دا تجویز په مجلس عام کې پېش کړی ؤ او شیخ نجدي لعنة الله علیه هم په دغه تجویز راضي سوی ؤ، او یا تا له مکې څخه وباسي لکه اخو بني عامر چې دا تجویز ومجلس ته وړاندې کړی ؤ. او دوی چم کاوه ستا وقتل ته او خدای ﷻ دوی ته چم وکړی.

**پوه سه:** چې مکر چم ته وایي او حقیقت د چم پر خدای ﷻ محال دی ولې چې چم کول شان د عاجز دی، نو مراد ځنې جزا د مکر ددوی ده چې علیه الصلوٰة والسلام یې ددوی له مکره وساتی کمامر تفصیله لکن تعبیر مکر سره للوقوعه مجاوراً لمکرهم کما في قوله تعالی جزاء سیئة بمثلها.

وَاللَّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ

او خدای ﷻ د جزا ورکونکو دی مکر کونکو ته.

**پوه سه:** چې ابن جریر رحمه الله له سعید بن جبیر رضي الله عنه څخه داسې روایت کړی دی چې علیه الصلوٰة والسلام په ورځ د بدر څو کسه صبراً ووژله (صبر قتل دا بولي چې په جنګ کې یې بندي ونسي او بیا یې قتل کړي) نو د بدر په غزا کې څو اوویا کسه اثیر بندیان سوه نو عقبه بن ابي محیط او طعمه بن عدي او نضر بن الحارث هغه دوه دمخه کافران چې علیه الصلوٰة والسلام قتل کړه او د نضر بن الحارث په قتل سره چې علیه الصلوٰة والسلام امر وکړی او مقداد بن الاسود رضي الله عنه دا نفر ګرفتار کړی ؤ، نو مقداد و علیه الصلوٰة والسلام ته وویل چې دا څو زما بندي دی غرض یې دا ؤ چې د قتل امر زما په لاس کې دی، علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چې نضر بن الحارث هغه نفر چې د کتاب الله قرآن دده هغه وینا وه چې په دې آیت کې خدای ﷻ داسې فرمایلي دي.

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا قَالُوا

چې تلاوت وکړه سي پر دوی د آیاتو زموږ چې قرآن کریم دوی وایي.

**پوښتنه:** د وروسته قول قائل څو یوازې نضر بن حارث ؤ، نو قالوا په صیغه د جمع څرنګه راوړه؟

**ځواب:** چونکه د کفارو نور قریش په قول د نضر راضي وه نو ځکه اسناد او

نسبت يې وتړولو ته وکړی کما في قولهم بنو فلان قتلوا مع ان القاتل واحد منهم وکما في قوله تعالى "فعقروها" او سره ددې چي عاقر د صالح ﷺ د اوښې يوازې قذار بن سالف چي اشقي الثمود و اما نسبت د قتل د اوښې وټوله ثمود يانو ته وکړی ولي چي ټوله ثموديان په قتل د سالف راضي وه، او په بل ځای کي د قرآن مجيد يې يوازې قذار ته کړی دی کما في قوله تعالى "اذ انبعث اشقاها"

قَدْ سَمِعْنَا لَوْ نَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هَٰذَآ

موږ قرآن واورېدی لکن که موږ وغواړو موږ ويلای سو مثل د قرآن.

**درويش وايي**: چي دا ددوی غايت حماقت ؤ او مکابره ده له حق سره چي قرآن مبارک ؤ او نهايت عناد ؤ د عليه الصلوٰة والسلام سره ولي که ددوی د طاقت سره مثل د قرآن ويل پوره وای نو چا منع کړي وه جوړ کړی به يې وای. او سره ددې چي خدای پاک په قرآن مجيد کي دوی ته اعلان وکړی وَإِن كُنتُمْ فِي رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِۦ وَادْعُوا شُهَدَآءَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٢٣﴾ (سورة البقرة)

او په بل اعلان کي يې ورته وويل قُل لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْجِنُّ وَالْإِنسُ عَلَىٰ أَن يَأْتُوا بِمِثْلِهِ الاية (سورة البقرة)

او لس کاله دا اعلانونه جاري وه لکن دوی مثل د يوه سورت د قرآن مجيد نه کړی جواب اخير الامر ومقارعة السيوف ته مجبوره سول نو ددوی طاقت د مثل د قرآن درلودای نو تر مقارعة السيوف خو مقارعة الالسنة اسانه وه.

إِنْ هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٣١﴾

نه دی قرآن مگر سطره الاولون ای کتبوه يعني اخبار د امم ماضيه ؤ.

**يوه سه**: چي اساطير جمع د اسطورة ده چي په معنی د مکتوبة ده کما قال صاحب روح البيان و امام المظهري. بغوي رحمه الله وايي چي نضر بن الحارث تاجر ؤ دی به فارس او حيرة ته په تجارت تلی، هوري به يې د رستم او اسفنديار قصې

او نوري قصې د عجمو به يې اورېدلې او هغه به يې سره جمع کولې، نو چې مکې ته راستون سو وه يې ليدل چې عليه الصلوٰة والسلام و قريشو ته قرآن وايي، نو نضر دا خبره وکړه قد سمعنا لو نشآ الآية. او قريشو ته به يې ويل قرآن او محمد د يوسف او د امرئة العزيز قصې درته کوي زه بيا د رستم او اسفنديار د جنګو قصې درته کوم.

وَإِذْ قَالُوا اللَّهُمَّ إِنْ كَانَ هَٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٣٢﴾

په ياد کړه و مسلمانانو ته هغه وخت چې کفارو د مکې به ويل چې ای خدايه که چېري وي دا قرآن حق او ستا له جانبه وي، نو پر موږ وه اوروه ډبري د اسمان له خوا، يعني ولې چې موږ خو ځندي منکر يو لکه پر اصحاب الفيل او يا پر قوم لوط چې دي وه اورولې، او يا موږ ته راتګ وکړې يعني نازل کړې يو بل عذاب مولم درد ورکونکی.

**پوه سه:** چې دا خبره "اللهم آه" دوی استهزاء بالقرآن کوله او خلګو ته يې دا ښکاره کوله چې زموږ يقين دی پر بطلان د قرآن او پر کذب د حامل القرآن يعني محمد ﷺ.

**پوه سه:** چې نضر بن الحارث چې هغه دمخه خبره وکړه يعني لو نشآ لقلنا مثل هذا، عثمان بن مظعون رضي الله عنه ورته وويل ان محمداً يقول لا اله الا الله. نضر ورته وويل فانا اقول لا اله الا الله لکن هذه يعني الاصنام بنات الله يعني د خدای لوڼي دي، نو ځکه يې موږ عبادت کوو تقرباً الی الله وروسته يې وويل "اللهم ان کان آه نو قائل ددغه قول هم نضر بن الحارث دی لکن صيغه د جمع يعني قالوا چې يې راوړه ولې چې نور قريش هم د نضر په دغو خبرو راضي وه.

**درويش وايي:** چې پر دې خبره چې قائل ددې قول يوازي نضر بن الحارث و هغه آيت قرآني دلالت کوي سئال سائل بعذاب واقع" ولې چې په هغه ځای کې سائل په صيغه د مفرد راغلی دی فافهم.

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَ اَنْتَ فِيْهِمْ ؕ وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ ۝

نه دی خدای ﷻ چي دوی په عذاب کړي. کلمه د لام لپاره د تاکید د نفي ده او حال دادی چي ته اې محمد ﷺ په دوی کي یې یعني په مکه کي او نه دي خدای پاک ودوی ته عذاب ورکونکی چي دوی طلب د مغفرت له خدایه څخه کوي او دوی وایي غفرانک ای نطلب غفرانک، ولي عذاب چي نازل سي عام وي د هم دې سببه خدای ﷻ پر هیڅ قوم د کافرانو عذاب د استیصال نه دی نازل کړی تر هغو چي نبي او مؤمنان له هغه قومه تللي نه وي.

**اشاره:** په دې آیت کي تنبیه ده پر تعظیم د نبي ﷺ او حفظ د حرمت دده دی عند الله، ولي چي علیه الصلوٰة والسلام خدای پاک رحمة للعالمین را استولی دی کما جاء في القرآن "وما ارسلناک الا رحمة للعالمین" والرحمة والعذاب ضدان چي نه سره جمع کېږي.

**پوه سه:** ځیني علماء رحمهم الله وایي چي ذات انور د علیه الصلوٰة والسلام هو الامان الاعظم او وروسته تر ده چي سنت او طریقه دده جاري وي هم امان اعظم دی، وهذه الآیة دلیل علی شرفه علیه الصلوٰة والسلام واحترامه عند الله، ولي دده وجود شریف په مکه کي یې سبب د امان د عبادو وگرځاوه وعدم نزول العذاب علیهم، ولو کانوا کافرین.

**پوښتنه:** عیسیٰ ﷺ خدای پاک و اسمانو ته پورته کړی او د علیه الصلوٰة والسلام وجود شریف یې په مځکه کي وروسته تر مړیني پرېښو؟

**ځواب:** دده په جسم طاهر پوري د عالم د نظام اصلاح مربوطه ده، شیخ عطار وایي: خویشتن خواجه عرصات گفت ... انما انا رحمة مهداة گفت

**درویش وایي:** چي که جسد اطهر دده مبارک اسمانو ته ورل سوی وای، نو دا بغاري به عبد الرحمن الجامي قدس سره پر چا وهلای.

ز مهجوری بر آمد جان عالم ........ ترحم یا نبي الله ترحم
تو ابر رحمتی آن به که گاهی ........ کنی برحال لب خشکان نگاهی

قضا می انگند از راه مارا ........ خدا را از خدا درخواه مارا
الی اخیر قصیدته في مدح النبي العربي ﷺ.

**پوه سه:** چي په "هم يستغفرون" کي اختلاف دی ځيني علما رحمهم الله وايي چي مراد استغفار دی د من بقي فيهم د ضعيفه مسلمانانو چي د هجرت طاقت يې نه درلودی چي ددوی له منځه ولاړ سي. او ځيني علما رحمهم الله وايي چي في اصلابهم من يستغفر الله. وقيل فيهم من يؤل اخير امره الى الاستغفار من الشرک لکه ابو سفيان وغيره چي وروسته مسلمانان سوله.

امير المؤمنين علي المرتضیٰ رضي الله عنه وايي چي په مځکه کي دوه امانه وه يو خو پورته سو يعني وفات سو يعني رسول الله ﷺ. او يو امان باقي دی چي استغفار دی. او دا آيت يې دليل وګرځاوه "وماکان الله ليعذبهم وانت فيهم الى اخير الآية" په نفائس المجالس کي وايي چي مؤمن صادق په ايمان په اخيرت کي خدای جل جلاله نه په عذابوي ولي چي ددوی نبي به په ورځ دقيامت ددوی په منځ کي وي، وقد قال الله تعالى وماکان الله ليعذبهم وانت فيهم الآية، يو محقق وايي

ګفت حق کآمرزش ازمن می طلب ...... کان طلب مرعفورا باشد سبب
از پی هر ګناه ار بشنوی ...... هست استغفار تریاقی قوی

**درويش وايي:** چي محمد بن اسحاق رحمه الله ددې په تفسير کي داسي ويلي دي چي دا آيت حکايت دی د کفارو د قول او متصل په آيت اولی پوري دی چي پر موږ خدای پاک عذاب نه نازلوي، ولي چي "ونحن نستغفره" او خدای پاک هغه امت نه په عذابوي چي نبي يې ورسره وي او محمد ﷺ خو په موږ کي موجود دی انتهى، فقير وايي چي دا تفسير ليس بشيئ ولي چي کفار د مکې کله عقيده درلوده د عليه الصلوٰة والسلام د نبوت، که يې عقيده درلودای، خو ايمان به يې پر راوړی وای، دوی عليه الصلوٰة والسلام نبي نه باله بلکي کاهن يا شاعر يا مجنون يې باله نعوذ بالله من ذالک.

وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ

او څه سبب دوی لره چي دوی ته به عذاب نه ورکوي خدای جل جلاله يعني لاحظ

لهم في ذالک بعد زوال المانع وهو کون علیه الصلوٰة والسلام فیهم وموجب د امهال چي استغفار وي. دا ترجمه روح البیان، روح المعاني وغیره کړي ده، نو هغه تفسیر چي مظهري رحمه الله کړی دی وهذا عبارته وانت کنت فیهم وان کانوا یستغفرون انتهی مخالف لصریح نص القرآن یعني وماکان الله لیعذبهم.

## وَهُمْ يَصُدُّونَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

او دوی منع کوي مذکورین کسان له مسجد حرام څخه یعني عن الطواف بالبیت الحرام کما وقع منهم هذا المنع څه وخت چي علیه الصلوٰة والسلام سره د څورلس یا پینځه لس سوه اصحابو کرامو ﷺ په نیت د عمرې راغلي وه په کال د حدیبیه او کفار مکه یې مانع وګرځېدل چي بیان یې به وروسته پر خپل ځای راسي ان شا الله تعالی.

**پوه سه**: چي د "یصدون" مفعول محذوف دی ای النبي ﷺ والمومنین، په "وهم" کي کلمه د واو حالیه ده.

## وَمَا كَانُوا أَوْلِيَاءَهُ

دوی نه وه متصرفان د مسجد حرام، حسن بصري رحمه الله وایي چي قریشو د مکې به ویل چي موږ اولیا د مسجد حرام یو هر څوک چي منع کوو لکه علیه الصلوٰة والسلام و اصحابه ﷺ او هر چا ته چي اجازه د دخول ورکوو زموږ خوښه او اختیار دی فرد الله تعالی علیهم بهذه الآیة.

## إِنْ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَّا الْمُتَّقُونَ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٤﴾

نه دي اولیا د مسجد حرام مګر هغه چي له شرک څخه خلاص وي لکه علیه الصلوٰة والسلام او اصحاب کرام ﷺ، لکن اکثره د عربو په دغه نه پوهېږي چي قریش دی چي موږ لره دعوی د ولایت د مسجد الحرام نه ښایي، ولي چي مسجد حرام په تهوله نړۍ کي محترم او پاک ځای دی باید اولیا یې هم پاک خلګ وي یعني له شرک څخه.

وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِندَ الْبَيْتِ إِلَّا مُكَاءً وَتَصْدِيَةً فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿۳۵﴾

او نه ؤ صلوٰة ددوی یعني الدعا په نېز د بیت الله مګر نه مکا یعني شپېلکی (مکا په اصل کي د یو مرغه نوم دی په حجاز کي چي دی دا شپېلکی کوي نو پردې تقدیر مضاف محذوف دی ای الا صوت مکا)

**یوه سه:** چي تصدیه په پښتو کي وچک چکو ته وايي، نو تاسي خوند وڅکئ د عذاب په سبب د کفر ستاسي. بغوي رحمه الله وايي چي ابن عباس رضي الله عنهما (یعني رئیس المفسرین لکتاب الله تعالی) وايي چي قریشو پر بیت الله یکلخته لڅ لغړ طواف کاوه شپېلکی او چک چکې به یې کولې دوی دا د عبادت یوه نوع ګڼل لکه بت پرستي چي ددوی په زعم فاسد سره عبادت د الله ؤ. او مقاتل رحمه الله وايي هغه وخت چي علیه الصلوٰة والسلام په مکه مکرمه کي ؤ او پر لمانځه به ودرېدی دوه کسه به راغله پر راسته بغل به ورته ودرېدل او دې دوو به شپېلکی کاوه او دوه کسه به چپه ارخ ته ورته ودرېدل هغو به چک چکي کولې او دا کسان د عبد الدار د قبیلې وه، غرض یې دا ؤ چي پر علیه الصلوٰة والسلام لمونځ ګډوډ کړي.

**درویش وايي:** چي پر دې تقدیر له صلوٰتهم څخه دعا نه ده مراد بلکي شبه د صلوٰة ددوی په خیال یعني دغه ګډوډي په لمانځه کي د علیه الصلوٰة والسلام.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ

په تحقیق سره هغه کسان چي کفر کوي (والمراد به الشرک ههنا) دوی خرڅوي او مصرفوي مالونه خپل ددې لپاره چي خلګ منع کړي له لاري څخه د خدای جل جلاله یعني دین الله وهو دین الاسلام بمتابعة النبي صلی الله علیه وسلم.

**یوه سه:** چي بغوي رحمه الله وايي چي دا آیت په شان کي د هغو کسانو نازل سوی دی چي لښکر ته د مکې مکرمې یې چي د بدر پر خوا راروان ؤ ډوډۍ او غوښې یې ورکولې چي هغه کسان دوولس نفره وه لکه ابو جهل بن هشام، عتبه، شیبه زامن د ربیعه. بنیه، منبه زامن د حجاج، ابو البختري زوی د

هشام، نضر بن الحارث، حکیم بن جزام، ابي بن خلف، زمعة بن الاسود، حارث بن عامر او عبا بن عبد المطلب وکلهم من قریش او هر یوه په نوبت سره لس اوښان حلالول، ابن اسحاق په خپل سند سره وایي چي قریشو ته چي قتل او مصیبت د مخورو کسانو او ددوی د رئیسانو بي ساری ورپېښ سو چي د چا زامن او د چا پلرونه او د چا ورونه پکښي قتل سوه او په ډېره شرمناکي ماتي سره مکې ته راغله، نو عبدالله بن ابي او عکرمه بن ابي جهل او صفوان بن امیه او نور خلگ د قریشو هم ورسره وه، نو دوی و ابو سفیان ته ورغله او خبري یې ورسره وکړې او هر چا چي به د ابو سفیان په قافله کي مال درلودی دي ورغلو کسانو وه ابو سفیان او نورو تجارت درلودونکو کسانو ته وویل چي محمد زموږ توله خیار او اشراف راووژل، نو دغه اموال تجارتي دي د محمد سره پر جنگ ولگول سي شاید چي موږ به له ده څخه د خپل واري کسات واخلو، نو د قافلې تولو تجارانو ددوی خبره ومنله ففیهم نزل هذه الآیة "ان الذین کفروا ینفقون اموالهم الی قوله یحشرون".

**پوښتنه**: تا دمخه وویل چي دا آیت په باره کي د دوولس کسانو نازل دی چي لښکر ته د کفارو چي بدر ته روان وه غوښي او ډوډۍ یې ورکوله؟

**ځواب**: دا دواړې واقعې د بدر د جنگ سره تعلق لري، نو امکان لري چي آیت دي په دواړو کي نازل وي یعني بتکرار النزول کما قالوا في سورة الفاتحة انها نزلت مرتین فاحفظ هذا السانح العزیز لعلک لاتجده في غیر هذا التفسیر ومن الله التوفیق.

## فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ ۗ

ژر دی چي دوی به نفقه او مصرف کړي مالونه وروسته به دغه مصرف کړي مالونه ودوی ته غم او پښېماني وگرځي یعني په دنیا کي چي په صرف اموال سره اصل مقصود چي ورکول د دین د اسلام ؤ او یا قتل د علیه الصلوٰة والسلام او د مؤمنانو ؤ ددوی په لاس نه ورغلی نو به کاشکي کاشکي وایي چي مالونه مو نه وای مصرف کړي او دا غم د اموالو به ددوی سره ورسره وي "ثم یغلبون" یعني اخیر

الامر به دوی مغلوب سي وان كان الغلبة لهم احيانا كما في غزوة احد لان الحرب سجال، جنگ لکه د څاه سولاغه يو وار يو اوبه په راکاږي بل وار بل څوک.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ

او هغه کسان چي کافران وي په هره نوع چي کافر وي وه دوږخ ته به د ملکو له خوا سوق او شړل کېږي.

لِيَمِيزَ اللَّهُ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ

چي خدای ﷻ سره جلا کوي کافر او مؤمن، او يا معنی داده چي فساد چي کفر دی د اصلاح څخه چي ايمان دی جلا کوي.

**پوه سه:** چي کلمه د لام متعلق ده په يحشرون يا يغلبون پوري، او يا مراد له خبيث څخه هغه مال دی چي کافرانو په عداوت کي د عليه الصلوٰة والسلام مصرف کاوه، او له طيب څخه هغه مالونه مراد دي چي مسلمانانو په نصرت کي د دين اسلام او د عليه الصلوٰة والسلام مصرفول.

وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ بَعْضَهُ عَلَىٰ بَعْضٍ فَيَرْكُمَهُ جَمِيعًا فَيَجْعَلَهُ فِي جَهَنَّمَ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ

**پوه سه:** چي مراد دلته له خبيث څخه لازماً کافر مراد دی، او "يجعل" منصوب دی عطف دی پر يميز باندي چي هغه منصوب دی په ان مقدره سره وروسته تر لام جاره كما هو القانون النحوي. او گرځوي خدای پاک خبيث يعني الكافر على بعض پر بل کافر، نو جمع کوي دوی يو د بل سره تو له بيا بلا فصل په جهنم کي غورځوي او دا کسان دي خسران او تاوان والا، اى الكاملون في الخسران، ولي چي دوی په خپلو امو الو دوږخ ځان ته رانيوی، سعدي شيرازي قدس سره د عبرت په بيتو کي وايي:

کوس رحلت بکوفت دست اجل ...... ای دوچشم وداع سر بکنيد
ای کف ودست وساعد وبازو ...... همه تو ديع يکديگر بکنيد
برمن افتاده مرگ دشمن کام ...... اخير ای دوستان حذر بکنيد
روز گارم بشد به نادانی ...... من نکردم شما حذر بکنيد

قُلْ لِلَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ يَنْتَهُوا يُغْفَرْ لَهُمْ مَا قَدْ سَلَفَ

ته ووايه وهغو كسانو ته چي كفر يې كاوه كه چېري دوى نهي او منع سي له كفر څخه او د عداوت د رسول او د جنګ سره دده، وه به بخښل كړل سي ودوى ته ما مضىٰ د كفر او فساد او نور ګنهو نه لكه عداوة بالرسول.

**پوه سه**: چي له جنګيانو څخه د بدر او د احد د پېرو كسانو وروسته ايمان راوړى دى لكه ابو سفيان بن حرب، صفوان بن اميه عكرمه بن ابي جهل، عمرو بن العاص وغيرهم خلق كثير. او په بنديانو كي د بدر دغو كسانو وروسته ايمان راوړى دى عباس بن عبد المطلب، عقيل بن ابي طالب، نوفل بن حارث، ابو العاص بن ربيع، ابو عزيز بن عمير، صائب بن ابي جيش، خالد بن هشام مخزومي، عبدالله بن ابي السائب، مطلب بن حنطب، ابو وداعة سهمي، عبدالله بن ابي خلف، وهب بن عمير، سهل بن عمر، عبدالله بن زمعة چي د ام المؤمنين سودة ﷺ ورور ؤ، قيس بن سائب، نسطاس مولى امية بن خلف، سائب بن عبيد اسلم يوم بدر او فديه د ځان چي پر اسارى د بدر مقرره كړه سوې يې هم وركړه، وعدي بن خيار اسلم يوم الفتح، الوليد بن الوليد، خالد چي فديه يې وركړه بيا يې ايمان راوړى، خلګو ورته وويل چي ايمان ته دي نيت ؤ نو فديه دي ولي وركوله؟ ده ورته وويل ما فديه له دې سببه دمخه وركړه چي خلګ ونه وايي چي دى له بنده څخه په عذاب ؤ او فديه يې نه درلوده، نو ايمان يې راوړى، خالد چي ايمان راوړى او مكې مكرمې ته ولاړى خپل ماماګانو بندي كړى، نو عليه الصلوٰة والسلام د خالد د خلاصېدلو لپاره دعاً قنوت وايه په لمانځه كي چي دې ته قنوت نازله وايي هغه قنوت د وترو نه دى مراد چي په وترو كي ويل كېږي

**پوه سه**: چي مسلم له عمرو بن العاص ﷺ څخه روايت كړى دى چي زه ورغلم و نبي ﷺ ته د بيعت لپاره ما ورته وويل چي رسته لاس دي خلاص كړه يعني د بيعت لپاره، ده چي لاس خلاص كړى ما لاس تېول كړى ده مبارك راته وويل مالك يا عمرو يعني ولي دي لاس تېول كړى ما ورته وويل چي زه يو شرط ايږدم، ده مبارك راته وويل ما ذا يعني ستا شرط څه شي

دی، ما ورته وویل چي ما ته به خدای ﷻ بخښنه کوي د تېرو ګناهونو، ده مبارک راته وویل چي اسلام نړوي دمخه ګناهونه وان الهجرة تهدم ماکان قبلها وان الحج یهدم ماکان، والمراد والله اعلم ماسوی حقوق العباد کالدين والغصب والسرقة وغيرها.

وَإِن يَعُودُوا فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْأَوَّلِينَ ۝

او که کافران بیرته جنګ ته راوګرځي د علیه الصلوٰة والسلام نو په تحقیق دمخه تېره سوې ده طریقه زما د اولینو کافرانو سره چي دوی به د انبیاء علیهم السلام ومخالفت ته دوام ورکړی مابه هلاک کړه، کما جری علی اهل بدر. نو دوی دي هم د هغه سنت په انتظار اوسي.

وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ ۚ

او داسي جنګ کوئ اې مؤمنانو د کافرانو سره تر هغه وخته پوري چي فتنه او فساد په مځکه وي یعني چي کافران مسلمانان سي او یا جزیه ورکوي په ډېر ذلت سره کما قال الله تعالی او یعطوا الجزیة عن ید وهم صاغرون" او سي دین ټوله د خدای ﷻ.

**پوه سه:** پوه چي په دې آیت کي "کان" تامه دی او مراد له دین څخه دلته قهر او غلبه او حکم او ملک چي دا ټوله معاني د دین دي کما ذکره في القاموس.

**سوال:** له دین څخه ولي متعارفه معنا نه ده مراد چي ملت اسلام دی؟

**ځواب:** که ملت اسلام مراد سي نو معنا د آیت داسي کېږي چي دین د ټولو خلګو دین د اسلام ګرځي، نو بیا یې د هغه آیت سره تعارض راځي او یعطوا الجزیة آه کما مر قریباً فافهم.

فَإِنِ انتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝

که دوی یعني کافران نهي او منع سي له کفر څخه، نو په تحقیق خدای ﷻ خبر دی په هغه شي چي دوی یې عمل کوي یعني خدای ﷻ به دوی ته جزا ورکوي عن جمیع اعمالهم ان خیر فخیر وان شر فشر، عن ابن عمر رضي الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ امرت ان اقاتل الناس حتی یشهدوا ان لا اله الا الله وان محمداً

رسول الله ويقيموا الصلوٰة ويؤتوا الزكوٰة فاذا فعلوا ذالک عصموا مني دمائهم واموالهم الا بحق الاسلام، قال السيوطي رحمه الله هذا حديث متواترة، او يا د آيت معنا داده ان تنتهوا عن القتال اما بالاسلام او باعطا الجزية فان الله بما يعملون بصير، يعني تاسي جنگ مه ورسره کوئ لعدم وجود شرط القتال وهو الكفر وعدم اعطا الجزية لكن خداى جل جلاله دوى ته د كفر او اسلام او د اعمال حسنه او سيئه جزا ورکوي.

**مسئله**: مسلمانان به د اهل ذمه وو سره چي جزيه ورکوي داسي معامله کوي لکه د مسلمانانو سره يعني ظلم به نه پر کوي مالونه به يې ناحقه نه خوري او نور ورته کارونه به نه ورسره کوي حتى چي په حديث شريف کي راغلي دي چي روايت يې ابو داؤد کړی دی راغلي دي چي رسول الله ﷺ وايي "الا من ظلم معاهداً او انتقصه او كلفه فوق طاقته او اخذ منه شيئ بغير طيب نفس فانا حجيجه يوم القيامة. يعني زه د هغه اهل ذمه وو له خوا دليل ورسره وايم او باز خواست ځندي کوم.

**زباړه**: آگاه اوسئ که چا ظلم وکړی پر اهل ذمه باندي او يا يې حق کم ورکړی او يا يې مکلف کړی په درنه جزيه سره دده تر طاقت بالا او يا يې واخستی له معاهد څخه يو شی بېله دده د رضا. نو عليه الصلوٰة والسلام وايي چي زه دلائل ورسره وايم د معاهد له خوا په ورځ د قيامت.

وَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَوْلَاكُمْ نِعْمَ الْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ النَّصِيرُ ﴿٤٠﴾

او که اعراض وکړي کافران له قبول څخه د دين اسلام او له کفر څخه منع نه سي، او يا معنا داده تولوا عن الانقياد ولم ينتهوا عن القتال، نو پوه سئ چي خداى جل جلاله مولى يعني ناصر دی، نو پر خداى پاک اعتماد وکړئ تاسي وقتال ته اماده سي او باک مه کوئ په عداوت سره ددوی که څه هم دوی تر تاسي په سود وارونه ډېر وي كما في بدر، او ښه بادار دی خداى جل جلاله چي خپل دوستان ضائع نه

پر ښېړدي او ښه کومک کونکی دی چي نه سي مغلوبه کېدای هغه څوک چي خدای ﷻ یې ناصر او مدد ګار وي.

اللهم انصر الاسلام والمسلمین ودمر واهلک اعداء الدین من المشرکین والیهود والنصاری خصوصاً الامریکیین. اللهم مزقهم کل ممزق مزقة لاعدائک انتصاراً لاولیائک اللهم دمرهم وزلولهم زلزالاً شدیداً واشلبهم مدد الامهال وغلی ایدیهم واربط علی قلوبهم ولا تبلغهم الآمال اللهم اشغل الظالمین بالظالمین واخرج المؤمنین من بینهم سالمین وغانمین، واهدنا الی صراط المستقیم بحرمة القرآن العظیم.

**درویش وایي**: چي چي د نهم جزء تفسیر په خیر او عافیت پر پینځلس د شعبان وقت الظهر سنه ۱۴۲۸ هـ وپای ته ورسېدی او تفسیر د لسم جزء شروع کېدونکی دی ان شآ الله اللهم وفقني لتفسیر هذا الجزء العاشر بالخیر والعافیة واجعله لي صدقة جاریة الی یوم القیامة والحمد لله والصلوٰة علی عباده الذین اصطفٰی.

**پوه سه**: چي امام رباني مجدد الف ثاني شیخ احمد السرهندي قدس سره السامي په حصه اول دفتر اول کي صرف دا مصرع راوړي ده "فلا طبیب لها ولا راق" او په هامش کي داسي وایي روزی یک اعرابی بآواز بلند این ابیات می خواند آنحضرت ﷺ که شنیدند محضوظ شد وبتکرار آن امر نمود

کل صبح و کل اشراقی ........... تبکی عینی بدمع مشتاقی
قد لسعت حیة الهوی کبدی ........... فلا طبیب لها و لا راقی
الا الحبیب الذي شغفت به ........... فعنده رقیتی و تر یاقی

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹



# الجزء العاشر

## وَاعْلَمُوْا

# تفسير البيان حنفي

## حضرت مولانا محمد عبد الله الايوبي

الكندهاري الحنفي النقشبندي

مكتبة القراءة والتجويد

كاسي روډ کوټه بلوچستان



پيل په تاريخ اوولس شعبان المبارک (برات) وروسته د سهار تر لمانځه په ورځ د چهارشنبې سنه ۱۴۲۸ هـ ق.

رَبِّ يَسِّرْ وَلَا تُعَسِّرْ وَتَمِّمْ بِالْخَيْرِ وَبِكَ نَسْتَعِينُ يَا فَتَّاحُ.

## وَاعْلَمُوٓا أَنَّمَا غَنِمْتُم مِّن شَيْءٍ

پوه سئ اې مؤمنانو هغه مال چې تاسي په غنيمت راوړی وي يو لږ شی.

**فائده:** د کلمه "ما" حق دلته دا ؤ چې له "ان" څخه جلا ليکل سوی وای، ولې دا "ما" موصوله دی په معنا د الذي كما في قوله تعالى ان ما توعدون لآت" لكن متصل يې وليکی لرسم المصحف العثماني ای الذي.

**پوه سه:** چې غنيمت هغه مال ته وايي هر شی چې وي چې له کافره په زوره او غلبه د مسلمانانو لاسته ورسي، والغنم في الاصل الفوز بالشيئ "من شيئ" حال دی له عائد څخه د موصول المقدر في غنتم ای غنمتوه "شيئ" يې نکره راوړی ددې لپاره چې هر شی چې وي حتى الخيط والمخيط لكن سلب د مقتول د قاتل دی که امام داسي حکم کړی ؤ من قتل قتيلاً فله سلبه.

**مسئله:** که يو يا دوه يا درې مثلا کسان دار حرب ته داخل سي مسارقةً بغير اذن الامام، هورې له بعض کافرانو څخه غنيمت تر لاسه کړي يا په حمله او يا په غلا سره په هغه مال کي چې دوی يې تر لاسه کړي خمس نسته پکښې. ولې چې خمس په هغه مال کي سته چې غنيمت وي او غنيمت کمامر هغه دی چې قهراً او غلبةً په لاس کښېوزي دلته خو داغسې نه ده، او امام شافعي رحمه الله خمس پکښې وايي.

**مسئله:** د کافرانو د بنديانو په باره کي امام لره اختيار دی که يې وژني او که يې مفت ايله کوي او که فديه څنې اخلي. عام مفسرين وايي چې دا آيت په بدر کي نازل سوی دی، او بعض مفسران وايي چې په غزا کي د بني قينقاع نازل سوی

دی چي وروسته تر بدر یوه میاشت او درې ورځي چي د ہرش میاشتي د هجرت نبوي پوره سوې، په حدیث کي د عبادة بن صامت ﷺ راغلي دي چي علیه الصلوٰة والسلام به مسلمانانو غازیانو ته ویل "ادوا الخیاط والمخیط" یعني بو سپنسی او ستن راوړی او که یې ځان ساتی له غلول ځخه یعني له غلا ځخه د غنیمت فانه عار علی صاحبه یوم القیامة رواه الترمذي.

**مسئله**: که مځکي او باغونه د غازیانو په لاس ورغلي ددې اختیار هم د امام په لاس کي دی پر هر چا چي یې تقسیموي.

فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ

خالص خدای ﷻ لره ده پینځمه حصه د هغه مال.

**پوه سه**: چي خدای ﷻ خمس الغنائم پر خپل ملک پرېښو او د غانمین هیڅ ملک نسته پکښې او باقي ځلور حصې د غانمینو دي.

**مسئله**: حنیفیه وایي چي خمس د غنیمت حق قائم بنفسه دی واجب په ذمه کي د غنائمو نه دی ولي چي ددوی ملک نه دی لکه زکوٰة چي په ذمه کي د مکلفینو لازم دی، نو ځکه زکوٰة له اوساخ ځخه د خلګو دی چي نه رسول الله ﷺ او نه آل ته دده چي سادات کرام دي روا دی لشرافتهم، او خمس ورته روا دی.

**فائده**: د فا کلمه یې ددې لپاره روا ده چي په "ما" کي معنی د شرط وه. جمله د "ان لله خمسه" محلاً مرفوع ده مبتدأ ده او خبر یې محذوف دی، والتقدیر ان لله خمسه حق" او یا خبر د مبتدأ محذوف دی ای فالحکم ان لله خمسه کذا في روح المعاني والمظهري وروح البیان.

**پوه سه**: چي خدای پاک وروستني آیت کي مصارف د خپل حق خاص بیانوي.

وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ

او د رسول ﷺ ته او وخاوندانو ته د قرابت د علیه الصلوٰة والسلام.

**درویش وایي**: چي په ذوی القربی کي اختلاف دی. بعض علماً رحمهم الله وایي چي ټوله قریش دي، مجاهد او علي بن حسین رحمهما الله وایي چي فقط بني هاشم

دي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي بنوهاشم، بنو عبد المطلب او بني عبد مناف دي، والاول مذهب الحنفية كما يفهم من عبارة المظهري.

**درويش وايي**: چي دا مظهري دی چي د حنفيه مذهب او شافعيه مذهب يې سره جلا کړی کمامر من قبل، او علامه بغدادي په روح المعاني کي په تفسير کي د جزء عاشر مذهب د حنفيانو داسي بيان کړی دی "واريدبهم (ای بذی القربی) بنو هاشم وبنو المطلب المسلمون آه، يعني صرف بني عبدشمس او بني نوفل څنډي وتلي دي.

**پوه سه**: چي د عليه الصلوٰة والسلام نسب دادی محمد ﷺ بن عبد الله بن عبد المطلب بن هاشم بن عبدمناف (د عبدمناف څلور زامن وه هاشم، مطلب، عبدشمس او نوفل. او د هاشم دوه زامن وه عبد المطلب و اسد او د عبد المطلب لس زامن وه عبد الله، ابو طالب، حمزة، عباس، ابولهب، حارث او زبير دري په کوچني والي مړه سوه) بن كلاب بن مرة بن كعب بن لوی بن غالب بن فهر بن مالك بن النضر بن كنانة، نو د نضر اولاد قريش بولي دون ولد كنانة ومن فوقه.

**فائده**: د جبير بن مطعم رضي الله عنه روايت دی چي عليه الصلوٰة والسلام سهم د ذوی القربی وويشی، نو بنو مطلب ته يې ورکړی، نو ابن جبير رضي الله عنه وايي زه او عثمان بن عفان ورغلو و عليه الصلوٰة والسلام ته موږ وويل يا رسول الله هؤلآ اخواننا بني هاشم لاتنكر نفسهم ولي چي ته په دوی کي داخل يې، لکن زموږ ورونو بنو المطلب ته دي ورکړه او موږ دي منع کړو او سره ددې چي قرابت زموږ ؤ او بنو المطلب تاته يو دي کمامر في بيان النسب. عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل بنو هاشم وبنو المطلب شيئ واحد وشبك بين اصابعه.

**درويش وايي**: چي د عليه الصلوٰة والسلام ددې وينا مطلب دادی چي يو وخت قريشو يو قرارداد سره تصويب کړی او کاغذ يې نوشته کړی ؤ چي نه به د بني هاشمو سره څوک کښېني او نه به شی پر خرڅوي او نه به نکاح ورسره کوي تر څو چي دوی محمد موږ ونه سپاري چي موږ يې قتل کړو په دې قرارداد کي بنو المطلب نه سوه داخل بلکي د بني هاشمو سره و شعب ابي طالب ته ولاړل كذا في السنن

والمغازي، حاصل دادی چي بني هاشم او بني المطلب په جاهليت او اسلام کي سره موافق وه او يو د بل نصرت يې کاوه لافي مجرد النسب فقط ای لکونهم من بني عبد مناف والا فبني عبد الشمس وبني نوفل کلهم من اولاد عبد مناف فافهم.

**فائده:** په "لذوی القربی" سره يې لام راوګرځوی او داسي يې نه وويل وللرسول وذی القربی تاچي څوک ددې توهم ونه کړي چي ذوی القربی د رسول په حصه کي ورګډ دي "واليتامی" جمع د يتيم ده وهو الصغير المسلم چي پلار يې مړ وي نو چي فقير په خمس کي يوه حصه دي وده ته ورکړي.

**يوه سه:** چي د يتيم قيد په صغير سره له دې جهته دی چي په صحيح حديث کي راغلي دي چي روايت يې له حضرت علي ﷺ څخه سوی دی لا يتم بعد الاحتلام رواه ابو داؤد "والمساکين" جمع د مسکين ده چي اهل د فاقه او حاجت وي له مسلمانانو څخه.

## وَابْنِ السَّبِيلِ

د لاري زوی وهو المسافر البعيد عن ماله، وان کان له مال في وطنه.

**درويش وايي:** چي لام د لله وللرسول ولذی القربی مع المعطوفات لپاره د استحقاق دی. نو له ظاهره د آيت داسي فهمېږي چي مصارف د خمس شپږ دي لکن جمهور د علماؤ او فقهاؤ رحمهم الله وايي چي ذکر د خدای ﷻ لپاره د تعظيم دی او لپاره د شروع د کلام په نامه د خدای ﷻ تبرکاً فان الدنيا والآخرة کلها له تعالی، نو د غنيمت خمس دي شپږ ځايه نه کوي بان يصرف سهم منها الی الله تعالی وذهب بعضهم الی انه يسدس ويصرف سدسه تعالی الی عمارة الکعبة که کعبه مبارکه نژدې وه، او که نه وه نژدې په يوه مسجد کي دې مصرف کړي په هغه ځای کي چېري چي خمس واجب سوی وي، او بعض علماء رحمهم الله وايي چي وسهم الرسول ته دې ورضم کړي، او د رسول الله ﷺ سهم ساقط سو په وفات سره د عليه الصلوٰة والسلام لان الانبياء عليهم السلام لا يورثون کما ورد في الحديث الصحيح. او ابن الشيخ وايي چي د عليه الصلوٰة والسلام خليفه په نبوت کي څوک نه ؤ، نو د سهم خليفه يې هم څوک نه سي کېدای هذا عند الامام الاعظم رحمه الله او امام

شافعي رحمه الله وايي چي د عليه الصلوٰة والسلام سهم دي و مسلمانانو و مصالح ته ومافيه قوة الاسلام ورضم کړل سي، او د ذوى القربى سهم هم په وفات سره د عليه الصلوٰة والسلام ساقط سو فلا يعطي لهم لاجل قرابتهم بل يعطي لفقرهم، او عليه الصلوٰة والسلام چي ذوى القربى ته سهم ورکاوه په سبب د قرابت نه د فقر حتى چي عباس بن عبد المطلب رضي الله عنه ته يې هم برخه ورکوله مع غناه وکثرة ماله، مطلب دادى چي ذوى القربى د نورو فقراؤ سره برابر دي يعني په فقراؤ کي داخل دي، نو ذوى القربى دي تر نورو مقدم کوي په سبب د قرابت ددوى او اغنياؤ ته د ذوى القربى دي نه ورکوي.

**مسئله مهمه**: په شرح معاني الآثار للامام ابو جعفر الطحاوي رحمه الله اعلم الناس بمذهب ابي حنيفة رحمه الله کي وايي چي د امام ابو حنيفه څخه روايت دى چي صدقات ټوله که فرضي وي او که نفلي روا دي وبني هاشمو ته والحرمة کانت في عهد النبي ﷺ لوصول خمس الخمس اليهم لا لشرافة النسب، نو په وروستی زمانه کي يعني په وفات د عليه الصلوٰة والسلام چي دوى خمس الخمس له لاسه ورکړی، نو دوی ته صدقه روا ده قال الطحاوي رحمه الله وبالجواز نأخذ.

**فائده**: چي د پيغمبر برخو څخه دوې ساقطي سوې يعني سهم الرسول وسهم ذوى القربى، نو خمس د غنيمت به نن ورځ درې برخي کوي لليتامى سهم وللمساکين سهم ولابنا السبيل سهم، په تحفه کي وايي چي دا درې دلې مصارف د خمس دي عندنا يعني عند الحنفية رحمهم الله او هغه هم پر طريقه د استيعاب نه دی يعني خامخا به يې دې دروسرو ډلو ته څه څه ورکوي حتى که يې يوه صنف ته ورکړي هم روا ده او جمعيت هم نه دی شرط حتى و يوه سړي ته يې هم صرف روا دی.

**درويش وايي**: چي دا و مختصر بيان چي د علم التفسير د موضوع سره چي قرآن مبارک دی برابر او اختلافات د مذاهبو او دلائل د هر مذهب او بيا جوابات ورکول د فقهاؤ رحمهم الله د مختصرو کتابو او د فتاوى وو د مذهب حنفي او د مختصرو کتابو د شروح سره سمون لري، او امام مظهري رحمه الله د خپل عادت

سره برابر تر دي ځايه پوري د آيتو تفصيل کړی دی، شعر
ومن مذهبي حب الديار لاهلها ............... وللناس فيما يعشقون مذاهب
**درویش وايي**: چي د بني هاشمو په باري کي ما د طحاوي قول ذکر کړی يو خو
ددې سببه چي طحاوي رحمه الله هم فقيه دی او هم محدث دی کما يظهر من مطالعة
کتابه شرح معاني الآثار، او بل دا چي طحاوي رحمه الله په اتفاق د حنيفيانو اعلم
الناس بمذهب ابي حنيفه رحمه الله ګڼل سوی دی، او بل سبب دادی چي زموږ په
بلادو کي يعني افغانستان او پاکستان کي له بني هاشمو څخه نور نفر نه دي
مشهوره ببله هغه قوم چي سيدان يې بولي چي د فاطمة الزهرى رضي الله عنها اولاد دي.
نو خلګ عموماً د سيد احترام لري، نو مزدوري او خدمت نه په کوي، نو چي
صدقه هم نه سي ورته روا. نو دا سادات کرام چي مسکينان وي بايد له لوږي
څخه مړه سي فاعتقادي هو اعتقاد الطحاوي رحمه الله.
**درویش وايي**: چي علماً او اهل الله رحمهم الله په اجتماع سره دا وايي چي امر
التقوى فوق امر الفتوى والى هذا اشير في الحديث النبوي الصحيح استفت
قلبک ولو افتاک المفتون، نو له دې کبله اغنياؤ ته د ساداتو دا په کار ده چي
کامل احتياط وکړي په اخستلو کي د صدقاتو خصوصاً الزکوٰة لانها وسخ
الاموال بالاتفاق. ولي چي دا احتمال باقي دی چي سبب د حرمت د صدقاتو دي
پر دوی د شرافت نسبيه له کبله وي والله اعلم بالصواب والعلم بالاسباب عند
علام الغيوب. ايوبي وايي.

تقوٰى کوچ سره د عالم ............ خصوصاً بيا د عالم
نادر له دې څه مستثنى دي ............ اکثري حکم خو دادی

إِن كُنتُمْ آمَنتُم بِاللَّهِ وَمَا أَنزَلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا يَوْمَ الْفُرْقَانِ

که تاسي ايمان لرئ پر خدای جل جلاله باندي په توحيد سره او په دې سره چي خدای
قادر مطلق دی او ناصر لرسوله والمؤمنين او ايمان پر ما انزل على عبدنا من الآيات
والمعجزات په ورځ د فرقان يعني په ورځ د فرق بين الحق والباطل وهو يوم بدر.
**درویش وايي**: چي مظهري رحمه الله دا آيت يکلخته د ماقبل سره اولاً بې تعلقه

تفسیر کړی دی، او بیا یې د ماقبل سره تعلق ورکړی دی حیث قال چې ان کنتم شرط دی جزا یې محذوفه ده دل علیه واعلموا في ابتدا هذا الجزا ای ان کنتم آمنتم بالله، فاعلموا چې خدای ﷻ ګرځولی دی خمس الغنیمة للمذکورین في الآیة فسلموه الیهم او قطع کړی خپلې طمعې له هغه خمس څخه او قناعت وکړئ په اخماس باقیه وو سره.

**بوه سه:** نفس علم مقصود بالذات نه دی بلکې مقرون بالعمل دی وهذا هو تعلق هذه الآیة له ماقبل سره، او روح المعاني بعینه هم دغه تفسیر کړی دی، او دا قدر یې زیاته کړې ده چې ولې جزا محذوفه بولي هغه ماقبل فاعلموا نه بولي له دې سببه چې تقدم د جزا پر شرط پر صحیح مذهب د اهل عربیه نه دی روا.

**بوه سه:** چې "وما انزل" عطف دی پر لفظ د "الله" او کلمه د ما موصوله ده باتفاق المفسرین او عائد یې محذوف دی ای ما انزل به، او اضافت د عبدنا لپاره د تشریف د مضاف دی او مراد ځنې محمد ﷺ دی.

**درویش وایي:** چې هوا د مظهري رحمه الله تفسیر یوازې د ما انزل الله علی عبدنا" په آیاتو او معجزاتو سره ده په تفسیر صحیح دی لکن انزال په معنا عام دی یعنې ایصال النفع الی محمد ﷺ کیف ماکان، مظهري رحمه الله وایي د ما انزلنا په تفسیر کې من الملائکة والنصر والآیات المعجزة (آیات په معنا لغوي دی یعنې علامات)

(۱) خدای ﷻ دده سره وعده کړې وه د احدی الطائفتین ای العیر والنفیر که څه هم د اصحاب میل وعیر ته ؤ لکن خدای ﷻ وعده په نفیر سره ورپوره کړه.

(۲) خدای ﷻ په بدر کې داسې باران وورواوه چې د مسلمانانو لپاره نعمت ؤ او د کفارو لپاره عذاب ؤ کمامر.

(۳) خدای ﷻ ملکو ته د بعض جنګ امر ورکړی تاچې د مسلمانانو حوصله افزایي وسي حیث سمعوا ولم یرو اقدم حیرون وهو فرس جبرئیل علیه السلام او مسلمانانو ولیدله چې د بعضې کافرانو سرونه له اوږو څخه پر مځکه لوېدله وهذا حق ضرب الملائکة بالسیاط.

(۴) آنحضرت ﷺ یو مټ شیګې ورو غور ځولې او د ټولو کافرانو چې تعداد

يې زر (۱۰۰۰) ته نژدې ؤ ولوېدلې.

(۵) عليه الصلوٰة والسلام عقبه بن ابي معيط ته ويل كه ته ما پيدا كړې دپاندې تر غرو د مکې زه به تا صبراً وژنم او هغسې په بدر کي واقع سوه.

(٦) خدای ﷻ خپله وعده د مسلمانانو سره پوره کړه في قوله تعالى "ان يعلم الله في قلوبكم خيراً" حتى چي له عباس ﵁ څخه شل وقیه فدیه اخستل سوې وه د هغه په عوض کي وروسته تر اسلامه خدای پاک شل مریان ورکړه چي ټوله يې پر تجارت گومارلي وه.

(۷) خدای ﷻ و علیه الصلوٰة والسلام ته خبر ورکړی چي عمیر بن وهب او صفوان بن امیه د علیه الصلوٰة والسلام د قتل مشورې په مکه کي سره کړي وې خدای پاک دی مبارک ځندي وساتی او عمیر بن وهب اسلام راوړی او داعي الی الاسلام د خلکو سو.

(۸) د خورما له وچ لرگي يا له بل وچ لرگي څخه صافه توره جوړه سوه. بيهقي او ابن عساکر ﷫ له عمر ﵁ څخه روايت کړی دی چي د عکاشه بن محصن ﵁ د بدر په ورځ د شدید جنگ له سببه توره ماته سوه. نو عکاشه ﵁ و علیه الصلوٰة والسلام ته راغلی چي زما توره ماته سوه. نو علیه الصلوٰة والسلام وچ لرگی د خورما وغیره په لاس ورکړی عکاشه ﵁ چي څرنگه د علیه الصلوٰة والسلام له لاس مبارک څخه لرگی واخستی سره وه يې ښوروی دده په لاس کي یوه اوږده توره وه، نو عکاشه ﵁ د فتح تر وخته په هغه توره جنگ کاوه. او دا توره يې عیون بلله. او عکاشه ﵁ به په هغه توره په غزواتو کي د علیه الصلوٰة والسلام جنگ کاوه تر هغه وخته پوري چي طلحة بن خويلد عكاشه ﵁ شهید کړی انا لله وانا الیه راجعون. بیا نو الله اعلم چي هغه توره څه سوه.

(۹) د بيهقي په روايت چي د سلمه بن اسلم ﵁ توره د بدر په ورځ په لاس کي ماته سوه، علیه الصلوٰة والسلام چي راغلی په لاس کي يې د خورما وچ لرگی ؤ نو هغه يې ورکړی او دا يې ورته وويل اضرب به فاذا هو سيف جيد. نو دا توره به هم د سلمه ﵁ سره ورسره وه په نورو جنگو کي هم، حتى چي ابو عبيده

سلمه ﷺ شهید کړی انا لله وانا الیه راجعون.

(۱۰) بیهقي روایت کړی دی چي د بدر په ورځ حبیب بن عدي ﷺ پر اوږه په توره وهل سوی ؤ چي اوږه پوري ځړېدله رسول الله ﷺ پر تو کړه او اوږه یې ورپور ته کړه بیرته سمه اوږه سوه.

(۱۱) بیهقي له قتاده بن نعمان ﷺ څخه روایت کړی دی چي دی پر سترګه وویشتل سو د بدر په ورځ حتی چي د سترګي حدقه یې پر بارخو ځړېدله، نو خلګو غوښتل چي سترګه ځني قطع کړي. نو خلګو د علیه الصلوٰة والسلام څخه په دې باره کي پوښتنه وکړه. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي یا سترګه یې مه قطع کوئ، نو یې قتاده ﷺ وروغوښتی نو د سترګي حدقه یې په ورغوي سره ور پورته کړه روغه سترګه سوه حتی چي دا فرق یې چا نه سوای کولای چي د قتاده کومه سترګه ټپي وه.

(۱۲) ابن سعید ﷺ په طبقات کي وایي په روایت د اسحاق عن عبدالله بن نوفل، چي نوفل په بندیانو کي د بدر ؤ، نو علیه الصلوٰة والسلام ور ته وویل چي ستا هغه نېزې په فدیه کي راکړه چي په جده کي دي. نوفل ورته وویل چي زما په نېزو بېله ما او خدایه بل هیڅ څوک نه وه خبر "اشهد انک رسول الله" او ایمان یې راوړی او په جده کي د نوفل ﷺ زر نېزې پرتې وې.

(۱۳) بیهقي له زماعة بن رافع ﷺ څخه روایت کړی دی چي زه د بدر په ورځ په سترګه کي وویشتل سوم او سترګه مي رنده سوه، نو علیه الصلوٰة والسلام مي په سترګه کي را تو کړه او دعا یې راته وکړه، نو ماته دې سترګي بیا ازار نه دی رسولی.

**درویش وایي:** چي په بدر کي ښخي ډېري تعجب آوره معجزې ښکاره سوې حتی چي د علیه الصلوٰة والسلام رسالت وبداهت ته ورسېدی. بلکي له اجلي بدهیاتو څخه وګرځېدی مثل الکل اعظم من الجزء.

## يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ ط

چي سره یو ځای سوې دا دوې ډلي چي یوه حزب الله وه او بله حزب الشیطان وه

چي اوولس شپې د روژې د مياشتي تېري سوي وې، شپاړس مياشتي وروسته د هجرت نبوي ﷺ.

وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۴۱﴾

او خداى پاک پر هر شي قادر دى لږ نفر لکه د بدر مسلمانان درې سوه ديارلس نفره پر ډېرو کسانو چي کفار مکه وه تخميناً زر کسه غالب کولای سي.

**فائده:** د بدر غزا اوله غزا ده چي عليه الصلوٰة والسلام پکښي حاضر وو د مشرکانو سره لپاره د اعلاً د کلمة الحق.

إِذْ أَنْتُمْ بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا وَهُمْ بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوٰى وَالرَّكْبُ أَسْفَلَ مِنْكُمْ

هغه وخت چي تاسي واست پر غاړه د شېلې "الدنيا" مونث دى د ادنى يعني هغه غاړه چي مدينې ته نژدې وه، او مشرکان پر لېري غاړه د شېلې وه چي د يمن پر خوا وه له مدينې څخه، او قافله يعني ابو سفيان و اصحابه تر تاسي کښته وه د درياب پر غاړه چي درې ميله له بدر څخه پر مسافت وه.

**پوه سه:** چي ددې جملې فائده داده چي دښمن ډېر قوي ؤ، له يوې خوا پر "عدوة القصوى" لوى لښکر له مکې څخه راغلى ؤ او له بلې خوا ابو سفيان او ملګري هم پر لنډه مسافه او جنګ ته هم اماده وه او په عين حال کي عدوة الدنيا سسته رېګنه ځمکه وه چي پښې په ښوتلې او تګ ډېر په مشکل پکښي کېدى او هلته اوبه هم نه وې يعني تر باران دمخه بخلاف العدوة القصوى چي هغه کلکه ځمکه وه او تګ راتګ پر اسانه ؤ او اوبه هم پکښې وې، نو په داسي حالاتو کي مغلوبيت د مسلمانانو کافرانو ته يقيني ؤ او غلبه د مسلمانانو له عادته لېري کار ؤ لکن انعکس الامر بقدرته تعالى، يعني په عدوة الدنيا کي د باران په سبب اوبه هم پيدا سوې او تګ راتګ ډېر پر اسانه سو او هم دغه باران پر عدوة القصوى چي د دښمن ځاى ؤ ډېر سخت وورېدى چي اوبه يې ورخرې پرې کړې چي د ښښتنګ ور نه وې او هغه کسان يعني کفار قريش چي خپله غلبه يې متيقن بلله مغلوبه سوه او ډېر مړي او بنديان يې له لاسه ورکړل کمامر او د شرمناکه شکست سره مخامخ سوه او هغه ضعيفه ډله د مسلمانانو چي درې سوه

دیارلس نفره وه چې غلبه یې خرق العادة ګڼل کېدل د خدای ﷻ په قدرت تامه په نصرت سره غالبه سوه او ښمنې د غنیمت یې هم لاس ته ورغله.

**الاعراب:** الرکب مبتدأ ده او اسفل منصوب علی الظرفیة دی او مرفوع المحل خبر د مبتدأ دی او تولـه جمله حال ده، او رکب بسکون الکاف جمع د راکب ده مثل صحب صاحب، او راکب په اصطلاح قدیم د عربو د اوښ سفاره ته وایي لکه چې فارس د آس سپاره ته وایي او د ابو سفیان قافله ټوله اوښان وه.

وَلَوْ تَوَاعَدْتُّمْ

او که چېري تاسي ایها المؤمنون د کفارو سره د اجتماع د جنګ لپاره وعده کړي وای.

**درویش وایي:** چې وههنا محذوف دل علیه جزاً، نو محذوف دادی (ثم علمتم قتلکم وکثرة عدوکم وقوتهم وشوکتهم وکثر السلاح معهم)

لَاخْتَلَفْتُمْ فِي الْمِيعَادِ وَلَٰكِن لِّيَقْضِيَ اللَّهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا

تاسي مؤمنانو به مخالفت په وعده د اجتماع القتال له هیبته د کفارو او نا امیدي ستاسي له ظفر څخه پر دوی کړي وای "ولکن" ای لکن الله جمعکم من غیر میعاد، ولي چي تاسي د عیر د ابو سفیان په نیت له مدینې څخه راوتلي واست، او کفار مکه د قافلي د حفاظت لپاره له مکې څخه راوتلي وه، نو بېله میعاده په بدر کي سره یو ځای سو است، او ستاسي او د کفارو تر منځ جنګ جاري سو، چي خدای پاک جاري کړی هغه کار چي وګرځېدی کونکی، نو "کان" په معنا د صار دی هغه امر څه شی ؤ چي نصر د اولیاؤ د خپل ؤ پر دښمنانانو او اعزاز د دین او په لویه پیمانه هلاک د کافرانو او اسارت د دوی او غنیمت جمع کول.

لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَن بَيِّنَةٍ وَيَحْيَىٰ مَنْ حَيَّ عَن بَيِّنَةٍ

تاچي هلاک او مړه سي هغه څوک چي مړه سي له کفارو څخه. سعدي چلپي المفتي رحمه الله وایي چي د "عن" کلمه په معنا د بعد ده کما في قوله تعالی عما قلیل لیصبحن نادمین. ولي اصل د عما عن ما ؤ دغه عن په معنا د بعد دی په اتفاق د مفسرینو رحمهم الله ای بعد قلیل من الزمان، نو په دې آیت معنا داده تاچه

هلاک د هالک ددوی وروسته تربینة یعني حجة ظاهرة، او پر حقیقت د اسلام چي په سترګو یې ولیدی او ژوندي اوسئ څوک چي ژوندي پاته سي له کفارو څخه د مکې وروسته تر لیدلو د حجت ظاهره پر حقیقت د اسلام کما ذکرنا من المعجزات الظاهرات في غزوة بدر. حاصل دا چي نه مړه او نه ژوندي ته به د عذر ځای د قیامت په ورځ پاته وي په جناب کي د رب العزت ﷻ.

**سوال**: ژوندی خو به حجت ظاهره په سترګو وویني لکن هالک به څرنګه حجت ظاهره وویني؟

**ځواب**: په هالک کي مجاز بالمشارفة دی ای من شارف الهلاک کما في قوله علیه الصلوٰة والسلام من قتل قتیلاً فله سلبه لان القتیل لایقتل. نو علیه الصلوٰة والسلام نژدې ومرګ ته قتیل وباله.

**اعراب**: لیهلک آه" بدل دی د "یقضی" څخه او یا متعلق دی په مفعولاً پوري. روح البیان، روح المعاني او مظهري.

وَاِنَّ اللّٰهَ لَسَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۴۲﴾

په تحقیق خدای ﷻ خبر دی په کفر د من کفر او اعماله وعقابه او په ایمان د من آمن واعماله وثوابه.

**پوښتنه**: د سمیع او علیم په جمع کي څه فائده ده؟

**ځواب**: سمیع راجع و اقوالو ته د کافرانو او د مؤمنانو دی. او علیم راجع و اعتقادیاتو ته د کافرانو او مؤمنانو یعني سمیع هو العالم بالمسموعات لابحاسته السمع لانه تعالی منزه عن الجسمیة ومعنی علیم خبر په معتقداتو د دوارو ډلو.

اِذْ يُرِيْكَهُمُ اللّٰهُ فِيْ مَنَامِكَ قَلِيْلًا ۗ

"اذ" متعلق دی په اذکر مقدر پوري یعني په یاد کړه هغه وخت. یا متعلق دی په علیم پوري یعني خدای ﷻ خبر دی ستاسي په مصالحو چي دوی به تا ليدل په خوب کي ستا لږ کسان تا چي ته اصحاب کرامو ﷺ ته زېری او اخبار وکړی چي جانب مقابل چي کفار مکه دي لږ خلګ دي او ددوی حوصله بلنده سي او

وجنګ ته اماده باش او تیار سئ او په زړو کي دلاوري پیدا سي.

**واقعه**: اهل حدیث د خوب داسي بیان کړی دی چي علیه الصلوٰة والسلام د بدر په ورځ ابتدا صحابه کرامو ﷺ ته داسي وویل چي جنګ به تر هغو نه شروع کوئ چي زه اجازه درنه کړم. او که کافران نژدې راغله په غشو یې ولئ یعني د علیه الصلوٰة والسلام مطلب دا ؤ چي کفار چي لېري وي غشي بې فائدې مه ورغورځوئ تاچي د غشو بچت وکړل سي کما جا صریحاً في حدیث البخاري واستبقوا نبلکم آه. او دا یې هم ورته ویلي وه چي توري تر هغو له تیکي څخه مه کاږئ چي کافران په تاسي ګډ نه سي. نو علیه الصلوٰة والسلام په جوپړه کي بیده سو، نو ابوبکر ﷺ ناري کړې یا رسول الله قد دنا القوم ومالوا علینا چي کافران نژدې راغله او پر موږ حمله کونکي دي! علیه الصلوٰة والسلام له خوبه راویښ سو او په خوب کي خدای ﷻ په ده لیدلي وه قوم یعني کفار یې لږ په لیدلي وه که څه هم في الواقع ډېر وه، نو علیه الصلوٰة والسلام واصحابو ته خبر ورکړی.

**سوال**: د انبیا علیهم السلام خوب خو وحي دي، نو څرنګه علیه الصلوٰة والسلام ته خدای پاک په خوب کي لږ معلوم کړه خلاف الواقع؟

**جواب**: خدای پاک قلت معنوي د کفارو مصور کړی په قلت صوري حسي سره ولله ﷻ مصالح وحکم في کل فعل.

وَلَوْ أَرَىٰكَهُمْ كَثِيرًا لَّفَشِلْتُمْ وَلَتَنَٰزَعْتُمْ فِى ٱلْأَمْرِ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ سَلَّمَ

او که کفار خدای ﷻ په تاسي لیدلي وای یعني په ذریعه د خوب د علیه الصلوٰة والسلام چي کافران ډېر دي، نو تاسي به بزدله سوي وای او په تاسي کي به اختلاف الآرا پیدا سوي وای بعضو به ویلای چي جنګ به کوو که څه هم کفار ډېر دي، ولي چي خدای پاک زموږ ناصر دی کما ورد في القرآن کم من فئة قلیلة غلبت فئة کثیرة او بعضو به ویلای راځي چي فرار وکړو ولا تلقوا بایدیکم الی التهلکة کریمة، د "سلم" مفعول محذوف دی ای سلکم من الفشل والتنازع.

إِنَّهُۥ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ

په تحقیق خدای خبر دی په هغه څه چي د خلګو په سینو یعني په زړو کي وي من الجبن والشجاعة والایتلاف والاختلاف فلذا فعل مافعل.

وَإِذْ يُرِيكُمُوهُمْ إِذِ الْتَقَيْتُمْ فِي أَعْيُنِكُمْ قَلِيلًا

او په یاد کړئ هغه وخت چې خدای پاک په تاسې کافران لږ معلوم کړه هغه وخت چې تاسې د دوی سره په جنګ اخته سولاست تاچې تاسې پر دوی دلاوره سئ. ابن مسعود ﷺ وايي چې کفار موږ ته دومره لږ معلوم سول په سترګو کې چې ما يوبل صحابي ته وويل چې کافران به نيوي (۹۰) کسه وي هغه راته وويل چې زما په خيال به سل کسه وي او دوی زر کسه وه، او موږ په دغه وخت کې د کفارو يو بندي ونيوی موږ ور ته وويل چې تاسې څو کسه واست هغه راته وويل چې زر کسه.

وَيُقَلِّلُكُمْ فِي أَعْيُنِهِمْ

او تاسې يې ايها المؤمنون لږ ورکړلاست په سترګو کې د کافرانو يعني تاچې دوی ونه تښتي، حتی چې ابو جهل وويل ان محمداً او اصحابه اکلة جزور. يعني د محمد او دده د اصحابو د يوه اوښ غوښې بس دي. او ابن المنذر روايت کړی دی چې ابو جهل وخپلو خلګو ته وويل د بدر په ورځ "خذوهم اخذاً واربطوهم في الجبال ولا تقتلوا منهم احداً" يعني تاسې نسئ اصحاب د محمد او تړئ ياست په مراندو او مه وژنئ له دوی څخه هيڅ څوک.

لِيَقْضِيَ اللَّهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا ۗ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿٤٤﴾

لپاره ددې چې خدای پاک هغه کار چې کېدونکی ؤ پای ته ورسوي يعني اعزاز د اسلام او اهل اسلام او اذلال د شرک او د حرب د شرک، او خدای ﷻ ته يعني د ارادې او مشيت ته د خدای راجع کړل کېږي ټول کارونه.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا

اې هغه کسانو چې ايمان يې راوړی وي هغه چې ملاقي سئ تاسې يعني د جنګ لپاره د يو جماعت سره يعني د کافرانو لکن قيد د کفر خدای ﷻ نه کړی ذکر، ولې چې مسلمانانو خو بيله کافرانو د بل چا سره جنګ نه کاوه.

**يوه سه:** چې اذا شرط دی په معنی د ظرف پکښې موجوده ده او فاثبتوا يې جزا ده، يعني ځان مضبوط کړی يعني تښتی مه لان الفرار من الزحف کبيرة کما

ورد في الحدیث الصحیح، وورد في الحدیث الصحیح لاتتمنوا لقا العدو فاذا لقیتموهم فاصبروا. تاسي آرزو مه کوئ د دښمن د ملاقات او چي ورسره ملاقي سواست ددوی سره بیا نو صبر کوه یعني فرار مه کوی.

**سوال**: سبب د نهي له تمنی څخه د لقا العدو مع ان الحرب مع العدو عبادة لان التمنی للقائه ینبغي عن الوثوق والاعجاب بقوته وهذا لاینبغي للمؤمنین. ولي چي حقیقي ناصر خدای ﷻ دی لاقوة المرء.

## وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۝

او ذکر د خدای ﷻ ډیر کوئ شاید چي تاسي به نصرت پیدا کړئ په برکت د خدای ﷻ د ذکر.

**درویش وایي**: چي ددې آیت په اثر مجاهدین د الله اکبر نارې وهي د جنګ په میدان کي د کافرانو سره. نو شاید تاسي به په برکت د ثبات او ذکر د خدای ﷻ فلاح وموموئ یعني پر دښمن به غالبه سئ.

## وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ

او تاسي اطاعت کوئ د خدای او د رسول په امورو کي د قتال یعني پر حکم د خدای او د رسول اعتماد کلي کوئ په امورو کي د قتال.

## وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ

او تاسي یو د بله اختلاف الآرا مه کوئ کما في احد، نو تاسي په سبب د اختلاف الآرا به بزدل وګرځئ.

**پوه سه**: چي "فتفشلوا" جواب د نهي دی او وروسته وتذهب منصوب دی عطف پر جواب د نهي مذکور دی.

**پوه سه**: چي ریح په اصل کي باد ته وایي لکن دلته مستعار ده دولت او غلبې لپاره. او سدي ﷫ وایي جرئتکم دلاوري ستاسي. او نضر بن شمیل ﷫ وایي قوتکم وهذه المعاني کلها متقاربة. او بعض مفسرین ﷭ وایي چي مراد له ریح څخه حقیقت یعني باد. ولي نصر پر اعدا پیدا کیږي چي د جنګ په وخت خدای پاک یو باد پیدا کوي چي ریح النصر یې بولي. ولهذا قال علیه الصلوٰة

والسلام نصرت بالصبا (ای باد الشرق) واهلکت عاد بالدبور (د کښتي باد ای الغربي) متفق علیه، او له نعمان بن المقرن ﷺ څخه روایت دی چي ابن شیبه يې روایت کړی دی، نعمان ﷺ وایي چي زه حاضر سوی یم د علیه الصلوٰة والسلام سره په غزواتو کي د کفارو، نو چي جنګ به يې شروع نه کړی په اول کي د ورځي انتظار به يې کاوه تر هغه وخته پوري چي لمر به زوال وکړی او شرقي بادونه به پیدا سوه نو به يې جنګ شروع کړی، او داغه رنګه په قصه کي د احزاب د غزا چي مشهوره په غزوة الخندق سره ده، راغلي دي چي قریشو او غطفان قبیلي او بنو قریضه او بني نضیر یوه میاشت هغه خندق چي په مشوره د سلمان فارسي ﷺ چار چاپېره پر خپلو عسکرو نبي ﷺ راګرځولی ؤ، وروسته تر یوې میاشتي محاصري د شپې له خوا سخت باد صبا پیدا سو چي د کافرانو چي ذکر سول خېمې يې دغه باد یوړې کتموي يې ورچپه کړې او کمبلي او بستري يې باد یوړې او د خندق خاوري يې پر دوړولې حتی چي راغلي کافران پر خپل سر بېله جنګه وه تښتېدل حتی چي یو په بل نه وه سره خبر لشدة الریح وکثافة ظلمة اللیل.

جمله ذرات زمین وآسمان ........... لشکر حق اند گاه امتحان
باد را دیدی که بادعان چه کرد ........... آب را دیدی که باطوفان چه کرد

وَاصْبِرُوْا ۚ اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ۟

او صبر کوئ په سختیو کي د قتال مع الکفار ولي په تحقیق ملګری دی خدای ﷻ په عون او نصرت د صابرانو سره.

**درویش وايي**: چي صبر یو جامع لفظ دی ټوله دین ته د اسلام باختلاف حرف التعدیة یعني صبر که متعدي په علی سي یعني صبر علی الشيئ ټولو مأموراتو ته شامل دی مثلاً پر لمانځه. روژه، زکوٰة او حج سره صبر وکړئ یعني دغه عبادات که څه هم پر نفس شاق دي باید مسلمانان صبر پر وکړي او که صبر متعدي په عن سره سي یعني الصبر عن الشيئ ټولو معاصیو او منهیاتو ته شامل دی، ولي چي معاصي او منهیات د نفس اماره د خواهشاتو سره دی کشرب الخمر والزنی واللواطة وغیرها، باید مؤمن صبر ځندي وکړي او د نفس

اماره په خوله ونه کړي، او که صبر متعدي په في سره سي يعني الصبر في الشئ تولو مصائبو او کړاوو ته شامل دی کالمرض وموت الابوين والابن وغيرهما چي له دې جمله څخه دي سختي اوکړاو د قتال د کفارو بايد مسلمان صبر پکښي وکړي وهو اشد انواع الصبر لمافيه من تعريض الروح المحبوب الى الموت والهلاک فتأمل واحفظ هذه الفائدة الجليلة. بخاري په خپل صحيح کتاب کي له سالم ﷺ څخه روايت کړی دی قال کتب عبدالله بن ابي اوفى الي کتاباً فقرئته ان رسول الله ﷺ په بعضو ورځو کي چي دی ملاقي کېدی د دښمن سره او انتظار يې وکړی چي لمر زوال وکړی، نو په خلکو کي ودرېدی يعني د اصحابو کرامو په منځ کي او داسي يې وويل يا ايها الناس لاتتمنوا لقآ العدو واسئلوا الله العافية فاذا لقيتم فاصبروا واعلمو ان الجنة تحت ظلال السيوف (اې خلګو تاسي تمنا مه کوئ د دښمن د ملاقات يعني جنګ او سوال کوئ له خدايه څخه د عافيت يعني د سلامتيا له جنګ څخه، او که د دښمن سره ملاقي سولاست يعني جنګ پيدا سو. بيا نو صبر کوئ پر سختيو د جنګ، او په دې پوه سئ چي جنت د تورو تر سايو لاندي دی يعني جنت ته رسېدل په استعمال د تورو دی په قتال کي د کفارو) ثم قال اللهم منزل الکتاب و مجری السحاب وهازم الاحزاب اهزمهم وانصرنا عليهم (اې الله چي نازلونکی د کتاب يې يعني قرآن کريم او جاري کونکی د وريځي يې، او شکست ورکونکی د احزابو يعني د کفارو د ډلو شکست ورکړې يعني دغه موجوده في الحال کافرانو ته او موږ ته مرسته راکړې پر دوی باندي يعني وروسته يې جنګ شروع کړی)

**پوه سه:** چي خدای ﷻ چي امر وکړی ومسلمانانو ته د جهاد او صبر پر جهاد په وروسته آيت کي خدای ﷻ په اخلاص د نيت په جهاد کي ولي چي هر عمل چي وي د خير اعتبار نسته بېله اخلاصه د نيت يعني صرف او صرف به د سرې مرضات الله غرض وي لما في اول صحيح البخاري انما الاعمال بالنيات وانما لامرئ مانوی آه او داغه رنګه مسلم له ابو هريره ﷺ څخه روايت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ په تحقيق خدای ﷻ نه ګوري ستاسي صورتو او اموالو ته

لکن خدای ﷻ گوري ستاسي زړو او عملو ته. او داغه رنګه بخاري او مسلم په ګډه روایت کړی دی له ابن عباس ﷺ څخه دا قول د علیه الصلوٰة والسلام چي د یو حدیث طویل جمله ده ولکن جهاد ونیة.

**درویش وایي**: چي دمخه تر تفسیر د آیتو د ریاً تحقیق واورئ، ریا له رؤیت څخه مشتق ده یعني د خلګو لیدل او سمعه چي ګاهي له ریا سره یو ځای راځي له سماع څخه مشتق ده یعني شهرت او اوازه په خلګو کي، دې دواړو ته شرک خفي ویل سوی دی په شریعت کي، نو لکه عمل د خیرات او صدقات چي د شرک جلي سره ثواب او اعتبار نه لري لکه د مشرکینو د مکې دغه رنګه عمل د خیر په صورت د ریاً او سمعه ثواب نه لري.

**مسئله**: د دین د فقهاو ﷭ په اجتماع د فرضي عمل لکه لمونځ وغیره په نفس کولو کي ریاً نسته البته په هیئت کي ریاً سته مثلاً چي یوزاي لمونځ کوي چټک چټک بېله مراعاتو د تعدیل الارکان کوي، او چي د خلګو په حضور کي وي په ښه خشوع او خضوع او تعدیل الارکان سره یې کوي. نو په دې صورت کي د ریاً اصل فرضي لمانځه ثواب خدای پاک په اخیرت کي ورکوي او د هیئت ثواب یې نسته. او په نفل کي په اصل او هیئت دواړو کي ریاً ځای لري. مثلاً چي یوازي وي نفلي لمونځ نه کوي او چي د خلګو په حضور کي وي بیا یې کوي او یوازي یې بېله هیئته د خشوع کوي او په اجتماع کي یې په هیئت سره د خشوع کوي. د مرائي مثال علماً ﷭ داسي وایي لکه په اوسنی زمانه کي چي د یو سړي په لاس کي یوه غنډه بسته د جعلي روپو وي یعني ناچلنه. نو خلګ چي ورته ګوري داغه وایي چي ددې سړي څومره غټه بسته د روپو په لاس کي ده، نو دده صرف دغه د خلګو وینا فائده ده که چېري دی دا بسته یو دکان ته وروړي نو یو ګز تو کر مثلاً یا یو بل شی نه په رانیول کېږي.

به روی وریاً خرقه سهل است دوخت ..... وګر باخدا درفروشی نکوست

**حکایت**: چشم دید واقعه درویش وایي زه چي د ملا عالم په کلي کي ملا وم، نو یو بل ملا زما مېلمه وُ او زما د مېلمنو کوټه پر بام وه چي په ځینو کي به موږ



Scanned by CamScanner

ورختلو، دوی چي مو وخوړله ماخستن د لمانځه لپاره جامع مسجد ته ولاړو د
لمانځه له خوا چي راغلو، نو مېلمه راته وویل چي زه خو د شپې د لمانځه عادت
لرم که تکلیف نه وي یوه ګډوه اوبه راله راوړه، ما له کوره یوه ډکه ګډوه ورته
راویستل او د اوبو څیښلو سړوبی مي هم ورته راوړی، خیر شپه تېره سوه سهار
چي زه لمانځه ته تلم په څینو کي وریپور ته سوم چي د جماعت وخت ته به دی خبر
کړي، ده زما تربې واورېدی چابک له خوبه راوغورځېدی او ګډوه یې په ناوه کي
چپه کړه یعني ماته یې دا په نظر کي راکوله چي ما خو ګډوه د تهجد د لمانځه
لپاره استعمال کړې ده، د ریا کار په باره کي سعدي ﷫ څه ښه ویلي دي

اګر سیم اندوده باشد نحاس ......... توان خرج کردن بر ناشناس
منه آب زر جان من بر پشیز ......... که صراف دانا نه ګیرد به چیز
چه قدر آورده بنده خوردپیس ......... که زیر قبا دارد اندام پیس

په تاتارخانیه کي وایي چي یوه فتاوی ده ولا ریا في الصوم انتهی.

**درویش وایي**: چي مراد د فتوی دادی چي په فعل کي د روژې ریا نسته.

**سوال**: که د چا نفلي روژه وي په خوله په مجلس کي د خلګو ووایي لپاره د
اظهار د خپلي روژې ورځي ببخي اوردې دي روژه یې زور غواړي مثلاً؟

**ځواب**: دا ریا د فعل نه ده د قول نعم په فعل کي د روژې داسي ریا راتلای سي
چي یو سړی وي ډېري نفلي روژې نسي تاچي مخ یې ژړ سي او بدن یې ډنګر سي،
نو به خلګ ووایي چي دا ډېر متقي، صالح او ولي سړي دی مرید الآخرة دی.

**درویش وایي**: چي وګورئ دومره تکلیف پر ځان تېروي د خلګو لپاره او که
دي عاقل وای دا دومره تکلیف به یې د خدای ﷻ د رضا لپاره کښلی وای تاچي
د اولیا، صالحین عند الله به ګرځېدلی وای، علما ﷭ وایي وما الدنیا حتی
یطلبها العاقل بفعل الآخرة ویضع عمره الی حلول اجله.

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ خَرَجُوا مِن دِيَارِهِم بَطَرًا وَرِئَاءَ النَّاسِ

او تاسي مه ګرځئ ایها المؤمنون په جهاد او جنګ کي د کفارو سره، لکه هغه
کسان چي راووتل د خپلو کورو چي مراد ځني مشرکین د مکې دي چي د ابو جهل

سره له مکې ځخه راوتلي وه چي متکبرين وه چي تعداد يې زر کسه ؤ کمامر د ابو سفيان د قافلې د ساتني لپاره "بطراً" په فخر او کبر سره، بعض علماً رحمهم الله وايي چي بطر دادی چي سکر يعني مستي له نعمته سرې مشغوله کړي له شکر ځخه، لپاره د رؤيت د خلکو يعني خرجوا متکبرين بکثرة العدد والاموال چي خلک ددوی مدح وکړي په شجاعت او جوانمردی ددوی او اقرار وکړي په عظمت ددوی.

## وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ

او دوی خلک منع کول له لاري ځخه د خدای ﷻ چي ايمان بالله بالتوحيد او ايمان بمحمد ﷺ بالرسالة راوړئ.

روايي وايي ابو سفيان چي خپله قافله د درياب پر غاړه د مسلمانانو تر حدود چي د قافلې د تاړاک لپاره له مديني ځخه راوتلي وه په سلامتيا تېره کړه، نو قريشو او ابو جهل ته يې حال ورواستاوه چي تاسي خو زما د قافلې د حفاظت لپاره له مکې ځخه راوتلي واست، داده زما قافله په سلامتيا تېره سوه، نو تاسي بيرته مکې ته رجوع وکړئ، ابو جهل وويل والله لانرجع حتى نرد بدراً، نو په بدر کي به څو ورځي اقامت کوو، نو هلته به اوښان حلال وو او خلکو ته به ډوډی ورکوو او شرابونه به څيښو او مينځياني به رقصونه راته کوي او ټول عرب به زموږ دا کار کردګي واوري بيا به زموږ د جنګ وخواته امادګي هم ونه کړي ابداً، خير بدر ته راورسېدل، نو خدای پاک د خمر په ځای کي د مرګو ګلاسونه په دوی وڅيښل، او په ځای کي د غزلو د مينځيانو يې د قريبانو ژړا په دوی واورېدل او په ځای کي د شجاعت د شهرت په عربو کي يې په دوی خجالت او شکست ولېدی، نو په دې آيت کي خدای پاک مسلمانان منع کړل د کفارو په شان له رياکاري ځخه په غزواتو کي د کفارو او امر يې کړه په اخلاص د نيت په ساتنه کي د دين او په مدافعت کي د نبي ﷺ.

## وَاللَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ۝

او خدای پاک پر هغو کارو چي قريشو يې عمل کاوه يعني ريا محيط دی يعني علماً.

وَإِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ أَعْمَالَهُمْ

او په یاد کړه هغه چي ښائسته کړل ودوی ته شیطان اعمال ددوی، ددوی له اعمالو څخه عداوت د علیه الصلوٰة والسلام او دده مبارک د قتل اراده مراد ده لکه دمخه چي تېره سوه چي دوی چي په دار الندوة کي مشوره سره کوله شیطان د شیخ نجدي په صورت کي ورته راغلی. او رایه د ابو جهل چي په اجتماعي وژلو دي علیه الصلوٰة والسلام ووژل سي یې تصویب کړه، او په بدر کي ابلیس په صورت د سړي ابو جهل تر لاس نیولی ؤ.

وَقَالَ لَا غَالِبَ لَكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَإِنِّي جَارٌ لَّكُمْ

او شیطان ورته وویل چي نسته غلبه کونکی پر تاسي نن ورځ له خلګو څخه، ولي چي نفر مو هم ډېر دي او مالونه مو هم ډېر دي دا یې ددوی په خیال کي وراچوله چي دا کارونه چي تاسي کوئ دا د خیر کارونه دي یعني قتال د علیه الصلوٰة والسلام او د مؤمنانو سره.

**پوه سه**: چي ابلیس په دغه ورځ په صورت د سراقة بن مالک بن جعشم ؤ چي د بني کنانه مشر ؤ او قریش د بني کنانه څخه ببرېدل چي دوی په جنګ کي د مسلمانانو مرسته ونه کړي، نو ځکه شیطان ورته وویل واني جار لکم یعني زه ستاسي پناه درکونکی یم د بني کنانه له خوا، یعني له بني کنانه څخه ببغمه اوسئ زه د هغو ذمه واره یم.

فَلَمَّا تَرَاءَتِ الْفِئَتَانِ نَكَصَ عَلٰى عَقِبَيْهِ

نو چي سره ولیدل دې دوو ډلو مؤمنانو او مشرکانو رجوع وکړه شیطان چي لاس یې په لاس کي د ابو جهل ؤ او په صورت د سراقه بن مالک ؤ د تېښتي پر خوا یعني مدبراً او لاس یې د ابو جهل له لاسه کش کړی، دا هلته چي ابلیس جبرائیل ولیدی، ابو جهل ورته وویل یا سراقة الست تزعم انک جار لنا، ده په جواب کي د دا وروسته آیت مضمون ورته ووایه.

**درویش وایي**: چي مظهري رحمه الله په دې مقام کي یو حدیث راوړی دی په حواله د ډېرو کتابو د رواتو چي ابن عباس رضي الله عنهما وویل چي امد الله نبیه ﷺ والمؤمنین بالف من

الملائکة چي پر پینځه سوه باندي آمر جبرئیل ؤ او پر پینځه سوه باندي میکائیل.

**درویش وایي:** چي دا حصه خو د قرآن او د احادیثو صحیحه وو سره د بخاري او مسلم او سنن اربعه موافق ده، وروسته مظهري رحمه الله په روایت د ابن عباس رضي الله عنهما ویلي دي چي ابلیس هم د شیطانانو یو لښکر راوستلی ؤ په صورت کي د رجال د بني مدلج او بیرغ د ابلیس په لاس کي ؤ او دی په خپله د سراقه بن مالک بن جعشم په صورت ؤ، ابلیس چي جبرئیل ولیدی سره د خپل لښکره وتښتېدی.

**درویش وایي:** چي د ابلیس ظهور په صورت کي د سراقه بن مالک هم په صحیح احادیثو ثابته ده، اما دا تو چي د ابلیس سره لښکر د شیطانانو په صورت کي د بني مدلج د رجال نهایته غریبه ده او په صحاح سته وو کي نه ده راغلي والله اعلم بالصواب.

وَقَالَ إِنِّي بَرِيٓءٌ مِّنكُمْ إِنِّيٓ أَرَىٰ مَا لَا تَرَوْنَ إِنِّيٓ أَخَافُ ٱللَّهَ ۚ وَٱللَّهُ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ﴿٤٨﴾

او شیطان وویل کفارو ته د مکې چي زه ستاسي څخه بېزاره یم، زه هغه شی وینم چي تاسي یې نه وینئ یعني جبرئیل ومیکائیل والملائکة علیهم السلام زه ووېرېږم له خدای څخه او خدای جل جلاله سخت دی عذاب دده.

**سوال:** شیطان څرنګه وویل چي اخاف الله او سره ددې چي خوف من الله د مؤمن کامل شان دی؟

**ځواب:** بغوي رحمه الله وایي چي ابلیس چي په صورت د سراقه ؤ دا خبره چي یې وکړه اني اری مالا ترون دا یې رښتیا وویل او دا چي یې وویل اني اخاف الله دا یې دروغ وویل والله مابه مخافة من الله لانه علم انه ملعون ابدي لکن دا د لعین کار دی چي خلګ و کفر او معاصي ته رابولي چي دوی پکښې واقع کړي، نو دوی خپله بېزاري څندي ښکاره کړي او ووایي چي زه له خدایه بېرېږم لکه د بدر په موضوع کي چي د مکې کفار یې پر جنګ باعثه کول او ورته ویل یې لا غالب لکم الیوم واني جار لکم څرنګه چي یې دوی د ملکو سره جنګ ته مخامخ کړه قال اني بريء. او عطا رحمه الله وایي چي معنا یې داده اني اخاف ان یهلکني الله.

**درویش وایي:** چي شیطان دا خبره له ډېرې وارخطایي څخه وکړه، کنه نو خدای پاک چي دی ملعون ابدي وګرځاوه ده مهلت غوښتی واخستی الی یوم یبعثون چي مراد ځني د قیامت ورځ ده او خدای پاک ده ته دا مهلت هم ورکړی.

کلبي رحمه الله وایي چي معنا یې داده چي زه بېرېږم چي جبرئیل به رانه سي او خلګو ته به مې رسوا کړي. عن طلحة بن عبید الله رضي الله عنه ان رسول الله قال ما رایٔ الشیطان یوماً هو فیه اصغر ولا ادحر ولا احقر منه یوم عرفة وما ذالک الا لما یری من تنزل رحمة الله وتجاوز الله عن الذنوب العظام یعني للحجاج الا ماکان یوم بدر قبل و ما ریٔ من یوم بدر قال اما انه قد ریٔ جبرئیل علیه السلام وهو یزع الملائکة.

راوي وایي چي ابلیس چي دا خبره وکړه حارث بن هشام چي بیا وروسته مسلمان سو دی و ابلیس ته یې ورحمله کړه او د حارث دا خیال ؤ چي سراقه بن مالک دی ابلیس حارث په ځیګر کي وواهه حارث غوځار سو شیطان ولاړی حتی چي دریاب ته ورسېدی او هلته یې داسي وکړه او لاسونه یې پورته کړه وقال یارب وعدک الذي وعدتني (یعني اطلب وعدک) اللهم اني اسئلک نظرتک ایاي.

**درویش وایي:** چي له دې روایته دا واضح سوه چي د شیطان هغه خبره رشتیا وه اني اخاف الله، لکن دا خوف خوف ایماني نه ؤ لکه مؤمن چي له خدایه بېرېږي بلکي له قتله په دغه ورځ وبېرېدی، لکن ابو جهل چي د سراقه تېښته ولیدل د خلګو د ارامولو لپاره یې وویل چي تاسي د سراقه په تګ خطا نه وځي ولي چي ده دمخه د محمد سره دا تړون کړی دی چي زه به وتښتم او د اهل مکې په زړه کي به خوف پیدا سي دوی به هم شکست وخوري او په قتل د عتبه او شیبه هم غمجن کېږئ مه، ولي هغو په جنګ کي تلوار وکړی او ابو جهل ورته وویل چي زما دي په لات او عزی قسم وي او موږ له دې میدانه نه ځو تر څو چي موږ محمد او ده اصحاب په رسیو ونه تړو او چي دوی مو وتړل هیڅ څوک دې وژني نه حتی موږ ودوی ته سوء صنیع ددوی ورښیو.

**پوښتنه:** خلګو یعني مکې والو ته دا څرنګه معلومه سوه چي سراقه په اصل کي شیطان ؤ؟

**ځواب:** مکې والو یعني کفارو د مکې سراقه په مکه کې ولیدی او ورته وه یې ویل چې زموږ د جنګ صفونه دې څرنګه رامات کړه او موږ ته دې شکست راپه برخه کړی؟ سراقه ورته وویل والله ما علمت شیئاً من امرکم وماکنت فیکم حتی هزمتکم بهزیمتي، نو اهل مکه دده خبره نه منله حتی چې د فتح مکې په کال اکثره اهل مکه مسلمانان سوه، او دا آیتونه چې یې واوریدل نو ددوی یقین سو چې سراقه په اصل کې شیطان ؤ.

**درویش وایي:** چې صاحب د روح البیان یو دقیق سوال سره له ځوابه ذکر کړی دی چې ددې سوال او ځواب په راوړلو سره د ډېرو خلګو شکوک او شبهات او د زړه خیري پاکې کړي دي، اول ددې سوال او پښتنې په عنوان وایي:

کیف یجوز ان یتمکن ابلیس ان یخلع صورة نفسه ویلبس صورة سراقة، ولو کان قادراً علی ان یجعل نفسه في مثل صورة انسان لکان قادراً علی ان یجعل غیره کالحمار والفرس وغیرهما انساناً اذ لافرق بین جعل نفسه انساناً وبین جعل غیره انساناً فاذا قدر علی الاول یلزم قدرته علی الثاني وهو محال بداهته، بیان روح البیان د تفسیر حدادي داسې ځواب رانقل کړی دی ان الله جعل ابلیس في غزوة بدرٍ علی صورة سراقة ولي ابتداءً خدای ﷻ قادر دی چې یو انسان په صورت د سراقه پیدا کړي چې دغه سراقه ؤ، نو خدای پاک پر دې هم قادر دی چې ابلیس دې مصور په صورت د سراقه کړي انتهی مع زیادة من العاصي للتوضیح، او بیا روح البیان له قاضي ابو یعلی رحمه الله څخه یو نامعقوله ځواب رانقل کړی دی او زه یې نه نقل کوم ولي چې په مطالعه ددې تفسیر نور نوي شکوک او شبهات پیدا کېږي، وروسته یې ډېر معقول او په زړه پوري ځواب ورکړی دی چې جبرئیل علیه السلام سره ددې چې شپږ سوه وزر لري لکه علیه الصلوٰة والسلام چې په خپل صورت اصلي جبرئیل په مځکه کې لیدلی دی او بل واریې د معراج په شپه لیدلی دی کما في جمیع کتب الاحادیث الشریفة والتفاسیر المعتبرة او سره د دغه به جبرئیل په قدرت د خدای ﷻ و علیه الصلوٰة والسلام ته ګاهې په صورت د دحیة بن خلیفة کلبي راغلی فاذا امکن هذا التبدل بقدرته

تعالی فعلی هذا قس جعله تعالی ابلیس بصورة سراقة اذ لافرق نظراً الی قدرته تعالی بین التبدیلین، بیا روح البیان د برصیصا په قصه سره چي دمخه په دې تفسیر کي تېره سوه تمسک کړی دی فتذکر هداک الله تعالی هذا تحقیق المقام لعلک لا تراه مجموعاً في غیر هذا التفسیر بتوفیق الله العزیز.

إِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ

**پوه سه:** چي کلمه د "اذ" منصوبه ده محلاً په اذکر مقدر سره والمعنی په یاد کړه هغه چي منافقینو د مدینې د اوس او د خزرج د قبیلې او هغه کسانو چي په زړو کي یې مرض ؤ دا خبره دوی هلته کوله چي علیه الصلوٰة والسلام په درې سوه دیارلس (۳۱۳) کسه مسلمانانو کي تخمیناً وبدر ته ولاړی او کفار مکه په اندازه زر کسه وه، نو منافقینو وویل چي دا درې سوه او دیارلس کسه وجنګ ته د زرو کسو ووتل په خپل دین سره مغرور دي.

**پوه سه:** چي له "الذین في قلوبهم مرض" څخه مراد ځیني مفسرین رحمهم الله وایي چي داغه منافقین مراد دي.

**سوال:** عطف خو تغایر د معطوفینو غواړي؟

**ځواب:** تغایر وصفي په عطف کي هم کافي دی کما تقرر في کتب النحو، او بعض مفسران رحمهم الله وایي چي د مکې مشرکان ځندي مراد دي، او بغوي رحمه الله وایي چي مراد ځندي هغه مسلمانان دي دي چي په مکه کي وه او ضعیفه وه توان د هجرت یې نه درلودی او یا خپلو کافرانو قریبانو دوی له هجرت نه منع کول نو قریش چي بدر ته راتله دوی دغه مسلمانان په زوره د ځان سره له مکې څخه راویستل هغه چي بدر ته راغله او لږ والی د مسلمانانو یې ولیدی په زړو کي یې شک پیدا سو یعني د اسلام په حق والي او مرتد سوله العیاذ بالله منه.

غَرَّ هَٰؤُلَاءِ دِينُهُمْ

خطایستلي دغه کسان یعني المؤمنین دین ددوی چي په درې سوه دیارلسو کسو جنګ کوي د زرو کسانو سره.

**پوه سه:** که قائلین ددې قول مرتدین د مکې سي کمامر قبیل ذالک نو دغه

مرتدان ټوله په جنګ کې د بدر ووژل سول وهم قيس بن الوليد وابو قيس چي د بني مخزوم د قبيلې وه والحارث بن زمعه وعلي بن اميه والعاص بن منبه وغيرهم.

وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَإِنَّ اللّٰهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿۴۹﴾

او هغه څوک چي پر خدای ﷻ تکيه وکړي او تفويض د امورو و خدای ﷻ ته وکړي، نو په تحقيق خدای ﷻ غالب دی چي نه دليل وي هغه څوک چي پناه ده ته وروړي بلکې جدي نصرت ورسره کوي په جنګ کې د کافرانو وان قلوا كما في غزوة بدر بالمشاهدة او خدای ﷻ حکمت لري يفعل بحكمته البالغة ما يستبعده العقل كما فعل بكفار مكة وهم ألف مالم يكونوا يحتسبون من القتل بايدي ۳۱۳ والهزيمة منهم.

**درويش وايي:** چي تر دې ځايه خدای ﷻ ذکر کړی سوء عاقبت د مکې د کفارو "في الدنيا بالقتل والهزيمة بايدي رجال قليلة جداً" اوس ددوی د عاقبت بيان کوي بعد الموت.

وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ يَتَوَفَّى الَّذِينَ كَفَرُوا الْمَلَائِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ وَذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ ﴿۵۰﴾

**درويش وايي:** چي مخاطب په دې سره عليه الصلوٰة والسلام دی.

**سوال:** ټوله مفسرين رحمهم الله د "ترى" چي مضارع ده ترجمه په رئيت سره کوي چي ماضي ده، سبب يې څه دی؟

**ځواب:** سبب يې قانون نحوي دی چي کلمه د لو چي پر مضارع داخله سي په معنی يې د ماضي ګرځوي لکه ان شرطي چي پر ماضي داخل سي معنی يې د مضارع ګرځوي، والمعنى لو رئيت يا محمد هغه وخت چي ملکي د وفات راخلي والذين كفروا ته که په بدر کي وې او که بل ځای کي، نو ملکي وهي مخان ددوی او شاوي ددوی په غم چينو سره د اور او پر شوند انو يې د وسپنو په غمچونو سره، وقوله وذوقوا عطف دی پر يضربون باندي په اضمار د قول ای ويقولون ذوقوا څوند وګورئ د عذاب د سونګ.

**درويش وايي:** چي تعبير يې په ذوق سره وکړی ولي چي اصل عذاب خو دخول

النار دی في الآخرة دا د مرگ په وخت کي وهل او ټکول وهغه عذاب النار ته لکه ذوق دی یعني لکه یو سړی چي صرف د یو شي خوند ګوري.

**پوه سه:** چي د "لو" ځواب محذوف دی ای لرئیت امراً قطیعاً والملائکة فاعل د یتوفی او یضربون په تقدیر د قول حال دی له ملائکه څخه.

ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿۵۱﴾

او دغه عذاب په دنیا او په وخت کي د وفات چي تاسي ته در کول کېږي په سبب د هغه کارو من الکفر والمعاصي چي تاسي دمخه کړي وې، کفر که څه هم په لاسو نه دی لکن تعبیر له نفس څخه په بالیدین وکړی لان اکثر الاعمال یزاول بالیدین، او په تحقیق خدای ﷻ نه دی ظالم پر بندګانو.

**پوه سه:** چي صیغه د "ظلام" دلته لپاره د مبالغې نه ده "لانه یفسد المعنی لانه یتوهم منه مطلق ظلم منه تعالی" بلکې په معنی د ذی ظلم ده مطلقاً للعبید د بندګانو لپاره چي بیله ګناه دې په عذاب کړي یا تر استحقاق د ګناه بالا عذاب ورکړي، مظهري ؒ وایي چي جمله وان الله لیس آه عطف ده پر ما قدمت باندي والتقدیر ذالک بما قدمت آه وبان الله آه، او روح البیان وایي چي وان الله لیس آه په محل کي رفع د علی انه خبر د مبتدأ محذوفي دی ای والامر ان الله لیس آه او جمله تولہ تذییل د مقرر ده مضمون د ماقبل.

كَدَاْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ

خبر د مبتدأ محذوفي دی ای دأب عادت د کفارو د قریشو په کبر او عناد ستا سره لکه عادت د آل فرعون ای اتباعه وقومه الذین مثلهم في الظلم والطغیان والکفر والعصیان په دې آیت کي خدای پاک تسلي د علیه الصلوٰة والسلام کوي.

**پوه سه:** چي اصل د دأب په لغت کي دوام ورکول دي و یو عمل ته کما یقال فلان یأدب في کذا ای یداوم علیه او ځان بنه پکښې ستړی کوي او وروسته ته هر عادت ته دأب وایي لان الانسان یداوم علی عادته.

وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

او هغه کسان چي دمخه وه تر آل فرعون لکه قوم د نوح او ثمود او عاد وغیرهم

"كفروا بايات الله" دا جمله بيان دی د داْب د كفارو او مراد لـه آياتو څخه دلائل د توحيد دي في الانفس والآفاق، او يا معجزات د انبيأ عليهم السلام دي على الاطلاق.

فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ۗ اِنَّ اللّٰهَ قَوِیٌّ شَدِیْدُ الْعِقَابِ

نو دوی خدای پاک ونیول يعني عذاب يې ورکړی په سبب د ګنهو ددوی من الكفر والمعاصي والطغيان، په تحقيق خدای پاک صاحب د قوت او قدرت دی او سخت د عذاب دده لمن عصاه في الاوامر والمنهيات.

**پوه سه:** چي اصل د ټولو اوامرو توحيد دی او اصل د ټولو منهياتو شرک دی.

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ لَمْ یَكُ

ای ترتب د عقاب پر کفر او عصيان د بندګانو دون ان يقع العذاب ابتداءً بدون العصيان که څه هم خدای پاک پر ابتدائي عذاب هم قادر ؤ.

**پوښتنه:** ابتدائي عذاب بدون المعصية به ظلم نه وي؟

**ځواب:** يا! ولي چي بندګان ټول له ملک د خدای جل جلاله دي والتصرف في ملكه كيف شاْ ليس بظلم.

**پوه سه:** چي د "يک" اصل يكون ؤ لم جازمه چي پر داخل سو د نون حرکت يې حذف کړی وروسته يې واو پسي حذف کړی لالتقاْ الساكنين بيا يې وروسته نون پسي حذف کړی تخفيفاً په سبب د مشاهبت د حرف لين سره ای الواو واليأ والالف لكون النون حرف غنة. نو لکه حروف لين چي په وخت کي د جزم حذف کيږي نون يې هم حذف کړی والباعث على ذالک كثرة استعمال فعل الكون ولم يحذف النون في لم يصن ولم يخن لقلة استعمالها كما لا يخفٰى.

مُغَیِّرًا نِّعْمَةً اَنْعَمَهَا عَلٰی قَوْمٍ

خدای جل جلاله تغير ورکونکی دی په يو نعمت سره چي د هغه نعمت احسان يې کړی وي د يو قوم سره، يعني ددوی نعمت په عذاب نه بدلوي. لکه د اهل مکه نعمت که څه هم کافران وه يعني نعمت د امن، عزت، رزق او منع د اصحاب الفيل لـه دوی څخه كمايدل عليه سورة الفيل دا ټولـه د بيت الحرام د جوار په

سبب، لکن چونکه دوی ددې نعمت شکر ونه وایه او د اسلام او قرآن او نبوت ځخه یې انکار وکړی، نو خدای ﷻ په عوض کې د مذکوره افعالو ددوی نقمت او عذاب د قتل او بند پر دوی مقرر او مسلط کړی د بدر په ورځ.

**حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ**

تر هغه وخته پورې چې وونیني خدای پاک بدلوي هغه حال چې په دوی پورې تعلق لري او اداسې حال چې بد ترین حال وي لکه قریشو چې بدل کړی حال ددوی چې متابعت د دین د اسماعیل ﷺ او د ملت د ابراهیم ﷺ په بت پرستئ سره او برسیره پر هغه په انکار له نبوت ځخه د علیه الصلوٰة والسلام او عداوت دده مبارک او د مؤمنانو او منع کول د قریشو آنحضرت ﷺ واصحابه ﷺ په کال د حدیبیې له عمرې ځخه او دوی سعې کول په وینه بیولو کې د هغه چا چې لا اله الا الله به یې ویله، او تکذیب بالآیات القرآنیة به یې کوله الی غیر ذالک من اعمالهم الخبیثة بعد بعثة النبي ﷺ.

**وَاَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ**

او په تحقیق خدای ﷻ اوریدونکی دی لابحاسة السمع او عالم دی په ټولو اعمالو د ټولو بندګانو وغیر ذالک من الامور.

**كَدَاْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ فَاَهْلَكْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ ۚ وَكُلٌّ كَانُوْا ظٰلِمِيْنَ**

**پوه سه:** چې کداْب آه خبر د محذوف مبتدأ دی یعني داْب قریش وغیرهم من الذین کفروا بمحمد ﷺ لکه عادت د اتباعو د فرعون واکتفی الآل عن ذکره یعني داسې یې نه وویل کداْب فرعون وآله، ولې د اتباعو حال یې انکار ؤ له نبوت ځخه د موسی ﷺ نو دده حال خو په طریق اولی داغه ؤ، او هغه کافران چې تر آل فرعون دمخه وه لکه قوم نوح، ثمودیان، عادیان وغیرهم دوی تکذیب وکړی د آیاتو د رب ددوی وقد مر قریباً تفصیل الآیات، نو ما دوی هلاک کړه بعض په رجفه سره او بعض په خسف سره وبعضهم بالریح وبعضهم بالمسخ، او

غرق مو کړی آل فرعون په دریاب کي او دا ټوله کافران ظالمان وه پر خپلو ځانو بالکفر والمعاصي، نو ددې کافرانو پر ډول مو ږ هلاک کړل کافران د بدر په تورو د مسلمانانو، ولي خو دوی هم تکذیب وکړی په آیاتو د خدای ﷻ.

**پوښتنه**: مثل ددې آیت دمخه هم تېر سو په ادنی تغیر د عباراتو. نو بیا را ګرځول به یې تکرار نه وي؟

**ځواب**: مقصود له راګرځولو څخه تاکید دی د انداز د قریشو کما قیل:

پند گیر از مصائب دیگران ............ تانه گیرند دیگران زتو پند
نرود مرغ سوی دانه فراز ............ چو دیگر مرغ بیند اندر بند

او په عین حال کي په راګرځولو کي اظهار د عظیم بلاغت د قرآن عظیم الشان دی کما لا یخفٰی.

**درویش وایي**: چي په دې آیتو سره اشاره ته و سوء حال ته د هغو مسلمانانو چي رضاً د مخلوق یې پر رضاً د خالق مختاره کړې وي او دین یې د تابع د دنیا ګرځولی وي لکه ریاً کاران له مسلمانانو څخه. او یا دین په دنیا خرڅوي لکه د مسلمانانو جاسوسان وکافرانو ته. وهذا الداً قد عم حتی تجاوز من العوام الی الخواص کما لا یخفٰی والامثلة غیر خافیة.

إِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِندَ اللَّهِ الَّذِينَ كَفَرُوا فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٥٥﴾

**پوه سه**: چي "دواب" جمع د دابة ده وهي کل مایتحرک ویدب علی الارض اعم من الانسان وسائر الحیوانات، په تحقیق شر او بد د دابو په نېز د خدای ﷻ هغه کسان دي چي کافران دي، نو دوی ایمان نه راوړي.

**نکته**: خدای ﷻ شر الناس نه ووایه بلکې شر الدواب یې ووایه اشاره یې ودې ته ده چي دوی له انسانیته بالکل ګوښه دي البته په دواب کي به وي لکن په دوابو کي هم دوی تر ټولو دوابو بد دي عندالله. ولي دوابو لره خو عقاب بالنار نسته او دوی لره سته.

**درویش وایي**: چي مظهري ﷫ وایي چي "فهم لا یؤمنون" احتراز دی له هغو کافرانو څخه چي دمخه یې کفر کاوه او وروسته یې ایمان راوړی فحس

اسلامهم انتهى. زه وايم چي د مظهري دا خبره به هلته صحيح واى چي په ځاى كي د فا واو واى، نو دا جمله به حال او قيد واى نو بيا به قيد لپاره د احتراز واى د ماذكره المظهري، لكن دا عبارت په فا د تفريع پر ماقبل راغلى نو د هغو خلكو دي، والحق ماقاله صاحب روح البيان حيث قال فلا يتوقع منهم الايمان لكونهم من اهل الطبع انتهى.

**درويش وايي:** چي په اهل الطبع اشاره و هغه آيت ته وكړه بل طبع الله على قلوبهم الآية، او علامه بغداد الآلوسي هم په رايه د روح البيان دى حيث قال حكم مرتب على تماديهم في الكفر ورسوخهم فيه وتسجيل عليهم بكونهم من اهل الطبع ولا يلويهم صارف انتهى.

ٱلَّذِينَ عَٰهَدتَّ مِنۡهُمۡ ثُمَّ يَنقُضُونَ عَهۡدَهُمۡ فِي كُلِّ مَرَّةٖ

**پوه سه:** چي دا موصول بدل دى له الذين كفروا څخه، هغه كسان دي دا كافران چي تا وعده اخستي وه له دوى څخه او دوى هم قبوله كړې وه، نو ځكه يې باب د مفاعلة راوړى چي قبول د عهد يې په ځاى كي د عهد وباله. وروسته دوى ماتوي وعده ددوى چي قبول ستا د عهد و په هر وار كي.

**درويش وايي:** چي له "كل مرة" څخه دا معلومېږي چي ددوى سره عهود كثيره سوي وې او تولي دوى ماتي كړې.

**درويش وايي:** چي دا كافران بنو قريضه وه من اليهود، راوي وايي چي د مهاجرينو او د انصارو ﷺ په حضور كي د بني قريضه سره عليه الصلوة والسلام داسي مكتوب نوشته كړى چي نسخه د مكتوب دوې ورقي وه په قول د ابو اسٔحاق رحمه الله په دې مكتوب كي يې دا نوشته كړه چي تاسي به كومك نه وركوي زموږ دښمن ته پر موږ باندي او ددوى په نفع يې دا نوشته كړه چي ستاسي مال او اولاد به محفوظ وي زموږ له يرغل څخه او دا وعده دوى ماته كړه چي په پټه به يې مشركانو ته سلاح لېږل. عليه الصلوٰة والسلام چي ددوى دا معامله دوى ته ذكر كړه دوى وويل موږ خطاوتو بيا عليه الصلوٰة والسلام نوې معاهده بالشرط المذكور ددوى سره وكړه دا وعده هم دوى ماته كړه د خندق په غزا كي چي غزوة

الاحزاب يې هم بولي او دوی د احزابو سره د کفارو مستقیماً په نفس او مال سره ملګري سوه، او د خندق تر غزا دمخه کعب بن الاسد په قول د روح البیان یا کعب بن الاشرف په قول د مظهري چي دا دواړه د بني قریضه له مشرانو څخه وه تخمیناً د اوو یا کسانو سره مکې ته ولاړل او د ابو سفیان او د قریشو د نورو مشرانو سره یې عهد او تړون وکړی په حرب د مسلمانانو سره، نو ددې قرار له سببه غزوة الخندق منځ ته راغله او بني قریضه په دې غزا کي مستقیماً برخه واخستل.

**درویش وایي:** چي په دې آیت سره اشاره وهغو کسانو ته هم ده چي د خدای ﷻ سره معاهده وکړي په ذریعهٔ د توبې پر ترک د منهیاتو او معاصیو او بیا هغه توبه او عهد مات کړي او معاصي بیرته شروع کړي مرةً بعد اخری:

نه مارا درمیان عهد وفا بوده ............ جفا کردی و بد عهدی نمودی
هنوزت آن درصلحت باز آی ............ کزان محبوب ترباشی که بودی

اشارة الی ان التائب من الذنب کمن لاذنب له.

## وَهُمْ لَا يَتَّقُونَ ﴿٥٦﴾

او دوی له خدایه نه بیریږي چي د علیه الصلوٰة والسلام له نبوت څخه انکار کوي بعد ما عرفوه کما یعرفون ابنائهم، ونقضوا العهود في کل مرة په صحیح حدیث کي چي روایت یې ابو نعیم او ابن جریر کری دی چي معاذ بن جبل او بشر بن البرا او داود بن سلمه ﷺ و یهودانو ته وویل چي تاسي به پر موږ چي موږ مشرکان طلب د فتح به مو په روی د محمد ﷺ کاوه او تاسي به هغه د بعث وخت نژدې دی او تاسي به موږ ته د هغه صفتونه بیانول اشارة الی قوله تعالی وکانوا یستفتحون به فلما جائهم ما عرفوا کفروا به فلعنة الله علی الکافرین.

## فَإِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِي الْحَرْبِ فَشَرِّدْ بِهِم مَّنْ خَلْفَهُمْ

**پوه سه:** چي اصل د "اما" ان ما وَ ان شرطیه دی او ما زائده دی جزا د ان فشرد ده، په تاسو کي ثقفه کسمعه، صادفه ورسره یو ځای سو، او "اخذه" یا یې ونیوی او ظفر به او ادرکه.

**درویش وایي:** چي دا ټولي معاني دلته صحیح دي والانسب هو المعنی الثالث

ای ظفر به كما لا يخفى، ای اذا كان حال ناقضي العهد من يهود بني قريضة مرة بعد اخرى، نو كه ته پر دوی بری پیدا کړې په جنګ کې.

**يوه سه**: چې تشريد تفريق ته وايي سره د وارخطايي. ابن عباس ﷺ وايي چې معنا يې داده چې ته وارخطا کړې ددوی په تعذيب سره نور کسان چې تر دوی وروسته وي يعني افعل بهؤلاً الذين نقضوا عهدك من القتل والتعذيب چې په وه بيرېږي نور خلگ من اهل مكة واليمن، يعني د قتال خيال په زړه کې هم ور وه نه ګرځي. نو ددې آيت په امتثال کې چې څه وخت عليه الصلوٰة والسلام ته خدای پاک غلبه ورکړه پر دغو بني قريضه وو، نو نران چې بالغ وه هغه يې قتل کړه او ښځې يې تولې مينځيانې وګرځولې او ددوی نابالغه اولادونه يې هم سبي وګرځول او ددوی مالونه يې پر غازيانو ووېشل، په حديث کې د طبراني راغلي دي چې اسلم انصاري ﷺ وايي چې زه عليه الصلوٰة والسلام پر مشتبه نرانو د بني قريضه و مسلط کړم چې ګوره يې چې دوی بالغ دي او که نه.

**يوه سه**: چې د بالغ او نابالغ چې سپوخسه وکتل سي چې وېښتان پر ولاړ وي هغه بالغ دی او که نه وي نو نابالغ دی. اسلم وايي چې ما هم دغسې کوله چې د مشتبه نر سپوخسه به مې کتل که به چېري وېښتان پر وه سر به مې په توره څندي پرې کړی او که به نه وه د سبي په دله کې به مې دراوه.

لَعَلَّهُمۡ يَذَّكَّرُونَ ۝

ددې لپاره چې من خلفهم به پند واخلي او نقض العهد به نه کوي. قال الشاعر:

پند گیر از مصائب دیگران ............ تا نه گیرند دیگران زتو پند

نرود مرغ سوی دانه فراز ............ چو دیگر مرغ بیند اندر بند

وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِن قَوۡمٍ خِيَانَةً فَٱنۢبِذۡ إِلَيۡهِمۡ

او که ته بيربدلې له يو قوم څخه "چې معاهدين وه" پر خيانت يعني نقض العهد چې اثار د نقض العهد پر ښکاره سوه. روح البيان وايي چې خوف دلته مجازاً په معنی د علم دی، نو ته ور وغورځوه ودوی ته عهد ددوی.

**پوه سه**: چي عهد یې مشابه کړی د یو ذی جسم شي سره، نو ځکه یې استعاره وویل فانبذ فافهم.

## عَلَىٰ سَوَآءٍ

یعني په برابري ستا او ددوی په علم کي د نقض العهد یعني دوی خبر کړه دمخه تر جنګ چي ما هغه عهد چي زما او ستاسي تر منځ ؤ فسخ کړی.

**پوه سه**: چي خبرول هلته غواړي چي د عهد زمانه نه وي تېره سوې که عهد موقت ؤ لکه له نبذ ځخه چي فهمېږي او یا عهد په زمانه پوري مقید نه وي بلکې مطلق وي، نو بیا خبرېدل غواړي او دا خبرتیا ددې لپاره غواړي تاچي و رسول الله ﷺ ته د خیانت نسبت ونه کړل سي.

**مسئله**: نبذ العهد پر امام هلته لازم دی چي د کفارو خیانت په علاماتو ظنیه وو سره ښکاره سوی وي او که نبذ العهد د کفارو له خوا یقیني ؤ بیا د نقض العهد اعلان نه دی لازم لکه علیه الصلوٰة والسلام پر کفارو د مکې یرغل وروړی د فتح مکې په کال بیله خبرولو د اهل مکه او سره ددې چي علیه الصلوٰة والسلام او دوی معاهده سره کړې وه پر عدم قتال په کال د حدیبیې د صلح، ولي اهل مکه عهد مات کړی چي د خزاعه د قبیلې چي په ذمه کي د علیه الصلوٰة والسلام وه په قتل یې لاس پوري کړی.

**درویش وایي**: چي حافظ محمد یوسف صالحي رحمه الله په سبیل الرشاد کي داسي وایي چي بني قینقاع اوله قبیله وه د یهودانو چي ددوی او د علیه الصلوٰة والسلام تر منځ عهد ؤ مات یې کړی او اظهار د بغي او حسد یې شروع کړی. نو بني قینقاع پر دغه حالت د اظهار نقض العهد والعداوة وه چي یوه ښځه له عربو ځخه چي مسلمانه وه بازار ته د بني قینقاع راغله او بغره یې اغوستې وه.

**درویش وایي**: چي د بني قینقاع سوق داسي یو بازار ګوتی ؤ چي په هغه کي به کافران او مسلمانان دواړه موجود وه د خرید او فروخت لپاره او یو زرګر هم پکښي موجود ؤ، نو ښځه ورغله زرګر ته کښېنستله د زېورو د رانیولو لپاره. نو ودې ښځي ته چي هر څو خلګو وویل چي ته مخ لڅ کړه دې نه لڅاوه حیاءً وستراً.

نو زرگر چي کافر و د ښځي د شا له خوا ورغلی چي دا يې په ځان نه کړل پوه ددې
کالي يې په ځوز (ازغي) پوري غوټه کړه، خير زېور چي يې رانيول دا چي ولاړه
سوه بغره يا پورتنی يې ځندي شوه سو او بې ستره سوه ښځي بغاري کړې چي د
خدای پار دی مسلمانانو زه بې بې ستره کړم، يو مسلمان په جذبه د ايمان ور په
هو اسو زرگر يې قتل کړی او يهودانو پر مسلمان حمله وکړه او هغه يې قتل
کړی وغضب المسلمون فوقع الشر بينهم وبين بني قينقاع فنزلت هذه الآية "واما
تخافن الی اخير الآية" فقال رسول الله ﷺ انما اخاف من بني قينقاع فنبذ اليهم
العهد. نو عليه الصلوٰة والسلام فوج کشي پر وکړه د اسلام بيرغ يې حمزة بن
عبدالمطلب رضي الله عنه ته ورکړی او پر مدينه منوره يې ابو لبابه بن عبد المنذر رضي الله عنه د
خليفه په توګه مقرر کړی، د عليه الصلوٰة والسلام فوج چي راغلی نو بني قينقاع
په خپله محکمه قلعه ننوتل. نو عليه الصلوٰة والسلام دوی پينځه لس ورځي تر
سخت حصار لاندي ونيول او خدای جل جلاله يې په زړو کي بيره ورواچول، نو يې د
عليه الصلوٰة والسلام ته د صلح داسي پېش نهاد وکړی چي تول مالونه، باغونه او
سلاح يې تول ستاسي د مسلمانانو موږ ته صرف ښځي او اولادونه راپرېږدئ. نو
عليه الصلوٰة والسلام ورسره ومنله او امر يې ورکړی چي د مدينې يعني له اطراڤو
ځخه ووځئ، درې ورځي وروسته دوی ووتل، نو عليه الصلوٰة والسلام خمس د
غنيمت ځان ته وګرځاوه، ولي چي بني قينقاع بېله جنګه ووتل او څلور خمسه يې
پر اصحابو کرامو رضي الله عنهم ووېشل وکان اول غنيمت بعد بدر.

إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْخَائِنِينَ

په تحقيق د خدای جل جلاله نه دي خوښ خائنان يعني عهد ماتونکي.

**پوه سه:** چي عدم حب کنايه ده له بغض ځخه يعني يبغض الخائنين. ولي په
جناب کي د خدای جل جلاله واسطه په منځ کي د محبت او بغض نسته بالاتفاق.

**فائده:** چونکه خدای پاک عليه الصلوٰة والسلام امر کړی په نبذ العهد او په
تصريح په هغه سره دمخه تر جنګ. نو د چا په زړه کي به دا توهم پيدا کېږي چي
دښمن يعني کافران که په نبذ العهد خبر سي ځانونه به وجنګ ته اراسته کړي او

هر ممکن مدافعت د قتال چي ددوی په طاقت کي وي من السلاح والمعاونین به برابر کړي، نو به مسلمانانو ته د قتال مشکلات پیدا کړي او یا به وتښتي په هر تقدیر انتقام له دوی څخه په خطر کي واقع کېږي، نو دا به ته وایه نبه وي چي پر کافرانو صرف امارات د نقض العهد پیدا سوی وای دمخه تر تصریح په نبذ العهد پر دوی حمله سوې وای تاچي انتقام په اکمله وجه له دوی څخه اخستل سوی وای. نو خدای پاک ددې توهم ازاله په نزول ددې آیت وکړه.

وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا سَبَقُوا ۚ إِنَّهُمْ لَا يُعْجِزُونَ ﴿٥٩﴾

او گمان دي نه کوي هغه کسان چي کفر کوي چي دوی دي فوت سي یعني پر دوی د مسلمانانو بری نه سي پیدا لکه هغه کسان چي له بدر څخه وتښتېدل یا په نورو معارکو کي د علیه الصلوٰة والسلام، ولي په تحقیق دوی نه سي عاجزه کولای طالب ددوی چي مسلمانان دي له ادارک څخه ددوی.

**اعراب**: لا یحسبن فعل غائب دی فاعل یې الذین کفروا دی، او مفعول اول یې محذوف دی ای انفسهم حذف هرباً عن تکرار ذکرهم او سبقوا یې مفعول ثاني دی په تاویل د مفرد ای سابقین تائبین.

وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ

او تاسي اراسته کوئ یعني برابروئ اې مسلمانانو د ناقضی العهد لپاره او یا د مطلق کفارو لپاره، چي ستاسي وس پوره وي اعداد یې.

**پوه سه**: چي اعداد ذخیره کول دي د شي لپاره د حاجت د وخت، له قوت څخه مراد اسباب والآلات الحرب په اختلاف د زمانو هر څه اسباب د جنگ چي وي، او هغه عملونه چي تاسي ته قوت درکوي په وخت کي د جنگ لکه اسپ دواني او مصارعت یعني نېزه بازي پهلواني او سات تېرول په غشي ویشتلو سره وغیر ذالک. او د اعداد له قسمه څخه دی جمع کول د مال د جنگ د وخت د پار، له عقبه بن عامر رضي الله عنه څخه روایت دی ده وویل ما اورېدلي دي له رسول الله ﷺ څخه چي دی مبارک پر منبر ناست وُ او ویل یې "واعدوا لهم ما استطعتم من القوة الا ان القوة هي الرمي الا ان القوة هي الرمي الا ان القوة هي الرمي.

**درویش وايي:** چي د آنحضرت ﷺ مراد حصر د قوت په رمي کي نه دی بل هو من قبيل ذكر العمدة وقت الحرب رواه مسلم.

**فائده:** درویش وايي چي په قرار د هغه حديث نبوي ﷺ چي مسلم راوړی دی الجهاد ماض الى يوم القيامة جهاد به له کفارو سره جاري وي د قيامت تر ورځي پوري، لهذا قوت د عصر نبوي كه څه هم مذكوره شيان وه لكن په مرور د زمانو لكه چي د كفارو قوت زياتېږي بايد په هغه مناسبت مسلمانان هم خپل قوت مخ پر زياتېدلو کي مثلاً بايد د حمل او نقل موټران ولري ټانکونه بايد ولري كلاشنكوفونه بايد ولري او بمباري کونکي طیارې بايد ولري الى غير ذالک حتى چي كه یې طاقت ؤ بايد ايتم بم ولري، لكن په اوسنۍ زمانه کي چي د لوی قدرت خاوندان كفار دي لكه امریکا، روس، چين، انګلیس، جاپان، فرانس وغيره د اسلامي مملكتو لپاره يې ايتم بم ممنوع ګرځولی دی او په خپله يې لري، ولي چي دوی له اسلامي جهاد څخه ډېر په رعب کي دي، نو ځکه يې د اسلامي ممالكو د جنګ قدرت محدود کړی، او داغه رنګه له عقبه بن عامر ﷺ څخه روايت دی چي بيا هم مسلم راوړی دی عليه الصلوٰة والسلام وويل "ستفتح عليكم الروم ويكفيكم الله فلا يعجز احدكم ان يلهوا باسهمه" په صحيح حديث کي راغلي دي چي سعد بن ابي وقاص ﷺ د احد په ورځ زر غشي وويشتل او هر غشی چي به يې ويشتی عليه الصلوٰة والسلام به ورته ويل فداک ابي وامي.

**مسئله:** بعض علماً ﷺ وايي چي تفدیه د مور او پلار چي مسلمانان وي مکروه ده، لكن امام نووي په شرح کي د مسلم وايي الصحيح انه جائز مطلقاً يعني كه مور او پلار كافران وي او كه مسلمانان لانه ليس فيه حقيقة الغدا بل هو تلطف في الكلام واعلام بمحبته. او ترمذي او ابن ماجه روایت کړی دی له عقبه بن عامر جهني څخه چي عليه الصلوٰة والسلام وويل چي په يوه غشي خدای پاک دري کسه جنت ته بيايي (۱) صانع يعني جوړونکی يې يحتسب في صنعته الخير، چي دده په جوړولو کي د خير نيت وي مثلاً چي يو مسلمان ته به يې ورکړم او پر خرڅ به يې کړم چي جهاد په وکړي (۲) ومنبله چي غشي ورامي

ته په لاس ور کوي (٣) والرامي به او بل ويشتونکي دی د غشي.

**درويش وايي:** چي د جهاد في سبيل الله په باره کي د قرآني آياتو پر ته احاديث متواتره المعنى هم په صحاح سته وو کي او په نورو صحيح کتابو کي د احاديثو ډېر دي چي حصر يې تقريباً ممکن نه دی وفي ماذکرنا کفاية.

## وَمِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ

**درويش وايي:** چي بيضاوي وايي چي رباط اسم للخيل الذي يربط في سبيل الله، نو په اصل کي مصدر ؤ چي ترل يې معنا وه بيا د آس نوم سو. لکه خلق په معنا د مخلوق، نو پر دې تقدير اضافت د رباط وخيل ته لپاره د بيان د معنی مراد دی په رباط سره، او روح البيان وايي چي رباط پر وزن د فعال دی بکسر الرأ په معنا د مطلق مربوط دی لکه لباس په معنی د ملبوس دی. نو اضافت د رباط وخيل ته اضافت د صفت و موصوف ته دی. فالمعنى خيل مربوطة لکه جرد قطيفة بمعنى قطيفة جردة. نو اضافت د عام چي رباط دی وخاص ته چي خيل دی لپاره د بيان دی، او يا لپاره د تخصيص دی لکه خاتم فضة.

**سوال:** په عبارت کي د بيضاوي داسي ته‌ره سوه للخيل الذي آه په تذکير د موصول، او په عبارت کي د روح البيان داسي راغلله خيل مربوطة په تانيث د صفت وجه يې څه ده؟

**ځواب:** خيل اسم جنس دی پر قليل او کثير دواړو يې اطلاق کېږي فيجوز تذکير الموصول بارادة فرد واحد ويجوز تانيث الصفة بارادة كثير من الخيل.

**سوال:** رباط الخيل خو په قوت کي داخل ؤ چي وړاندي په آيت کي راغلی، نو د عطف يې څه فائده؟

**ځواب:** د عطف فائده يې تنبيه ده پر افضل د انواعو د قوت لکه عطف د جبرئيل او ميکائيل پر ملائکو باندي، علماء رحمهم الله وايي چي جن هغه کور ته نه ورځي چي په هغه کي آس يا د جنگ سلاح في سبيل الله وي، او په صحيح حديث کي راغلي دي که يو سړی اوربشي د خاک او خاشاک څخه پاکي کړي بيا يې آس ته کښېږدي او هغه يې وخوري د اوربشي پر هره دانه باندي ده ته نېکي نوشته کېږي او په بل

صحیح حدیث کي راغلي دي چي که چا آس وساتی "في سبیل الله احتسابا جواب وایمانا وتصدیقا بوعده تعالی فان شبعه" چي امید د ثواب یې له خدای ﷻ څخه کاوه. مړول د هغه او اوبه ول د هغه او خوشایي د هغه في میزانه یوم القیامة ای في کفة حسانة. په حدیث کي د بخاري او مسلم راغلي دي په روایت د انس ﷺ ده وویل چي رسول الله ﷺ وفرمایله البرکة في نواصي الخیل. او جریر بن عبدالله ﷺ وایي چي ما رسول الله ﷺ ولیدی چي د آس دمخ وېښتان یې په ګوته سره پېچل او په داسي حال کي یې داخبره وکړه الخیل معقود في نواصیها الخیر الی یوم القیامة الاجر والغنیمة رواه مسلم، وعن ابي هریرة ﷺ الخیل ثلثة (آسان درې قسمه دي) هي لرجل وزر ولرجل ستر ولرجل اجر. فاما الذي له وزره (یعني هغه څوک چي ده لره د آس ساتل ګناه ده) فرجل ربطتها ریاً وفخراً ونواً لاهل الاسلام (چي آس یې د ریا یا د فخر او یا لپاره د بلندی پر اهل اسلام تړلی وي. واما التي هي له ستر (یعني هغه سړی چي د عیال نفقه په برابروي) واما التي هي له اجر فرجل ربطتها في سبیل الله لاهل الاسلام الی اخیر الحدیث باختصار.

**پوه سه:** چي فرس مونث سماعي هم دی لکه اسم چي دی کمامر.

**تُرْهِبُوْنَ بِهٖ عَدُوَّ اللّٰهِ وَعَدُوَّكُمْ وَاٰخَرِيْنَ مِنْ دُوْنِهِمْ**

چي تاسي بېروئ په هغه سره دښمن د خدای ﷻ او دښمن ستاسي. او داغه رنګه بېروئ نور کافران غیر له اهل مکي څخه. مجاهد او مقاتل وایي چي د غیرهم څخه بنو قریضه مراد دي، او سدي وایي چي کفار فارس مراد دي. او حسن بصري ﷫ وایي چي منافقین څندي مراد دي.

**پوه سه:** چي د "به" ضمیر و "وما استطعتم" ته یا "اعدا" ته چي مصدر دی راجع دی.

**لَا تَعْلَمُوْنَهُمْ اَللّٰهُ يَعْلَمُهُمْ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ شَيْءٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يُوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ ﴿٦٠﴾**

چي تاسي دا اخرین تفصیلاً نه پېژنئ خاص خدای ﷻ په خبر دی او هغه شی چي تاسي نفقه او مصرف کړئ په لار کي د خدای ﷻ یعني په جهاد کي یعني

که دراهم او دنانير وي او که اوښان يا افراس کامل او پوره به د ر کړل سي تاسي ته ثواب د هغه په ورځ د قيامت، رسول الله ﷺ وفرمايل "من جهز غازيا فقد غزا" که چا کار ورسم کړی د غازي، نو ده هم غزا وکړه! متفق عليه، ابو مسعود انصاري ﷺ وايي چي يو سړي مهار کړې اوښه راوستل او عليه الصلوٰة والسلام ته يې ووېل هذه في سبيل الله" عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل لك بها يوم القيامة سبعمائة الناقة كلها مخطومة. رواه مسلم، له انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل جاهدوا المشركين باموالكم ای بصرف اموالكم وانفسكم ای بقتال انفسكم والسنتكم" په ژبو سره بالوعظ والتبليغ، ابو داؤد، نسائي و دارمي، وعن خزيمة بن مالك ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من انفق في سبيل الله كتب له بسبعمائة ضعف" ترمذي و نسائي.

حضرت علي، ابو درداً، ابو هريرة، عبدالله بن عمرو، جابر بن عبدالله و عمران بن حصن ﷺ ټوله وايي چي رسول الله ﷺ وويل که چا واستول نفقه في سبيل الله يعني مجاهدينو ته يې ورکړه او دی په خپل کور کي پاته سو "فله بكل درهم سبعمائة درارهم، ومن غزا بنفسه وانفق في وجهه فله ثواب سبعمائة الف درهم، ثم تلا هذه الآية والله يضاعف لمن يشا ابن ماجه، له عبد الرحمن بن حباب ﷺ څخه روايت دی چي عليه الصلوٰة والسلام د جيش العسرة چي د غزوة تبوک په نامه مشهوره ده او ډېره سخته غزا وه، نو عليه الصلوٰة والسلام مسلمانان پر مرسته د جيش العسرة باعثه کول. عثمان ﷺ ودرېدی او وه يې ويل چي پر ما سل اوښان دي "باحلاسها" احلاس جمع د حلس ده، هغه ځل ته وايي چي د اوښ پر شا يې اچوي "واقتابها" جمع د قتب ده چي په پښتو يې کته بولي چي سړی پکښې سپرېږي "في سبيل الله" عليه الصلوٰة والسلام وخپلو خبرو ته ادامه ورکړه، عثمان ﷺ ورته وويل چي پر ما يې دوه سوه اوښان "باقتابها واحلاسها في سبيل الله" عليه الصلوٰة والسلام خپلي د مرستي وينا ته تسلسل ورکړی، عثمان ﷺ بيا ودرېدی چي پر ما يې دري سوه اوښان "باحلاسها واقتابها في سبيل الله فرئيت رسول الله ﷺ ينزل عن المنبر" او عليه الصلوٰة والسلام دوه يا

درې واره دا خبره وکړه ما علی عثمان ما عمل بعد هذا، ترمذي.

له عبدالرحمن بن سمرة ﷺ څخه روایت دی چي عثمان ﷺ تر درې سوه اوښانو علاوه زر طلاوي په لستوڼي کي را اخستي وې د جیش العسرة د تجهیز لپاره د علیه الصلوٰة والسلام په لمن کي یې ورتوی کړې، نو علیه الصلوٰة والسلام په دینارو کي لاس وواهه او وه یې ویل "ماضر عثمان مافعل بعد الیوم مرتین" رواه احمد.

**تنبیه**: د ډېرو خلګو په زړو کي دا خیال ورګرځي چي عثمان ﷺ چي دومره غني شخصیت ؤ او د علیه الصلوٰة والسلام دوې لوڼي هم دده په نکاح کي راغلي وې، یعني یوه چي وفات سوه بیا یې بله لور په نکاح ورکړه، بیا چي هغه وفات سوه علیه الصلوٰة والسلام وویل که ما دریمه لور درلودای نو هغه به مي هم عثمان ته په نکاح ورکړې وای، نو د سوال حاصل دادی چي د علیه الصلوٰة والسلام زغره ولي د یهودي سره په نهه کاسې اوربشو ګرو وه، او علیه الصلوٰة والسلام ویلي دي کما في البخاري وغیره "ما شبع آل محمد من خبز شعیر یومین متتابعین" او نور ورته احادیث د علیه الصلوٰة والسلام د فقر او مسکنت په باره کي، په صحاح سته وو کي راغلي دي، نو اصل سوال دادی چي عثمان ﷺ د رسول الله ﷺ په حال بنه خبر ؤ، ولي یې مرسته نه ورسره کوله؟

**ځواب**: علیه الصلوٰة والسلام نه د چا نفلي او نه فرضي صدقه قبلوله، نو که عثمان ﷺ په نیت د صدقې د علیه الصلوٰة والسلام سره مرسته کړې وای، څرنګه به علیه الصلوة والسلام له ده قبلولای، او د هدیې چي علیه الصلوٰة والسلام قبلوله د عثمان ﷺ په ورکولو نه جوړېدی کما لا یخفی.

وَإِن جَنَحُوا۟ لِلسَّلْمِ فَٱجْنَحْ لَهَا

او که میل وکړی کافرانو وصلح ته، ته هم میل وصلح ته وکړه او معاهده ورسره وکړه.

**سوال**: د "سلم" لفظ خو مذکر دی، نو د مؤنث ضمیر څرنګه ورته راجع سو؟

**ځواب**: سلم یې پر نقیض د هغه حمل کړی دی چي حرب دی او حرب مؤنث سماعي دی، او یا تأویل د سلم په مسالمة چي مصالحت ته وایي هم کړل کېږي.

**پوه سه:** چي حسن بصري او قتاده رحمهما الله وايي چي دا آيت منسوخ دی بقوله اقتلوا المشركين حيث وجدتموهم، او بيضاوي وايي چي دا آيت د اهل كتابو په باره كي دی لاتصالها بقتلهم.

**درويش وايي:** چي دا دواړه قولونه صاحب د روح البيان چي وفات يې په سنه ۱۱۲۷ هـ ق كي سوی دی په جلد ۳ ص ۳٦٦ كي وايي والامر في قوله فاجنح للاباحة والآية عامة لاهل الكتاب وغيرهم.

**درويش وايي:** چي روح البيان په دې خبره الامر للاباحة قول د حسن او قتاده رحمهما الله رد كړی دی چي وايي دا آيت منسوخ دی او په دې عبارت والآية عامة آه قول د بيضاوي رد كړی دی. وروسته روح البيان ويلي دي والامر فيه مفوض الى رأى الامام وليس يجب عليه القتال ابداً ولا ان يسعفهم الى الصلح عند طلبهم ذالک ابداً بل يبني الامر على مافيه صلاح المسلمين فاذا كان للمسلمين قوة جداً فلا ينبغي ان يصالحم وينبغي ان يحاربهم تر څو چي اسلام قبلوي يا جزيه وركوي وان رأى المصلحة في المصالحة ، او د امام ميل هم ومصالحت ته وّ لايجوز ان يصالحهم سنة كاملة الا اذا كانت القوة والغلبة للمشركين، نو پر دې تقدير صلح تر لسو كالو پوري روا ده، او تر لس كاله زائده صلح نه ده ورته روا اقتداً برسول الله ﷺ فانه عليه الصلوٰة والسلام فعل كذالک اى في الصلح مع كفار قريش چي لس كال يې معياد د صلح او عدم حرب وټاكی. انتهى بالعبارة في البعض وبالترجمة في البعض.

**درويش وايي:** چي مظهري ﷺ چي وفات يې په سنه ۱۲۲۵ هـ ق كي سوی دی، يعني د روح البيان تر صاحب ډېر وروسته دی د حسن بصري، قتاده او بيضاوي رحمهم الله خبر يې په دې الفاظو سره رد كړې ده "قلت" يعني نسبت يې وځان ته كړی دی لاوجه تخصيصها باهل الكتاب يعني كما قال البيضاوي ولا بالقول بانها منسوخة يعني كما قال الحسن وقتادة بل الامر للاباحة والصلح جائز مشروع ان رأى الامام فيه مصلحة انتهى.

**درويش وايي:** چي له نقل څخه زه منكر نه يم ولي چي زه په خپله ناقل يم لكن

د منقول قول نسبت وخان ته نه کوم، او دا خبره به هم ډېره مشکله وي چې مظهري رحمه الله به روح البیان نه وي مطالعه کړې او یا د دواړو د خبرو موافقت دی توارد الافکار وي فافهم.

وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۗ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ۝٦١

او توکل پر خدای ﷻ وکړه له دې څخه مه ببرېږه چې د کافرانو په صلح، فریب او چم په خیال کې وي ولې چې خدای ﷻ ستا ساتونکی او مدد گار دی له دوی څخه دې ساتي، او علم لري پر نیتو د کافرانو فیواخذهم بنیاتهم.

وَإِن يُرِيدُوا أَن يَخْدَعُوكَ فَإِنَّ حَسْبَكَ اللّٰهُ ۚ هُوَ الَّذِي أَيَّدَكَ بِنَصْرِهِ وَبِالْمُؤْمِنِينَ ۝٦٢

او که دوی یعني کافران اراده لري په صلح سره چې خطاباسي تا، چې دوی ستا وجنگ ته ځان مستعد وگرځوي او یا ستا د قتل لپاره یو وخت مساعد لټوي.

**پوه سه:** چې اصل خبر د ان محذوف دی یعني فلا تبال بمکرهم، او دلیل د جزا په ځای راوړی دی. یعني چې په تحقیق کافي دی تا لره خدای ﷻ، او خدای هغه ذات مقتدر دی چې ستا تائید کړې په خپل نصرت او په مؤمنانو که مهاجرین دي او که انصار دي په انصارو کې که اوس دي که خزرج.

وَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ ۚ

یعني وروسته تر دې چې په جاهلیت کې به د اوس د خزرج تر منځ شر او فساد ان عداوت ؤ کمامر في قوله تعالی في سورة آل عمران یعني قوله تعالی "اذ كنتم اعداً فالف بين قلوبكم فاصحتم بنعمته اخواناً، او په تفسیر ایوبي کې ددوی یعني د اوس او د خزرج عداوت ممتد او د قتل وقتال بیان تېر سوی دی.

لَوْ أَنفَقْتَ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مَّا أَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ وَلَٰكِنَّ اللّٰهَ أَلَّفَ بَيْنَهُمْ ۚ إِنَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝٦٣

که تا اې مخاطب غیر معینه مصرف کړې وای تو له هغه چې په ځمکه کې دي نه به دې وای اچولای په منځ کې د زړو ددوی الفت، لکن خدای ﷻ په قدرت عظیمه سره الفت پیدا کړی په منځ کې ددوی یعني ظاهراً وباطناً یعني هغه د

کلو کلو عداوت یې ددوی له زړو څخه وه ایستی، په تحقیق خدای ﷻ غالب دی او په شي کي حکمت لري. صدق الله العزیز.

**يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ حَسۡبُكَ ٱللَّهُ وَمَنِ ٱتَّبَعَكَ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ۝٦٤**

ای نبي کافي او بس دی تالره خدای ﷻ او هغه کسان چي ستا متابعت یې کړی دی له مؤمنانو څخه.

**پوه سه:** چي "من اتبعک" په محل کي د جر دی عطف پر کاف دی پر مذهب د کوفیانو چي عطف پر ضمیر مجرور بېله اعادې د جار روا بولي، او یا په محل کي د نصب دی مفعول معه دی، والتقدیر حسبک الله مع من اتبعک من المؤمنین، الله وهذا الاعراب بعید لفظاً قریب معنی.

**پوه سه:** چي اسناد د کفایت و مؤمنین ته لکونهم اسباب ظاهرة لکفایة الله الذي هو الکافي الحقیقي، په حدیث صحیح کي د سعید بن المسیب ﷺ په روایت راغلي دي چي په مکه کي پر علیه الصلوٰة والسلام پاندي درې دېرش (۳۳) نرانو او شپږو ښځو ایمان راوړی وروسته عمر ﷺ ایمان راوړی او دده په ایمان سره څلوېښت پوره سوه، نو دا آیت نازل سو "یاایها النبي الآیة" لکن بعض مفسرین رحمهم الله وایي چي دا آیت پر دې دلالت کوي چي دا آیت مکي دی وسیاق الکلام یقتفي کونها مدنیة فان السورة نزلت بعد غزوة بدر، او دغه مفسرین رحمهم الله وایي چي دا آیت نازل سو په بیدا کي في غزوة بدر قبل شروع القتال لتقویة حضرت النبویة ﷺ وتسلیة الصحابة ﷺ، او ابن عباس ﷺ وایي چي دا آیت هغه وخت نازل سو چي عمر ﷺ اسلام راوړی.

**سوال:** د عمر ﷺ اسلام راوړل خو په مکه کي ؤ او دا سورت مدني دی کما مر من قبل هذا؟

**ځواب:** د ابن عباس ﷺ پر روایت آیت بې له شکه مکي دی لکن په مدني سورت کي په امر د رسول الله ﷺ نوشته سو هذا ماقاله روح البیان.

**درویش وایي:** چي په قرآن کي داسي ډېره واقع کېږي چي په سورت مکي کي بعض مدني وي وبالعکس لکن بامر رسول الله ﷺ، که ته د سورتو د قرآن کریم

په مصاحفو کي نظر وکړئ چي مکي او مدني سره جلا کوي په ډېرو سورتو کي به ووينئ السورة المكية الا الآية الفلانية فانها مدنية او بالعكس به هم ووينئ ان شاء الله تعالى، حاصل د کلام دادی چي مدني والی د يو سورت منافي ددې سره نه دی چي بعض آيت دي مکي وي وبالعکس.

قصة اسلام عمر ﷺ : د صحيح واقعاتو راويان او د احاديث واقعيه وايي چي عليه الصلوٰة والسلام د چهار شنبې په ورځ خدای پاک ته داسي خواست وکړی "اللهم اعز الاسلام" وفي رواية اللهم ايد الاسلام باحد الرجلين يعني بايمان احد الرجلين اما بابى جهل بن هشام واما بعمر بن الخطاب" (وجه تخصيص د ابو جهل داده چي ابو جهل يو مشر سړی ؤ او په قريشو کي يې لوی اعتبار درلودی حتى چي تولي فيصلې به ده کولې، نو ځکه دی د جاهليت په زمانه کي په ابو الحکم سره مشهوره و، او وجه تخصيص د عمر ﷺ داده چي دی ډېر دلاوره ؤ او د زړه ډک سړی ؤ که څه هم دی په دغه وخت کي پينځه ويشت کلن يا شپږويشت کلن ؤ) نو د پنج شنبې په ورځ عمر ﷺ ايمان راوړی، راويان وايي چي څه وخت چي دا آيت نازل سو "انكم وماتعبدون من دون الله حصب جهنم انتم لها واردون" نو ابو جهل بن هشام ته چي اسلام لقب ورکړی که څه هم په جاهليت کي دده لقب ابو الحکم ؤ کمامر آنفاً، او ابو جهل د عمر ﷺ ماما ؤ، ولي چي د عمر ﷺ مور د ابو جهل خور وه، او بعض اهل تاريخ وايي چي عمر ﷺ مور د ابو جهل د اکا لور وه، په عربو کي وعصبة الام ته ماما وايي، نو ابو جهل د قريشو په مجموعه کي ودرېدی چي عمر ﷺ هم پکښي حاضر ؤ او وه يې ويل يا معشر القريش ان محمداً قد شتم الهتكم وزعم انكم وآبائكم والهتكم في النار (محمد ستاسي خدايانو ته بښکنځل کوي، او دی وايي چي تاسي او ستاسي پلرونه او نيکه ګان او ستاسي خدايان به په اور کي ياست) فهل من رجل بقتل محمداً وله مائة ناقة حمراً وسوداً و الف اوقية من فضة" (ده وويل چي نسته داسي څوک چي محمد قتل کړي چي مو ږ به وهغو ته سل اوښاني سرې او تورې ورکړو، او زر اوقيې به سپين زر چي يو ه اوقيه څلوېښت درهمه وه چي زر

اوقيي څلو پښت زره درهمه ته رسېږي ورکړو) "فقام عمر بن الخطاب اتضمن ذالک یا ابا الحکم" (نو عمر بن خطاب ودرېدی ابو جهل ته يې وويل چي ته ضمانت ددغه انعام مذکوره پر قتل د محمد کوې) "فقال نعم یا عمر (نو ابوجهل ورته وويل هو! زه يې ضمانت کوم، نو عمر ابو جهل تر لاس ونيوی کعبې شريفي ته داخل سوه چي هلته ددوی يو لوی خدای ؤ، چي دوی هبل ورته وايه) "فتحالفا عنده واشهدا علی انفسهما هبل" (نو ابو جهل او عمر په حضور کي د هبل قسم سره وکړی، عمر پر قتل د محمد ﷺ او ابو جهل پر ورکړه د انعام مذکور او شاهد يې وګرځاوه هبل پر خپلو ځانو) "فانهم کانوا اذا ارادوا امراً من سفر او حرب او سلم او نکاح لم يفعلوا شيئاً حتی يستأمر هبل ويشهده عليه" ( ولي قريش په جاهليت کي داسي وه چي اراده د يو کار به يې وکړه که به سفر ؤ که به جنګ که به صلح وه او که به نکاح وه تر هغو يې کار نه کاوه چي له هبل څخه يې مشوره نه وای اخستې او هبل يې پر ځان نه وای شاهد کړی.

**سوال:** هبل خو له ډبري څخه جوړ جماد بت ؤ، نو دوی ته يې څرنګه مشوره ورکول؟

**ځواب:** د هبل سره شيطان مقرر ؤ شيطان به د لا او د نعم مشوره ورکوله ددوی به دا ګمان سو چي دا خبري موږ ته هبل کوي. او په دغه وخت کي د کعبې شاوخوا پينځلس سوه بتان وه، په يوه روايت کي راغلي دي چي د محمد د قتل پر خبره چي ابو جهل او عمر وکړه توله بتان پر سجده سوه او لا اله الا الله يې وويل. ابو جهل و عمر ته وويل چي په دې خطاً نه وزې محمد دومره لوی جادوګر دی چي زموږ په خدايانو يې هم سحر او جادو کړی دی. نو عمر توره وغاړې ته واچول او بغل ځولی. يې د غشو ډکه پر وړه کښېښول او دا يې وويل چي تر هغو به زه توره له غاړې ونه کاږم او نه به شي خورم او نه به ارام کوم تر څو چي ما د محمد سر په دغه توره نه وي پرې کړی، او په دغه وخت کي عليه الصلوٰة والسلام سره د مسلمانانو د زيد بن الارقم ﷺ په سرای کي چي د صفا تر غره لاندي ؤ پټ وه يعني دباندي نه سوای راوتلای، ډوډۍ وغيره به ښځو ورته راوړل، نو عمر چي د

زید بن الارقم ﷺ وسرای ته ورغلی دروازه یې وټکول چې له دننه بند وه، یو صحابي ورولاړ سو د دروازې تر چولې یې وکتل علیه الصلوٰة والسلام ته یې وویل چې عمر دی توره یې په غاړه ده، هغه سړي وویل چې د عمر اراده دا سې ښکاري چې ستا وینه به تویوي او نور فساد به هم وکړي. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چې دروازه ورخلاصه کړه که د خیر په نیت راغلی ږ یعني د اسلام راوړلو موږ به یې خندي قبول کړو، او که د شر په اراده راغلی ږ موږ به یې په هغه توره سر ورپرېکړو، عمر چې داخل سو رسول الله ﷺ ورته وویل "ما انتهی یا عمر حتی ینزل الله بک قارعة" بیا علیه الصلوٰة والسلام ورولاړ سو عمر یې تر کالو او د توري تر بند ونیوی او سره وه یې ښوراوه، عمر ورېږدېدی له هیبته څخه د علیه الصلوٰة والسلام، او دی کښېنستی او دا یې وویل اعرض علي الاسلام یعني ماته اسلام پېش کړه الذي تدعوا الیه؟ علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل تشهد ان لا اله الا هو وحده لاشریک له وان محمداً عبده ورسوله، فقال عمر ﷺ اشهد ان لا اله الا الله وانک رسول الله، نو ناستو مسلمانانو ﷺ له خوشالیه په لوړ اواز سره وویل الله اکبر حتی چې د مکې په لارو کې دا تکبیر واورېدل سو، وروسته علیه الصلوٰة والسلام درې واره عمر ﷺ پر خیګر وواهه او داسې دعا یې وکړه اللهم اخرج ما في صدر عمر من غل وابدله ایماناً، عمر ﷺ وایي چې زه له سره تر نوکه په خولو کې غرق سوم دستي جبرئیل راغلی علیه الصلوٰة والسلام ته یې وویل لقد استبشر اهل السما باسلام عمر ﷺ "خوشاله سوه اهل سما یعني ملکې په اسلام د عمر ﷺ . مشرکین چې د عمر ﷺ په اسلام خبر سوه نو داسې یې وویل لقد انتصف القوم منا، قسم په خدای ﷻ دی زموږ نیم قوم راڅخه جلا سو، په روایت د عمر ﷺ چې له ده څخه یو چا پوښتنه وکړه چې څه سبب دی چې تاته رسول الله ﷺ د فاروق لقب درکړی دی؟ ده ورته وویل ما چې اسلام راوړی او علیه الصلوٰة والسلام او نور مسلمانان د زید بن ارقم ﷺ په سرای کې پټ ژوند کاوه، نو ما و علیه الصلوٰة والسلام ته وویل یا رسول الله السنا علی الحق ان متنا وان حیینا؟ آیا موږ نه یو پر حق که مړه سو او که ژوندي؟ علیه الصلوٰة والسلام راته

وويل نعم، ما ورته وويل نو ولي مو ږ دلته پټ کښېنو، عمر رضي الله عنه وايي ما ورته وويل والذي بعثك بالحق داسي مجلس به زه نه پرېږدم چي په حال کي د کفر زه په هغه کي کښېني نستلی يم الا اظهرت فيه الاسلام غير هائب، نه به هيبت رابانديي وي او نه به بېرېږم والله لانعبد الله سراً بعد اليوم، نو عليه الصلوٰة والسلام او نور ورسره مؤمنانو د زيد بن الارقم رضي الله عنه له سرايه راووتل او عمر رضي الله عنه دمخه روان د او توره يې کښېلې وه او په زوره زوره ناري يې وهلې ﴿لا إله إلا الله محمد رسول الله﴾ حتى چي د مسجد ته د حرم مکي ننوتل او عمر رضي الله عنه لو ناره وکړه چي په قريشو يې واورېدل که څوک له ځايه وښورېدی په دغه توره به يې سره قلم کړم. بيا عليه الصلوٰة والسلام دمخه او مؤمنان په پسې وه پر کعبه شريفه يې طواف وکړی، بيا پر لمانځه په جماعت باندي ودرېدل او عليه الصلوٰة والسلام قرآن مجيد په جهر سره وايه او عليه الصلوٰة والسلام او نورو مؤمنانو د عمر رضي الله عنه د اسلام راوړلو څخه مخکي نه سوای کولای چي عند الكعبة دي لمونځ وکړي او يا دي قرآن مجيد په جهر سره ووايي فسماه النبي ﷺ بالفاروق، لانه فرق بين الحق والباطل وجا بسند حسن ان اول من جهر بالاسلام (يعني في مجامع القريش) هو عمر بن الخطاب رضي الله عنه (په هغه وخت کي چي عليه الصلوة والسلام په مدينه کي ؤ او مکه شريفه هم فتح سوي وه) واستأذن عمر رضي الله عنه في العمرة فاذن له عليه الصلوٰة والسلام وقال يا اخي لاتنسنا من دعائك، قال عمر ما احب ان لي بقوله يا اخي ما طلعت عليه الشمس.

**ژباړه:** عمر رضي الله عنه له عليه الصلوٰة والسلام څخه اجازه وغوښتل د عمرې د تلو، نو عليه الصلوٰة والسلام اجازه ورکړه او داسي يې ورته وويل اې وروره موږ په دعا کي مه هېروه، عمر رضي الله عنه وايي زما نه ده خوښه په مقابل کي ددغه قول د عليه الصلوٰة والسلام يا اخي، تر تولو هغه چي لمر پر راخېژي يعني تول دنيا، په يوه حديث کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ وويل چي که تر ما وروسته نبي وای نو عمر به وای، په بل حديث کي راغلي دي چي زما تائيد خدای ﷻ کړی دی په څلورو وزيرانو سره، دوه د اهل سما دي يعني جبرئيل وميکائيل، او دوه

د اهل الارض دي ابو بكر وعمر ﷺ . او نور مناقب د حضرت عمر ﷺ نهایت ډېر دي په كتاب كي چي د الفاروق په نامه یاد ډېري مطالعه دي كړل سي.

**درویش وایي:** چي خبره راڅخه اوږده سوه لكن مع الفوائد السنية اوس بیرته د تفسیر پر خوا ان شا الله تعالى.

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ ۚ إِن يَكُن مِّنكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ ۚ

اې نبي المراد به محمد ﷺ باعث كړه په ډېر شدت سره مؤمنان پر جنګ د كفارو كه وي له تاسي څخه شل (۲۰) كسه نران چي صبر لري پر سختیو د جنګ یعني وخدای ﷻ ته یې د ثواب طمع هم وي غلبه به كوي پر دوو كسو د كافرانو.

وَإِن يَكُن مِّنكُم مِّائَةٌ يَغْلِبُوا أَلْفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُونَ ﴿٦٥﴾

او كه وي له تاسي څخه سل كسه یعني نران "د صابر قید یې نه كړی ذكر اكتفاً بما سبق" غلبه به كوي یعني بنصر الله پر زرو كسانو د هغو كسانو چي كفر كوي په سبب ددې چي كافران یو قوم دی چي نه پوهېږي. والمعنى چي كافران جاهلان په ثواب سره او جاهلان دي په خدای ﷻ چي شریك ورته وایي او جاهلان دي په ورځ د قیامت، نو دوی وتاسي ته ثبات نه سي كولای كه تاسي صبر وكړئ پر قتال ددوی لطلب الثواب والدرجات العلى على تقديري الشهادة والحيوة، او كفار پر مرګ بیرېږي، ولي طمع د ثواب نه لري په دې سبب چي دار الثواب نه مني.

**پوه سه:** چي دا جملې خبریه وې لكن په معنی د امر دي چي صبر به كوي یو مسلمان په مقابل كي د لسو كافرانو او خدای ﷻ وعده كوي چي كه دوی یعني یو په لسو د كافرانو صبر وكړي دوی به غلبه پیدا كوي بعون الله وتائیده.

**پوه سه:** چي دا امر الهي په ورځ د بدر ؤ چي یو مسلمان به د لسو كافرانو سره جنګ كوی. له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي دا امر الهي چي یو مسلمان به د لسو كافرانو سره جنګ كوی او تښتي به نه، پر صحابه كرامو ﷺ ډېر درنه پرېوتل، نو خدای پاك تخفیف ددې امر شاق نازل كړی او وه یې ویل.

اَلْـٰٔنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ ضَعْفًا ؕ فَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَّغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ ۚ وَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ اَلْفٌ يَّغْلِبُوْۤا اَلْفَيْنِ بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ۞

اوس خدای ﷻ تخفیف وکړی په باره کي د جنګ او خدای پاک پر دي علم لري چي په تاسي کي ضعف سته یعني د ابدانو، نو اوس که وي له تاسي څخه یعني رجال سل کسه صبر کونکي غالبه به ګرځي پر دوه سوه یعني د مشرکانو او کافرانو، او که وي له تاسي څخه زر کسه غالبه کېږي به پر دوو زرو کسانو له کافرانو په اذن، اراده او نصرت سره د خدای ﷻ، او خدای پاک ملګری دی په عون او نصرت سره د صبر کونکو مؤمنانو، نو خدای پاک رد کړی امر له سو څخه و دوه ته، ابن شبر رحمه الله وایي چي زما رایه داده چي امر بالمعروف او نهي عن المنکر پر دغه قیاس دی.

**درویش وایي**: لانهما ایضاً قتال لکن لا بالسیف بل باللسان، فالجامع بین المقیس والمقیس علیه موجود.

**فائده**: څوک چي بل پر یو کار باعثه کوي لکه په مانحن فیه قتال الکفار، نو دی باید اقدام پر هغه کار بنفسه وکړي تاچي قوم اقتداً پسي وکړي، ولهذا کان النبي ﷺ اذا اشتد الحرب اقرب الی العدو من المؤمنین قال علي رضی الله عنه "کنا اذا احر الباس (موږ وو چي تود به سو جنګ) ولقي القوم القوم اتقینا برسول الله ﷺ (او دوه قومونه یعني مسلمانان او کافران به سره ملاقي سوه، موږ به څانونه ساتل په رسول الله ﷺ یعني دی به دمخه وَ او موږ به په پسي وو) فما یکون اقرب الی العدو منه ﷺ (نه به وَ ډېر نژدې و دښمن ته تر ده مبارک)

سلطان سلیم فاتح مصر رحمه الله ډېره ښه وینا کړې ده:

گر لشکر عدو بود از قاف تابقاف ....... بالله که هیچ روی نمی تابم از مصاف
چون آفتاب ظلمت کفر از جهان برم ...... گاهی چوصبح تیغ برون آرم از غلاف

په صحیح حدیث کي راغلي دي چي علیه الصلوٰة والسلام حمزه بن عبد

المطلب ﷺ واستاوه او دېرش کسه سپاره یې ورسره کړه، نو د ابو جهل سره ملاقي سو چي درې سوه کسه سپاره ورسره وه، نو حمزه ﷺ وهغو ته شکست ورکړی، له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي که یو مسلمان له درو سوو کسو څخه فرار وکړی دا گناه کبیره نه ده او که یوه مسلمان له دو کسو څخه فرار وکړی، نو دا هغه فرار دی چي گناه کبیره ده، حدادي ﷺ وایي چي دا هلته گناه کبیره ده چي که د مسلمانانو سره دومره سلاح وه لکه د هر یوه سره د دوو کافرانو او ده مقابله ونه کړه کان فاراً ومرتکباً للکبیرة واما ان لم یکن کذالک فلا یثبت حکم الفرار.

**یوه سه:** چي له عبدالله بن مسعود او له عبدالله بن عمر او له ابو هریره ﷺ څخه په مختلفو اسنادو سره روایت دی چي څه وخت یې د بدر بندیان راوستل نو په هغو کي عباس عم رسول الله ﷺ هم ؤ، له انصارو څخه یو سړي دی نیولی ؤ، نو انصارو دا اراده وکړه چي قتل یې کړي، دا خبره و علیه الصلوٰة والسلام ته ورسېدله فقال علیه الصلوٰة والسلام چي تېره شپه نه یم بیده سوی د عباس له سببه چي انصار دا وایي چي وژنو یې، نو عمر ﷺ ورته وویل چي زه ورسم انصارو ته؟ علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل هو! ورسه، نو عمر ﷺ انصارو ته ورغلی چي عباس خوشي کړئ یعني وژني یې مه، انصارو وویل والله لانرسله یعني وژنو یې، نو عمر ﷺ ورته وویل چي په عدم قتل سره یې رسول الله ﷺ خوشاله کېږي، انصارو ورته وویل که په دې سره د رسول الله ﷺ خوشنودي وي خو بو یې زه، عمر ﷺ چي عباس را رهي کړی نو عمر ﷺ ورته وویل یا عباس اسلم یعني اسلام راوړه، قسم په خدای ﷻ دی چي ستا اسلام ماته محبوب دی تر اسلام د خطاب "چي د عمر ﷺ پلار ؤ" ولي چي علیه الصلوٰة والسلام ستا په اسلام خوشاله کېږي، لکن په دې وار عباس مسلمان نه سو.

**یوه سه:** چي عباس ﷺ یو له هغو لسو کسانو څخه دی چي د کفارو د تول لښکر دوډی به یې کوله کوم چي د کفارو د مرستي لپاره د عیر د مکې راوتلي وه، او د بدر په ورځ یې شل وقیه سره زر کفارو ته ورکړه چي په بدر کي به

مشرکان دوډی په رانسي لکن جنګ جوړ سو دمخه تر دې چې عباس دا شل وقیه مصرف کړي وای پر کفارو، نو د جنګ په دوران کي هغه شل وقیه سره زر سره ده د مسلمانانو په لاس ورغله.

**درویش وایي**: چي ددغو کړو وړو له سببه انصار و عباس ته په غضب وه کمامر نو څه وخت چي د بدر پر بندیانو فدیه مقرره سوه کما سیئاتي عنقریب بیانه في التفسیر، نو عباس ﷺ و علیه الصلوٰة والسلام ته وویل چي هغه شل وقیه سره زر چي زما څخه غازیانو د بدر واخستل هغه دي زما په فدیه کي حساب کړل سي علیه الصلوٰة والسلام منع وکړه او ورته وه یې ویل چي هغه شل وقیه چي تا اله کوره زموږ پر ضرر راخستي وې فلا اترکه لک.

**پوه سه**: چي بخاري او بیهقي له انس بن مالک ﷺ روایت کړی دی چي بعض انصارو چي د عباس ﷺ مور له هغې کورنۍ څخه وه، نو علیه الصلوٰة والسلام ته راغله فقالوا ائذن لنا فلنترک لابن اختنا عباس فدائه قال ﷺ لا والله لاتذرن درهماً. نو علیه الصلوٰة والسلام عباس مکلف کړی چي ته به له خپل ځانه سل وقیه فدیه ورکوې زائداً علی فداً غیره، ولي چي تا قطع د صله رحمی وکړه چي زموږ پر ضد جنګ ته راغلې، او له دې یې هم مکلف کړی چي ده به خپل د ورور د دوو زامنو یعني عقیل بن ابي طالب او نوفل بن الحارث فدیه به هم څلوېښت څلوېښت وقیه ورکوې. نو عباس ورته وویل چي تا زه وګرځول چي دا فدیه زما څخه غواړې چي زه به آینده وقریشو ته د سوال لاس غځوم چي زما سره مرسته وکړئ زما په فدیه او زما د ورور د دوو زمانو په فدیه کي، غرض یې دا ؤ چي زما سره څه وقیې وې هغه مسلمانانو په غنیمت راڅخه واخستلې او زما سره شی نه سو پاته چي زه یې د ځان او د ورور د زامنو په فدیه کي درکړم، نو مجبور دي کړم ودې ته چي پر قریشو سوال او فقر وکړم.

**پوښتنه**: دا سوال او ځواب د علیه الصلوٰة والسلام او د عباس تر منځ هغه وخت یې راوړل مناسب وه چي د اصحابو ﷺ اتفاق پر فدیه اخستلو راغلی وای او هغه بحث تر اوسه نه دی راغلی؟

**ځواب:** چونکه د عباس بحث له دمخه ځخه جاري ؤ، نو ځکه دا خبره ما دلته وکړه، اوس دا يې تاسي دا يې أساري د بدر جريان او د اصحابو اختلاف او پر فديه اتفاق، او ددې خبري د عباس چي و عليه الصلوٰة والسلام ته يې وويل چي زه دي وفقر او سوال ته د قريشو اړ کړم، وروسته تر تمام د بحث د فديو د عليه الصلوٰة والسلام له خوا به و عباس ته ځواب ورکړل سي ان شآ الله تعالى.

بحث اساری بدر: د صحيح احاديثو راويان داسي وايي چي عليه الصلوٰة والسلام ټوله مسلمانان من المهاجرين والانصار ﷺ سره راغونډ کړل او داسي يې ورته وويل "ماتقولون في هؤلاء الاسارى" (تاسي څه واياست په شان کي ددې بنديانو؟) قد ملكم الله وانما هم اخوانكم (خدای ﷻ تاسي ته پر دوی ملکيت درکړی يعني په بند مو بنديان کړل او دوی ستاسي ورونه دي) فقال ابوبکر ﷺ اهلک وقومک قد ظفر الله لک عليهم هؤلاء بنوا العم والعشيرة والاخوان استبقهم (ابوبکر ﷺ وويل ته يې باقي پرېږده يعني وژنه يې مه، او زما رايه داده چي فديه ځني واخله او هغه رقم د فديې به زموږ قوت سي پر کفارو باندي يعني سلاح، اوښان او اسان به په رانسو د بلي ورځي د جنگ لپاره او ښايي چي خدای پاک به دوی ته هدايت وکړي يعني ايمان به راوړي او ستا به بازو سي يعني کومک په جنگو کي د کفارو، بيا عليه الصلوٰة والسلام عمر ﷺ ته وويل ماتقول يا ابن الخطاب عمر ﷺ ورته وويل يا رسول الله ﷺ دې خلگو يعني اسيرانو ستا تکذيب کړی دی او له مکې ځخه يې را ايستلی يې او جنگ يې درسره کړی دی. زما رايه داسي نه ده لکه د ابوبکر ﷺ، لکن زما رايه داده چي ماته قدرت راکړه پر فلاني بندي چي د عمر ﷺ قريب ؤ چي زه يې په توره سر له بدنه جلا کړم تاچي خدای پاک وويني چي زموږ په زړو کي محبت نستته للمشركين هؤلاء صناديد قريش وائمتهم وقادتهم فاضرب اعناقهم، او عبدالله بن روحة ﷺ وويل يا رسول الله ﷺ يوه شېله وگورئ چي ډېر وچ بوټي پکښې وي دغه بنديان لاس تړلي په هغه شېله کي کښېږدئ او اور پر بل کړئ، عباس ﷺ چي په بنديانو کي ؤ او دا دوې خبري يې واورېدلې نو عبدالله بن رواحة ﷺ ته يې وويل "قطعت رحمک" سِله رحمي دي ختمه کړه، نو عليه الصلوٰة والسلام کورته ځندي

ولاړی، نو ځینی صحابه وو ﷺ د ابوبکر ﷺ رایه خوښه کړه او ځینو د عمر ﷺ رایه تعقیب کړه او بعضو د ابن رواحة ﷺ نظریه پسنده کړل. یو ګړی وروسته پیرته علیه الصلوٰة والسلام راووتی فقال ان الله تعالی لیلین قلوب اقوام حتی تکون الین من اللبن چي اشاره یې و ابوبکر او دده هم رایه خلګو ﷺ وزړو ته وه "وان الله (سخت ګرځولي) قلوب اقوام حتی تکون اشد من الحجر" چي اشاره یې وزړه ته د عمر او ابن رواحة او د دوی هم فکره خلګو ﷺ ته وه "مثلک یا ابابکر في الملائکة مثل میکائیل ینزل بالرحمة یعني چي د باد او باران تصرف یې په لاس کي دی ومثلک في الانبیاء مثل ابراهیم ﷺ حیث قال من اتبعني فانه مني ومن عصاني فانک غفور رحیم ومثلک یا ابابکر مثل عیسی بن مریم ﷺ اذ قال ان تعذبهم یعني الکفار فانهم عبادک یعني ستا د عذاب چاره نه لري وان تغفرلهم فانک انت العزیز الحکیم. ومثلک یا عمر في الملائکة جبرئیل حیث ینزل بالعذاب والشدة والنقمة علی اعداء الله ومثلک یاعمر في الانبیاء مثل نوح ﷺ اذ قال رب لاتذر علی الارض من الکافرین دیاراً، ومثلک یا عمر مثل موسیٰ ﷺ اذ قال ربنا اطمس علی اموالهم واشدد علی قلوبهم فلا یؤمنوا حتی یروا العذاب الالیم، راوي وایي چي صبا ورځ چي سوه عمر ﷺ د علیه الصلوٰة والسلام کور ته ورغلی فاذا رسول الله ﷺ وابوبکر یبکیان فقال یعني عمر مایبکیکما فان وجدت بکاً بکیت والا تباکیت لبکائکما.

**پوه سه:** چي دا ژړا د علیه الصلوٰة والسلام او د ابوبکر ﷺ له دې سببه وه چي علیه الصلوٰة والسلام دا فیصله وکړه "فلا یفلتن منهم احد الا بفداءٍ او بضرب عنق" یعني نه به سي خلاص یو له دې بندیانو څخه مګر په فدیه او بضرب عنق. نو علیه الصلوٰة والسلام و عمر ﷺ ته وویل خپل د ژړا او د ابوبکر ﷺ د ژړا سبب "فکان یصیبنا في خلاف ابن الخطاب عذاب الیم ولو نزل العذاب ما افلت منه" نه به وای خلاص د هغه الا ابن الخطاب ﷺ فانزل الله تعالی هذه الآیات.

مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَىٰ حَتَّىٰ يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ

نه ده صحیح نبي لره یعني هیڅ نبي لره چي ثابت دي سي ده لره بندیان، نو "کان" تامه دی تر هغو چي ډیر سي په ځمکه کي قتل د کفارو او مبالغه په قتل

کي حتی چي ذلیل سي کفر او حزب يې لړ سي او اسلام عزت پیدا کړي او اهل اسلام پر غالب سي.

**پوه سه**: چي اسری جمع د اسیر ده لکه قتلی جمع د قتیل ده، یا جرحی جمع د جریح ده، او ثخانه په لغت کي ثقل ته وایي. في القاموس اثخن فلاناً ای او هنه واثخن في العدو ای بالغ في الجراحة فیهم، او د "یثخن" مفعول محذوف دی ای یثخن الاسری في الارض یعني سړی چي ووژسل سي درنېږي، چي دوی وژل سوي وای مخکه به په درنه سوې وای، مطلب دا چي دا اسری چي وژل سوي وای ښه به وای لکه د عمر ﷺ رایه چي وه، لکن علیه الصلوٰة والسلام د ابوبکر ﷺ په رایه عمل وکړی او فدیې یې پر واچولې والله اعلم بالصواب.

تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا ۖ وَاللَّهُ يُرِيدُ الْآخِرَةَ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٦٧﴾

تاسي اراده لرئ اې مؤمنانو "مراد هغه اکثره مؤمنان دي چي رأیه د ابوبکر ﷺ یې خوښه ده عرض یعني بې بقا شی چي اخذ د فدیې ؤ، او خدای پاک اراده لري د اخیرت یعني نعیم الآخرة چي تاسي ته یې درکړي بقتل المشرکین الاسری ونصرکم دین الله واعزازه وهیبتة الاسلام في قلوب المشرکین، او خدای ﷻ غالب دی او په هر کار کي حکمت لري.

**نکته**: په اول کي د آیت خدای پاک وویل "ماکان لنبي آه" او په وروسته کي یې مخاطب مؤمنان کړل، له دې جهته چي د علیه الصلوٰة والسلام په زړه کي خو اراده د عرض الدنیا نه وه، بلکي د مؤمنانو په زړو کي وه. په روح البیان کي وایي چي اخذ د فدا شیمة د علیه الصلوٰة والسلام نه وه ولا لسائر الانبیاء علیهم السلام ولي چي په صحیح حدیث کي راغلي دي علیه الصلوٰة والسلام وایي "مالي وللدنیا" یو محقق داسي وایي:

کین جهان جیفه است ومردار ورخیص ... برچنین مردار چون باشم حریص

**فائده**: سعدي چلپي مفتي وایي چي په آیت مذکوره کي مراد له ارادې څخه د خدای ﷻ یعني والله یرضی، نو یرید الآخرة دون یرضی الآخرة ذکر سول په سبب د مشاکله دی د ماقبل سره یعني تریدون آه. نو دلیل د معتزله وو نه دی

چي خلاف د ارادة الله روا دي علی خلاف مذهب اهل السنة. دوی خذلهم الله وايي چي د خدای ﷻ اراده د ايمان ده وه کافر ته لکن دی پر خلاف د ارادې د خدای کافر سو وهکذا في المؤمن العاصي. دوی وايي اراده و عاصي ته د طاعت ده لکن عاصي پر خلاف د ارادې د خدای ﷻ عصيان کوي.

لَّوۡلَا كِتَٰبٞ مِّنَ ٱللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمۡ فِيمَآ أَخَذۡتُمۡ عَذَابٌ عَظِيمٞ ﴿٦٨﴾

که نه وای حکم د خدای چي دمخه يې په لوح محفوظ کي ليکلي دي وهو ان لايعاقب المخطئ في اجتهاده او ان لايعذب اهل بدر، په اخستلو د فديه تاسي ته به رسېدلی وای سخت عذاب.

**پوه سه:** چي کلمه د "في" په معنا د لام ده ای لاجل ما اخذتم من الفدا عذاب اليم، په صحيح حديث کي راغلي دي چي عليه الصلوٰة والسلام ووېل که عذاب نازل سوی وای، نو نجات به نه وای پيدا کړی غير له عمر او سعد بن معاذ ﷺ. ولي چي هغه هم د عمر ﷺ رايه تائيد کړه، ولي چي د بدر د بنديانو په مشوره کي عمر ﷺ و عليه الصلوٰة والسلام ته داسي خبره وکړه چي دا بنديان امامان د کفر دي قتل يې کړه، او ما ته اجازه راکړه چي دده يو قريب په بنديانو کي ؤ چي زه يې سر په توره پرې کړم، او علي ﷺ ته امر وکړه چي خپل ورور عقيل بن ابي طالب قتل کړي، او حمزه ﷺ ته امر وکړه چي عباس قتل کړي، لکن د رسول الله ﷺ دا خبره نه سوه خوښه.

**درويش وايي:** چي له هغه حديثه چي نژدې تېر سو که عذاب نازل سوی وای، نو نجات به پيدا کړی وای بېله عمر ﷺ دا معلومه سوه چي غير له عمر او له سعد بن معاذ ﷺ نور ټوله صحابه کرام ﷺ په فديه راضي وه او خوښه يې وه ولهذا امر عليه الصلوٰة والسلام بالفدا خلاف رای عمر وسعد ﷺ.

فَكُلُواْ مِمَّا غَنِمۡتُمۡ حَلَٰلٗا طَيِّبٗاۚ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴿٦٩﴾

نو تاسي خوراک کوئ د هغه شي چي په غنيمت تاسي ته په لاس درسي لکه په بدر کي. والمراد ان الفدا حكمه حكم الغنيمة لان الفدا حصلت لكم بالقتال مع الكفار.

**درويش وايي:** چي هغه خبره چي ما په احوالو کي د عباس ﷺ دمخه وکړه چي

ده وعليه الصلوٰة والسلام ته وکړه چې ترکتني اتکفف قريشاً يعني زه به سوال پر قريشو کوم، ولې چې زما سره هيڅ مال نشته عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل فاين الذهب الذي دفعته ام الفضل يعني زوجته، يعني هغه سره زر څه سوه چې تا خپلې ماينې ته ورکړه يعني په هغه وخت کې چې ته له مکې څخه راوتلې يعني د قافلې د ساتنې لپاره کمامر من قبل او تا ام الفضل ته وويل چې زه نه يم خبر چې ماته به څه پېښېږي په دې سفر کې، نو که تاسي ته يو ضرورت پېښ سو، نو دغه سره زر ستا او د عبدالله او د قثم دي چې دا دوه د عباس ﷺ زامن وه، نو عباس و عليه الصلوٰة والسلام ته وويل چې زما په دې سرو زرو ته څنګه خبر کړې او سره ددې چې په دغو سرو زرو بېله خدايه څوک نه دی خبر او دا سره زر ما دې ته په توره شپه کې ورکړه؟ عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چې زه خدای ﷻ خبر کړم، عباس وويل چې زه دمخه ستا په نبوت کې شکي وم لکن دا خبره چې دې راته وکړه فاشهد انک صادق يعني في دعوى النبوة واشهد ان لا اله الا الله وانت رسول الله عباس ﷺ مسلمان سو.

**درويش وايي:** چې دا يو له حکمتو څخه د خدای ﷻ دی چې عليه الصلوٰة والسلام د عمر ﷺ خبره نه ومنل په قتل د بدر د اسيرانو، ولې چې په دې اسيرانو کې خو عباس ﷺ هم و.

**يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِمَنْ فِي أَيْدِيكُمْ مِنَ الْأَسْرَى إِنْ يَعْلَمِ اللَّهُ فِي قُلُوبِكُمْ خَيْرًا يُؤْتِكُمْ خَيْرًا مِمَّا أُخِذَ مِنْكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ۝٧٠**

اې نبي زما ته ووايه هغه کسانو ته چې ستاسي په لاسو کې دي يعني په تصرف کې دي له بنديانو څخه که خدای ستاسي په زړو کې پر خير علم لري يعني الايمان والاخلاص دربه کړي خدای تاسي ته خير يعني بالاضعاف تر هغه مبلغ چې ستاسي څخه واخستل سو يعني په فديه کې او خدای ﷻ به وبخښي تاسي ته ګنهونه ستاسي او خدای پاک غفور او مهربان دی، محمد يوسف الصالحي ﷺ په سبيل الرشاد کې وايي چې يو څو کسانو د بنديانو منهم العباس دا دعوه وکړه چې موږ مسلمانان يو يعني له مکې څخه موږ کفارو په زوره د جنګ ميدان ته راوستلو، نو

زمونږ څخه پر څه فدیه غوښتل کېږي، نو دا آیت نازل سو.

**پوه سه**: چي نبي له القابو شریفه وو څخه د علیـه الصلوٰة والسلام دی، والمعنی ایها المخبر عن جانبي الی الخق لتبلیغ احکامي الیهم. روی البخاري ان النبي ﷺ ده ته راورل سو مال د بحرین (چي دده عامل له بحرین څخه را استولی ؤ چي هغه دېر مبلغ ؤ چي علیه الصلوٰة والسلام پر یوه ځای لیدلی دی یو لک درهم وه) علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي په مسجد کي یې کښېږدي، علیه الصلوٰة والسلام ددغو درهمو لهٔ وېش لپاره راووتی. عباس رضي الله عنه ورتـه راغلی فقال یا رسول الله ﷺ ماته لهٔ دې نقودو څخه راکړه یعني دېر مبلغ کما یدل علیه دلیل العباس رضي الله عنه، ما خو د خپل ځان فدیه درکړه او د دوو وربرو فدیه مي هم درکړې ده! علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل وایه خله هرڅو چي اخلي. نو عباس رضي الله عنه پټو ورتـه هوار کړی درهمونه یې پکښې راپوري وهل، نو چي پـه شا کول یې هغه درانه وه نه یې سوای پـه شا کولای. نو علیه الصلوٰة والسلام ته یې وویل چي ته یو چاته ووایه چي دا پلنډه ماته راپورته کړئ، علیه الصلوٰة والسلام لا، نو ده علیه الصلوٰة والسلام وویل چي ته یې راپورته کړه علیه الصلوٰة والسلام ورتـه وویـل چي یا! پـه بعضو روایاتو کي راغلي دي چي یو څه دراهم یې ځندي توی کړه بیا یې هم نه سوای پورته کولای، پـه ځینو روایاتو کي راغلي دي چي بیا د علیه الصلوٰة والسلام او دده تر منځ هغه خبره تکرار سوه، نو بیا یې یو څه دراهم ځندي تـوی کړه، دریم وار یې پـه شا کړه او عباس رضي الله عنه وویل انما اخذ ما وعد الله فقد انجز او خدای ﷻ وعده پوره کړه.

**درویش وایي**: چي عباس رضي الله عنه و هغه قـول تـه د خـدای ﷻ اشاره وکـړه "یؤتکم خیراً مما اخذ منکم" نو عباس رضي الله عنه چي رهي سو علیـه الصلوٰة والسلام تر هغو پـوري ورتـه کتـل چي دی غائبېدی عجباً من حرصـه فما قام رسـول الله ﷺ وثم منها درهم.

**فائده**: پـه دې قـول کي د خدای ﷻ شک "ان یعلم الله فـي قلـوبکم آه" راجع موږ ته دی کما جاً مثله في دعاً الاستخارة ان کنت تعلم آه یعني موږ نه یو خبر چي د خدای ﷻ علم او اراده پـه في قلوبکم خیراً پوري نیولي ای او کـه نه.

وَإِن يُرِيدُوا خِيَانَتَكَ

او که دوی اراده د خیانت لري ستا سره یعني چي ستا سره وعده وکړي چي موږ به ستا په مقابل کي بیا جنگ نه کوو او دا وعده دوی په وخت کي د خلاصونه کړي وه په افتدا ً سره، نو دوی دغه وعده نه کړه پر ځای.

فَقَدْ خَانُوا اللَّهَ مِن قَبْلُ فَأَمْكَنَ مِنْهُمْ

نو دوی داغسي خیانت د خدای ﷻ سره هم کړی ؤ دمخه په کفر سره چي د الست بربکم قالوا بلی وعده یې ماته کړه "فامکنک منهم" یوم بدر یعني تا ته یې قدرت درکړی پر دوی د بدر په ورځ کمامر قصته.

**پوه سه**: چي دا جمله د شرط محذوف جزا ً ده تقدیره ان یرید وخیانتک، نو عذاب ودوی ته راجع کبري په دې دلیل چي ددوی خیانت دخدای پاک سره وکړی من قبل تاته خدای ﷻ قدرت درکړی پر دوی په بدر کي، نو که بیا وفا ونه کړي او بیر ته ستا سره جنگ مختار کړي بیا به خدای پاک پر دوی باندي تاته قدرت درکړي مرةً اخری، چنانچه ابن اسحاق ﷫ وای چي علیه الصلوٰة والسلام احسان وکړی د علي بن ابي غرة سره د بدر په ورځ یعني مفت یې خوشي کړی بالشرط المذکور، یعني بیا به زما په مقابل کي جنگ ته نه راځې، هغه وعده ماته کړه په جنگ کي د احد د مشرکینو سره بیر ته راغلی، نو د احد په ورځ یې بیر ته گرفتار کړی فقتله رسول الله ﷺ.

وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝٧١

او خدای پاک خبر دی بما في قلوبهم من الوفا بالعهد او الغدر والخیانة.

برو علم یکذره پوشیده نیست ......... که پیدا وپنهان بنزدش یکیست

په حدیث شریف کي راغلي دي چي خدای پاک وعلیه الصلوٰة والسلام ته وویل یعني په وحي د جبرئیل چي ته قوي سړي ته ووایه چي خپل په قوت دي نه خطاوزي فان اعجبتک قوتک فادفع الموت عن نفسک، او غني سړي ته ووایه لا یعجبک غناک او غني ته ووایي چي تادي په تعجب کي نه اچوي خپله غنی ورنه زما مخلوق ته د یوې ورځي ډوډۍ ورکړه.

الهي عبدک العاصي اتاکا .................. مقراً بالذنوب و قد دعاکا

فان ترحم فانت لذالک اهل .................. وان تطرد فمن یرحم سواکا

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

په تحقیق هغه کسان چي ایمان یې راوړی ؤ او هجرت یې کړی ؤ له خپل قوم او خپلوانو څخه او خپل محبوب وطن یې پرې ایښی ؤ چي مکه مکرمه وه حبا لله ورسوله. او خپل مالونه یې صرف کړه في سبیل الله سلاح د جنګ او اوښان او نور شیان چي په جنګ کي په کار رائحي رانیولي وه، او خپل ځانونه یې هم په جهاد کي صرف کړي وه په لاره کي د خدای ﷻ بمباشرة القتال واتیان کل ما امر الله به من العبادات البدنیة.

وَالَّذِينَ آوَوا وَّنَصَرُوا أُولَٰئِكَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۚ

او هغه کسان چي ځای یې ورکړی ؤ و علیه الصلوٰة والسلام او مهاجرینو ته د مکې په خپل وطن مدینه منوره کي، او دوی کومک د علیه الصلوٰة والسلام په جنګو کي د اعدا الله من المشرکین والیهود والنصاری وغیرهم سره کاوه. او هم دا سبب دی چي دوی د انصارو په لوړ نوم مشرف سوه په اسلامي تړه کي. دغه کسان یعني مهاجرین او انصار قریبان او دوستان دي یو له بله سره لا الکفار.

**مسئله**: مسلمانانو ته نه ده روا دوستي او قرابت پالنه د کفارو سره ولو کانوا آبائهم او ابنائهم او اخوانهم او یا یې د قوم او قبیلي سړی وي فضلاً عن الامریکائین جبرة الدنیا الیوم الذین جاؤا من ورا البحار یشغلون دیار المسلمین بالجبر والاکراه ویظلمون المؤمنین بذریعة الطیارات الحربیة خذلهم الله ودمرهم تدمیراً ومزقهم کل ممزق انتصاراً لدین الاسلام والمسلمین من اعدا الذین آمنوا یعني الامریکیین، سلطان سلیم اول میگوید:

شاهنشاهست آن که بود خاک راه او .... آزاد بنده که گرفتار مصطفا است

آن سینه شاید کز غم او ساخت دل خرین .... وآن جان عزیز کزپی ایثار مصطفی است

**پوه سه**: چي د مکې تر فتح دمخه توارث په هجرت او نصرت سره ؤ لا بمجرد

القرابة حتی چې مهاجر به وفات سو، نو دده هغه ورور انصاري به يې ميراث وړی چې د مهاجر قريب به ؤ په مدينه كې، او ددغه متوفي مهاجر ورور يا زوی وغيرهما چې به په مكه كې ؤ كه څه هم مسلمان به ؤ ميراث يې نه سوای وړلای تر څو چې مكه فتحه سوه او د هجرت فرضيت منسوخ سو ثم توارثوا بمجرد القرابة وان واحد من الاخوة مثلاً بمكة والاخ الآخر بالمدينة كذا قال العلماء بالاجماع.

**درويش وايي**: چې رئيس المفسرين عبد الله بن عباس ﷺ وايي چې دا آيت د ميراث په باب كې راغلی دی چې موږ يې بيان وكړی قريباً لكن عبد الله ﷺ وايي چې دا آيت منسوخ دی بقوله تعالی "واولو الارحام بعضهم اولی ببعض في كتاب الله انتهی" لكن مظهري ﷺ وايي چې دا قول د ابن عباس ﷺ منكر دی، او وايي قلت وعندي ان هذه الآية غير منسوخة وان كان بها الميراث آه. او دده د ابن عباس ﷺ د قول داسي تاويل كړی دی هوري يې مطالعه كړئ. او روح البيان د نسخ قائل دی.

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يُهَاجِرُوا مَا لَكُم مِّن وَلَايَتِهِم مِّن شَيْءٍ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا

او هغه چې هغه كسان دي چې ايمان يې راوړی وي او هجرت يې مدينې ته نه وي كړی، نسته تاسي لره له قرابت څخه د هغه هيڅ شی. ولي دده فريضه د هجرت تركه كړې ده فيكون فاسقاً، نو له دې آيت څخه پر دغه تقدير چې مراد له ولايت څخه قرابت او دوستي وي، نو دا مسئله هم وفهمېدله چې مسلمان ته په كار ده چې د قريب فاسق سره قرابت ونه پالي چې تر څو يې توبه نه وي كښلې او يا معنی د آيت داده چې دغه مؤمن غير مهاجر ته ميراث نه رسېږي لاختلاف الدارين تر هغو پوري چې دوی هجرت كوي.

**پوه سه**: چې دا آيت په ظاهره نفي دی لكن په معنی د نهي دی فافهم.

وَإِنِ اسْتَنصَرُوكُمْ فِي الدِّينِ فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ

كه چېري طلب د ر څخه وكړی ستاسي څخه دغو مؤمنانو چې هجرت يې نه ؤ كړی د كومك په دين كي يعني پر اعداؤ د خدای ﷻ چې اهل حرب دي، نو پر تاسي لازمه ده چې كومك به ورسره كوئ مالي او نفسي.

إِلَّا عَلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٧٢﴾

مګر نه پر هغه قوم به کومک نه ورسره کوئ چي ستاسي او ددوی تر منځ معاهده د عدم قتال وي، فانه لايجوز نقض العهد، ولهذا لم ينصر رسول الله ﷺ ابا جندل لکه په سورت فتح کي چي يې قصه تېره سوه، او خدای ﷻ پر هغه چي تاسي يې عمل کرئ دی دانا دی. فكلمة "ما" مصدرية ولو كانت موصولة فالعائد محذوف ای بما تعملونه. په دې اخيري جملې کي دا آيت بېرول دي چي تر حدود د خدای ﷻ بايد څوک تېر نه سي لکونه تعالى بصير.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۚ

او هغه کسان چي کافران دي بای نوع من الكفر هغه بعض ددوی اولياء يعني دوستان او همکاران د هغه بل بعض دي، او حاصل ددې آيتو دادی چي مسلمان ته نه ده روا دوستي د کافرانو سره او نه کومک ورسره کول. قال رسول الله ﷺ لايرث المسلم الكافر ولا الكافر المسلم بخاري مسلم.

**فائده:** په مبسوط کي وايي که غارت او حمله وکړه بعض حربيانو پر يو د قريه د حربيانو چي په دې قريه کي مسلمانان مستأمنين اوسېدل دي مسلمانانو ته نه ده روا چي د حمله او غارت کونکو سره جنګ وکړي د کلي والو په کومک کولو سره، ولي چي کلي وال خو هم حربيان دي، نو مسلمانان که جنګ وکړي د کلي والو د خوا ولي چي دا جنګ لپاره د اعلاء د كلمة الله نه دی بلکي لپاره د اعلاء د کفارو د کلمې دی. مګر هغه وخت مستأمن مسلمان ته جنګ روا دی چي خپله وبېرېږي يعني چي غارت کونکی ما هم وژني.

إِلَّا تَفْعَلُوهُ تَكُن فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيرٌ ﴿٧٣﴾

که تاسي دا کار يعني خپل په منځ کي تواصل او تناصر ونه کړئ او قطع کول د دوستئ د کفارو سره حتی چي ميراث مو هم يو دبله سره قطع دی، نو به واقع کان تامه دی فتنه په مځکه کي، تنوين د "فتنة" لپاره د تعظيم دی ای فتنة عظيمة وهي غلبة الكفار توقد نيران الكفر، او فساد كبير يعني ضعف الاسلام بترک الجهاد واختلاط المسلمين بالكفار او د کفارو کفر د سرطان دائي دي په

مسلمانانو کي به هم پيداسي ولي چي کفر مرض ساري دی.

**درويش وايي**: چي ملاحظه کول د مسلمانانو په عراق او افغانستان کي شاهد دی د فتنې او فساد کبير يعني سنه ۱۴۰۵ هـ بيا تر سنه ۱۴۲۸ هـ پوري بلکې زيات تر دغه.

**وَالَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ آوَوا وَّنَصَرُوا أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا لَّهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ﴿٧٤﴾**

او هغه کسان چي ايمان يې راوړی ؤ او هجرت يې هم کړی ؤ او جهاد په لار کي د خدای ﷻ يې هم کړی ؤ او هغه کسان چي مراد ځني انصار د مدينې دي چي مهاجرينو ته يې ځای ورکړی ؤ او نصرت يې هم ورسره کړی ؤ دغه دوي ډلي مؤمنان په حق سره دوی لره بخښنه د خدای ﷻ له خوا څخه او رزق کريم دی په اخرت کي.

**پوه سه**: چي حقاً مفعول مطلق دی د فعل محذوف ای حق دعواهم الاسلام حقاً ولي چي دوی هغه مقتضيات د اسلام پر ځای کړه چي هجرت ؤ او بذل الاموال والانفس في سبيل الله. دا خو د مهاجرينو پر ځای کول د مقتضی د اسلام وه او ځای ورکول په خپل ښارو کي و مهاجرينو ته او ددوی مالي مرسته کول او بذل الاموال والانفس في سبيل الله هم دا د انصارو پر ځای کول وه د مقتضی د ايمان او پر خلاف ددوی دی. هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي او هجرت او جهاد يې نه وي کړی ولي پر دوی خو هم اطلاق د مؤمن روا دی لکن کاملين في الايمان نه دی او حقاً صدق الايمان نه معلومېږي ولي احتمال د نفاق په ايمان کي ددوی سته کالمنافقين في العصر النبوي ﷺ.

**فائده**: د مخني آيتو په باره کي د تواصل بين المؤمنين او د اوسني آيت لپاره د ثنا ددوی دی او وعده ورکول دوی ته په لهم مغفرة آه لپاره د تائيد د ماقبل.

دا حديث صحيح نبوي د دواړو وړ دی قال رسول الله ﷺ "الاسلام يهدم ماقبله والهجرة تهدم ماقبلها انتهى" يعني من حقوق الله تعالى لا الديون وغيرها من حقوق الناس، وعلى هذا فقس التوبة النصوح من المعاصي بعد الاسلام فتدبر.

**فائده**: مهاجرين څو قسمه دي (۱) مهاجرين د هجرت اولی. هغه مهاجرين چي

تر صلح د حديبيې يې دمخه هجرت كړى ؤ (۲) ذوالهجرتين چي يو وار يې هجرت و حبشي ته كړى او بيا يې و مدينې ته چي يو له هغو څخه عثمان، جعفر الطيار او نور هم ډېر كسان ﷺ وه، او مراد په آيت اولى كي اهل د هجرت اولى دى لفضلهم على غيرهم ثم الحق الله بهم اهل الهجرة الثانية بقوله تعالى.

وَالَّذِينَ آمَنُوا مِنْ بَعْدُ وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا مَعَكُمْ فَأُولَٰئِكَ مِنْكُمْ

او هغه كسان چي ايمان يې راوړى وي وروسته تر صلح د حديبيې او بيا يې هجرت كړى وي يعني مدينې ته او بيا يې جهاد كړى وي ستاسي په غزواتو كي دغه كسان په تاسي كي حساب دي، ايها المهاجرين والانصار.

وَأُولُو الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِي كِتَابِ اللَّهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٧٥﴾

او خاوندان د قرابتو غير ذوى الفروض والعصبات كما في السراجي في علم الميراث بعض ددوى په بعضو سره په ميراث كي اولى دى تر بېگانه خلگو په كتاب كي د خداى ﷻ او په تحقيق خداى پاك په هر شي خبر دى.

**فائدة في الهجرة من مكة**: په حديث شريف كي راغلي دي چي عليه الصلوٰة والسلام چي وليدل پى درپى ازارونه پر مسلمانانو په مكه كي د كفارو له خوا څخه او عليه الصلوٰة والسلام هم قدرت نه درلودى چي مسلمانان له ازارو څخه د قريشو وساتي، نو عليه الصلوٰة والسلام ودوى ته وويل تفرقوا في الارض فان الله سيجمعكم" تاسي په مځكه كي سره متفرق سئ خداى پاك به موږ بير ته سره يو ځاى كړي دوى ورته وويل الى اين نذهب، موږ چېري ولاړ سو، قال ههنا واشار الى ارض الحبشة، عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل هلته ده مبارك اشاره و مځكي ته د حبشې وكړه فان بها ملكاً عظيماً لا يظلم عنده احد وهي ارض صدق حتى يجعل الله لكن فرجاً مما انتم فيه. عليه الصلوٰة والسلام وويل چي په حبشه كي يو لوى د قدرت څښتن باچا سته چي دده په نېزمني په سلطنت كي دده ظلم نه كړه كېږي پر هيڅ چا او حبشه د صدق مځكه ده تر هغو پوري چي تاسي دورې اوسئ چي خداى پاك تاسي ته خلاصون دركوي له دغه تكليفه چي تاسي پكښې ياست يعني من التفرق،

هجرت اوس هم باقي دی اولیاء الله په هغه ځکه کي نه اوسیږي چي ظلم او تواتر د ګنهو پکښې وي او دین نبوي پکښې پاماله کیږي، روی في الحدیث من فر بدینه من ارض الی ارض ولو شبراً من الارض استوجب الجنة وکان رفیق ابیه خلیل الله ابراهیم ونبیه محمد ﷺ.

**درویش وايي:** چي ددې حدیث سره مناسب هغه حدیث نبوي صحیح چي بخاري یې هم ذکر کړی دی، او پښتو ژباړه یې داده. علیه الصلوٰة والسلام وايي چي تر تاسي دمخه یعني د نورو امتو یو سړی چي نهه نیوي (۹۹) کسان یې وژلي وه نو اخیر یې په زړه کي پښېماني وریېدا سوه، نو یې له خلګو څخه پوښتنه وکړه چي یو لوی عالم د اهل ارض راوښایاست یعني چي خپل د توبې پوښتنه ځني وکړم چي مالره توبه سته او که نسته. نو یو عالم خلګو وروښو، نو دی هغه عالم ته ورغلی او ورته وه یې ویل چي ما نهه نیوي (۹۹) مړي کړي دي فهل لي من توبة؟ هغه عالم ورته وویل یا یعني توبه دي نه قبلیږي، نو ده هغه عالم هم قتل کړی یعني چي توبه نسته نو د نهه نیوي او سلو نو څه فرق سته. نو سل مړي یې پوره کړه لکن چونکه د زړه پښېماني ورسره وه، بیا یې د خلګو څخه پوښتنه وکړه چي یو ستر عالم راوښایاست. بیا خلګو بل عالم وروښو. نو هغه ته ورغلی ورته وه یې ویل چي ما سل مړي کړي دي فهل لي من توبة؟ هغه عالم ورته وویل من یحول بینك وبین التوبة. څوک ستا او د توبې تر منځ مانع کېدای سي یعنيّ توبه دي قبلیږي. لکن هغه عالم ورته زیاته کړه فلاني وطن ته ولاړ سه په هغه ځای کي یو قوم سته چي همېشه د خدای ﷻ په عبادت اخته وي ته به هم ددوی سره د خدای ﷻ عبادت کوې، او خپل وطن ته مه راځه هغه ستا د بد عمل ځکه ده، سړی رهي سو حتی چي تقریباً نیمی لاري ته ورسېدی اجل الموت حمله پر وکړه او د زکندن په وخت کي ملکي د رحمت او ملکي د عذاب دواړې ورته راغلې چي روح به یې څوک وړي. ملکو د رحمت ورته وویل چي دا سړی خو تائب ؤ او مقبل الی الله ؤ په زړه کي. ملائکو د عذاب ورته وویل چي دې سړي تر دا اوسه د خیر

کار نه دی کړی یوه بله ملکه په حکم د خدای ﷻ په شکل د انسان ورته راغلله چي تاسي کچه کړی مابين موضع موته وموضعي الارضين ای وطنه الاصل چي ده مري پکښي کړي وه او هغه ځای چي هوري روان ؤ، نو دا سړی نژدې ؤ و هغه مځکي ته چي دده د ورتلو اراده ورته وه لکن ببخښي لږ ورنژدې ؤ، او په يوه بل روايت کي راغلي دي چي دغه سړی په واقع کي وطن المعصية ته نژدې ؤ، نو خدای ﷻ امر ورکړی د وطن د خوا مځکي ته چي سره لېري سه او د وطن ارادي مځکي ته يې امر وکړی چي نژدې سه. نو چي ملکو سره کچه کړی وطن ارادي ته يوه لوېشت نژدې ؤ انتهی، او کما قال رسول الله ﷺ.

**درويش وايي:** چي دا سړی د هغه صحيح حديث مصداق دی الندم هو التوبة.

**پوښتنه:** له دې حديث څخه خو دا معلومه سوه چي ددې توبې قبلونه وسوه او خدای ﷻ وبخښی او سره ددې چي په ټولو کتابو کي د فقهي د ائمه اربعه رحمهم الله وايي چي په توبه سره حقوق العبد نه بخښل کېږي او قتل خو حق العبد دی فکيف التوفيق بين الحديث وبين ماقالوا؟

**ځواب:** اذا تاب الغانم لغيره وقبل الله توبته يغفر الله له جميع حقوقه من ترک الماموراتِ وارتکاب المنهيات وما بقی عليه من حقوق الناس فهو في مشيته الله تعالی ان شآ ارضی خصمه بعوض من عنده وان شآ اخذ حق المظلوم من حسنات الظالم وهذا الحديث من القسم الاول.



أَعُوذُ بِاللهِ مِنْ غَضَبِ الْجَبَّارِ
وَمِنْ عَذَابِ النَّارِ

# سُورَةُ التَّوْبَةِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّتِسْعٌ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّسِتَّةَ عَشَرَ رُكُوْعًا

له ابي عطيه رحمه الله څخه روايت دی چي عمر بن الخطاب رضي الله عنه نوشته کړه يعني خپل عاملانو ته "تعلموا سورة البرائة" زده کړئ تاسي سورت برائت، ولي چي په دې سورت کي د مسلمانانو باعثه کول دي پر جهاد، وعلموا نسائکم سورة" او زده کړي په خپلو ښځو سورة النور يعني له دې سببه چي په هغه سورت نور کي باعثه کول دي د ښځو پر حجاب باندې، او د عثمان بن عفان رضي الله عنه روايت دی چي سورت انفال او سورت برأت يو بلل کېدل په زمانه کي د عليه الصلوٰة والسلام فلذالک جمعتهما يعني هغه وخت چي د قرآن مبارک سره جمع کاوه نو د سبع طوال څخه مي وګرځول يعني په منځ کي مي سطر د بسم الله نه وليکی.

**فائده:** ددې سورت ډېر نومان دي:

(۱) سورة البرائة لان فيها برائة عن الكافرين (۲) سورة التوبة لان فيها توبة على المؤمنين (۳) والمقشقشة لانها تقشقشون اى تبرء الناس عن النفاق.

(۴) والمبعثرة لانها كشفت عن سرائر الناس (۵) سورة العذاب، له حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دی چي دا سورت چي تاسي سورت توبه بولئ هي سورة العذاب والله ماتركت احداً الا نال فيها (۶) سورة الفاضحة هم ورته وايي ولي چي دې سورت منافقين رسوا کړل.

**درويش وايي:** چي يوه وجه د ترک د بسم الله په اول کي د سورة برائة خو هغه وه چي عنقريب تېره سوه له حضرت عثمان رضي الله عنه څخه، او بله وجه يې داده چي په منځ کي د رحمت چي په بسم الله ذکر سوی دی او د تبری چي په اول کي د سورت برائت ذکر سوی دی مناسبت نسته.

**مسئله:** اعوذ بالله ويل واجب دي پر هر چا چي شروع په تلاوت د قرآن کوي، که له اوله د سورت ابتدا کوي د قرائت او يا يې له اجزا څخه مطلقاً.

**مسئله:** که د درسي کتابو شروع يې کوله او شاګرد وه استاذ ته د کتاب عبارت وايه ای کتاب کان اعوذ بالله دي نه وايي.

**مسئله:** بسم الله ويل په اول کي د الحمد لله که په اول رکعت کي وي او که په دويم يا دريم کي وي يا خارج الصلوٰة الحمد لله وايي، او په اول کي د هر سورت بسم الله لازمه ده پرته له سورت برائة څخه، او قاري اختيار لري که په منځ کي د اجزاً د هر سورت بسم الله وايي او که نه. لکن د سورت برائة د اجزا په منځ کي که قاري يو جزء د سورت وايه بسم الله به نه وايي كذا في شرح الشاطبية للجعبري

عبد الله بن عباس رضي الله عنهما وايي چي ما له حضرت علي رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي ولي د سورة برائة په اول کي بسم الله نه ويل کېږي؟ ده راته وويل چي بسم الله امان دی او سورت برائة په توره نازل سوی دی يعني بالجهاد مع الكفار بالسيف.

او بعض مفسرينو رحمهم الله يوه ډېره په زړه پوري خبره کړې ده چي په منځ د اصحابو کرامو رضي الله عنهم اختلاف ؤ بعضو ويل چي سورت برائة او سورت انفال يو سورت دی د قتال او جهاد په باب کي او دا سورت مجموع اووم سورت دی له سبع طوال څخه، وقال بعضهم هما سورتان، نو ددې دوو سورتو تر منځ لږ خالي ځای پرېښو لپاره د مراعات د هغه چا د مذهب چي وايي دا دوه سورته دي او بسم الله يې په اول کي نه کړه ورنوشته په مراعات د مذهب د هغه چا چي وايي چي سورت انفال او سورت برائة يو سورت دی.

**يوه سه:** چي بغوي رحمه الله وايي چي مفسرين رحمهم الله په اتفاق دا وايي چي عليه الصلوٰة والسلام سره د مسلمانانو وغزا ته د تبوک روان سو چي غزوة عسرة يې هم بولي چي په مقابل کي د قيصر يو لک فوج موجود ؤ او ډېره سخته ګرمي هم وه او مسافت هم ډېر لېري ؤ، نو منافقينو په مسلمانانو کي من جهة الغدر وغيره اقوال مضطربه ويله مثلاً ددې وار به عليه الصلوٰة والسلام او مسلمانان سلامت رانه سي چي په مقابل د قيصر دي لوی قوم دی او تول شاکي السلاح وغير ذالک من الاخبار الكاذبة المحزنة او مشرکانو چي د عليه الصلوٰة والسلام سره يې معاهدې درلودې تولې يې ماتي کړې ولي چي ددوی زعم فاسد دا ؤ چي

مسلمانان د قیصر د لښکر مقامت په شام کي نه سي کولای او هیڅ امکان نه لري، نو علیه الصلوٰة والسلام خدای پاک امر کړی چي ته د نقض العهود اعلان کړه او دا سورت یې نازل کړی چي په ابتدا کي یې اعلان د نقض العهد خدای ﷻ وکړی.

## بَرَآءَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ

زجاج ﷫ وایي چي حاصل د معنی ددې آیت دادی قد برئ الله ورسوله (یعني بېزار دی خدای ﷻ او رسول د خدای ﷻ له دې څخه چي ددغو مشرکانو سره چي دوی اولاً نقض عهد وکړی چي ددوی سره عهود پر خپل ځای وساتي او وفا دي په وکړي) انتهی قول الزجاج مع الترجمة.

**اعراب:** قوله "براءة" خبر دی د مبتدأ محذوفي ای هذه براءة، براءة په لغت کي ضد د معاهدة دی و وزن براءة کدنانة. او کېدای سي چي براءة دي مبتدأ وي او الی الذین دې خبر وي، والتقدیر براءة واصلة من الله ورسوله الی الذین آه.

**سوال:** براءة خو نکره ده نو څرنګه مبتدأ واقع کېږئ؟

**ځواب:** په مبتدأ کي خو یوازي تعریف نه دی شرط بلکې تخصیص هم کافي دی د ابتدائیه لپاره، نو براءة که نکره ده تخصیص یې په صفت سوی دی کمامر ای براءة واصلة من الله ورسوله.

## إِلَى الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ①

چي تاسي اې رسوله والمؤمنون له مشرکانو څخه چي عهد او پیمان مو ورسره کړی ؤ، او دوی یې اولاً نقض وکړی، نو ستاسي د نقض اعلان دی.

## فَسِيْحُوْا فِي الْأَرْضِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَّاعْلَمُوْٓا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللّٰهِ ۙ وَأَنَّ اللّٰهَ مُخْزِي الْكٰفِرِيْنَ ②

نو تاسي سیاحت کوئ (فیه التفاوت من الغیبة في لفظ المشرکین الی الخطاب في قوله فسیحوا لانه امر مخاطب) والمعنی السیاحة تګ راتګ ده. یعني تاسي تګ راتګ کوئ لپاره د تجارت وغیرها یعني په پوره داده زړه ببله

خو فه له هيڅ چا څخه د مؤمنانو په مخکه کي څلور مياشتي او په دې پوه سئ چي خداى پاک تاسي نه سي عاجزه کولاى له انتقام څخه، زهري رحمه الله وايي چي دا څلور مياشتي يوه شوال (د کوچني اختر مياشت) ذوالقعدة (د مياشتي مياشت) ذوالحجة (د لوى اختر مياشت) والمحرم (د حسن حسين مياشت) زهري رحمه الله وايي چي سورت براءة په اول كي د شوال نازل سوى دى، او اكثره مفسرين رحمهم الله وايي چي ابتداً ددې څلورو مياشتو د لوى اختر له ورځي څخه او پاى يې چي لس ورځي د د دوهمي خور تېر سي چي ربيع ثاني يې بولي.

**درويش وايي:** چي د اكثره مفسرينو رحمهم الله دليل دادى چي عليه الصلوٰة والسلام چي فتح د مكې وكړه په اتم كال كي د هجرت، نو عتاب بن الاسيد رضي الله عنه يې آمر مقرر كړى لپاره د وقوف بالناس بعرفة بل في جميع مراسم الحج په دغه كال كي مسلمانان او مشركان ټوله پر عرفات سره يو ځاى وه چي سنه نهه د هجرت سوه، نو عليه الصلوٰة والسلام ابوبكر رضي الله عنه امير موسم الحج راواستاوه، نو ابوبكر رضي الله عنه چي د مكې پر خوا روان ؤ او عرج ته راورسېدى او د سهار د لمانځه اذان وسو ابوبكر رضي الله عنه وتكبير ته اماده ؤ چي تر شا يې د عليه الصلوٰة والسلام د اوښي ناري واورېدى چي جدعا يې بلله، نو ابوبكر رضي الله عنه له تكبير څخه منع وكړه دده خيال دا ؤ چي اواز خو د عليه الصلوٰة والسلام د اوښي دى، نو لكه چي عليه الصلوٰة والسلام هم د حج قصد كړى دى او راروان سوى دى، نو تكبير صلوٰة يې لـه دې سببه وځنډاوه چي عليه الصلوٰة والسلام چي راسي لمونځ بـه دى مبارك په جماعت راكړي، دوى انتظار وكړى چي حضرت علي رضي الله عنه پر جدعا اوښه باندي سپور ؤ راغلى خير لمونځ يې وكړى ابوبكر وعلي رضي الله عنه ته وويل امير انت ام رسول؟ قال علي لا بل رسول ارسلني. زه عليه الصلوٰة والسلام را استولى يم چي د سورت براءة اعلان و خلگو ته په مواقفو كي د حج وكړي، نو د اتم تر ورځي دمخه ابوبكر رضي الله عنه خطبه او وعظ و خلگو ته او مناسك د حج يې ورته بيان كړه چي ابوبكر رضي الله عنه فارغه سو بيا علي رضي الله عنه ولاړ سو او سورت براءة يې ټولـه تلاوت كړى، نو چي يوم النحر سوه او د عرفات

وقوف یې وکړی نو ابوبکر ﷺ بیا وعظ او تبلیغ وکړی، نو رمي الجمار او تبول افعال د حج یې وخلګو ته بیان کړه ابوبکر ﷺ چې فارغه سو بیا حضرت علي ﷺ سورت برائة تر پایه پوري وخلګو ته تلاوت کړی.

**سوال**: د سورت برائة اعلان خو ابوبکر ﷺ هم کولای سو، نو د علي ﷺ د را استولو څخه ضرورت ؤ؟

**ځواب**: په عربو کي قديماً دا عادت ؤچي د چا لـه خوا عهد کول یا نقض عهد بیله نسبي قريب بل چا نه سوای کولای، نو سورت برائة خو نقض العهد ؤ د رسول الله ﷺ نو ځکه یې تر ابوبکر وروسته علي ﷺ پسي راواستاوه چي اقرب نسباً ؤ تر ابوبکر ﷺ ځکه د علیه الصلوٰة والسلام څخه بعد الفراغ عن الحج چا پوښتنه وکړه چي تلاوت د سورت برائة به دي هم و ابوبکر ﷺ تـه سپارلی وای؟ علیه الصلوٰة والسلام په ځواب کي ورته وویل "لا یوٴدي عني الا رجل واحد مني او پـه ایـامو کـي د حـج دا اعـلان هـم وسـو، (۱) لا یطوف بالبیت عریـان (۲) ولا یدخل الجنـة الا نفس موٴمنـة (۳) ولا یجتمـع المسـلمون والمشـرکون بعـد عامهم هذا (۴) او د چا چي د علیه الصلوٰة والسلام سره عهد وي هغـه تر خپلي مودې پوري پاته دی او چي عهد یې نه وي هغه څلور میاشتي عهد دی وبس.

وَأَذَانٌ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ

او د اعلام دی د خدای او د رسول و خلګو تـه پـه ورځ د حـج اکبر، پـه یوم الحج الاکبر کي اختلاف دی، بعض صحابه او تابعین ﷺ وایي چي د عرفات ورځ ده لان الله تعـالی یعتـق عـن النـار مالا یحصی مـن عصـات المـوٴمنین کمـا جـا فـي الاحادیث الصریحة الصحیحة المتواترة المعنی، او مختـاره داده چي یوم الحج الاکبر د لوی اختر ورځ ده، ولي چي ترمذي د علي ﷺ څخـه روایت کړی دی او وایي چي ما سوال وکړی له رسول الله ﷺ څخه په باره کي د یوم الحج الاکبر قال یوم النحر، او نور ډېر حدیثونه هم راغلي دي چي یوم الحج الاکبر د لـوی اختر ورځ ده او دوې ورځي د منا ورسره دي، وجه تسمیه ددې ورځي پـه دې نامـه داده چي معظم افعـال د حـج پـه دغـه ورځ کېږي کرمی الجمرة العقبـة وطـواف الزیارة

وذبح دم القران والتمتع "واذان" اي اعلام، فعال دی په معنی د افعال دی کالامان والعطا، او اذان متعارف ته چي اذان وايي په دې سبب چي په دې اذان متعارف کي خلگ خبرول دي په اوقاتو د لمانځه.

**پوه سه**: چي رفع د اذان هغه دوې وجهې دي چي په اعراب کي د برائة تيرې سوې حذو النعل بالنعل.

**درويش وايي**: چي د عجمو عوامو دا اصطلاح ده چي يوم الحج الاكبر هغه د عرفات ورځ ده چي د جمعې ورځ هم وي، لکن عرب وداسي ورځي ته د عرفات چي جمعه هم وي يوم حجة النبي ﷺ وايي، ولي چي د عليه الصلوٰة والسلام حجة الوداع پر داغسي ؤول ؤ يعني يوم العرفة او يوم الجمعة سره يو ځاى وه چي دا افضل د حجو دی چي بعض علما وايي چي ثواب يې يو په اووه دی، او په رد محتار کي داسي هم راغلي دي چي ثواب يې يو په اويا دی والله اعلم، او يوم حج اکبر د هر کال د لوی اختر ورځي ته وايي.

اَنَّ اللّٰهَ بَرِیْٓءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِیْنَ ۙ۬ وَرَسُوْلُهٗ

بيشکه خدای ﷻ بېزاره دی له مشرکانو څخه او رسول ﷺ هم بېزاره دی له دوی څخه.

**پوه سه**: چي بعض قرا ﷫ "رسوله" په نصب سره وايي چي عطف يې بولي پر اسم د ان چي الله، او دا هم وجه د نصب کېدای سي چي مفعول معه دي وي او کلمه د واو په معنی د مع وي، لکن ډېر قرا يې په رفع سره وايي وهو المکتوب في المصاحف المطبوعة المروجة، او د رفع وجه يې داده چي عطف دي وي پر ضمير مستتر في بری، او يا دي مبتدا وي خبر دې محذوف وي وتقديره ورسوله بریئ.

**پوښتنه**: دا آيت د دمخه آيت تکرار نه دی؟

**ځواب**: يا! ولي اول آيت خاص ؤ په معاهد ينو پوري چي نقض عهد يې کړی ؤ چي هغه هم مشرکان وه، او د اوسني آيت تعميم بعد التخصيص دی، ولي چي په دې آيت کي مطلق مشرکان مراد دي.

**مسئله**: که څوک په لمانځه کي ورسوله په جر د لام ووايي لمونځ يې فاسد دی

لانه لاوجه للجر الا عطفه على المشركين فيفسد المعنى اشد الفساد.

**حکایت:** یوه اعرابي عرب په یو قاري پسې اقتدا کړې وه په لمانځه کې، نو هغه قاري ورسوله په جر د لام ووایه، نو اعرابي راهي سو او دا یې وویل چې د داسې رسول څرنګه متابعت وکړم چې خدای ﷻ ځنې بېزاره وي.

فَإِن تُبْتُمْ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ

که تاسې توبه وکاږئ یعنې رجوع وکړئ له کفر څخه و اسلام ته. نو دا توبه تاسې لره خیر ده په دنیا او په اخیرت کې اما في الدنيا فلخلاص انفسكم و اولادكم واموالكم الا بحق الاسلام، واما في الآخرة فلامان من النار.

وَإِن تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ وَبَشِّرِ الَّذِينَ كَفَرُوا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ

او که تاسې روی ګرداني وکړئ له توبې او اسلام څخه. نو په دې پوه سئ چې خدای پاک تاسې نه سې عاجزه کولای له انتقام څخه ستاسې في الدنيا والآخرة او زېری وکړه یا محمد وهغه کسانو ته چې کفر کوي په عذاب درد دهنده سره په دنیا کې په قتل او اسر سره کما وقع لكفار بدر او په اخرت کې په عذاب یعنې په دوزخ کې.

**پوه سه:** چې دا قول د خدای ﷻ وبشر وارد دی پر طریقه د تهکم او استهزا لان البشارة هو الخبر السار وهذا ليس بسار.

إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدتُّم مِّنَ الْمُشْرِكِينَ ثُمَّ لَمْ يَنقُصُوكُمْ شَيْئًا وَلَمْ يُظَاهِرُوا عَلَيْكُمْ أَحَدًا

مګر نه هغو کسانو ته برائت نسته چې ستاسې سره یې معاهده د صلح کړې وي او بیا یې په تعاهد کې ستاسې یو شی نه وي کم کړی تر ماعاهدوا علیه. او نه یې کومک ستاسې پر ضرر هیڅ چا ته یعنې د دښمنانو ستاسې کړی وي، بغوي رحمه الله وایي چې دا مذکور په آیت کې د بنو حمزه قوم وُ چې د بني کنانه یو ښاخ وُ او ددوی د صلح د مدې نهه میاشتې پاته وې او دوی هیڅ نقض عهد نه وُ کړی.

فَأَتِمُّوا إِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ إِلَىٰ مُدَّتِهِمْ

نو تاسي ورپوره کړئ عهد ددوی تر وخته تر تمام د عهد چي پاته دی. نو پر دوی حکم د ماتونکو د عهد مه جاري کوئ او نه حکم د هغو کسانو ته چي ستاسي او ددوی تر منځ هيڅ قرارداد او معاهده نه وي سوې، ولي چي ددغو دوو طائفو سره خو ستاسي قتال روا دی ان شئتم. او د هغه مذکوره معاهدينو سره خو ستاسي جنګ نه دی روا تر تمام العهد پوري.

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ ۝

په تحقيق خدای ﷻ خوښ لري تقوی درلونکي کسان.

**پوه سه:** چي په دې آيت کي تنبيه ده پر دې چي اتمام العهد د دغو معاهدينو له قسمه څخه د تقوی دي او د خدای ﷻ متقين خلګ خوښ دي.

فَإِذَا انسَلَخَ الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ

نو چي تېري سي اشهر حرم.

**پوه سه:** چي انسلاخ خروج الشيئ عما هو لابسه لکه خروج د پسه او غوايي له پوسته څخه يا خروج د انسان له کالو څخه.

**درويش وايي:** چي مجاهد او ابن اسحاق يو داسي بيان د اشهر الحرم دلته کړی دی چي پر تکلف سوال او ځواب ته ضرورت لري فاعرضنا عنه. والظاهر ان المراد بالاشهر الحرم هـ هغه مياشتي دي چي روح المعاني. روح البيان. بيضاوي او مظهري رحمهم الله يې تفسير کړی دی چي په هغو کي قتال د مشرکانو نا روا وُ چي د شوال. ذوالقعدة. ذوالحجة او محرم مياشتي دي. وليس المراد بها الاشهر المشهورة بهذا الاسم في کل سنة وهي رجب، وذوالقعدة، وذوالحجة والمحرم لان ظاهر نظم الآية هـ يقتضي توالي هذه الاشهر. او توالي خو په اول کي سته او په دويم کي نسته.

فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ

نو وژنئ مشرکان هرچېري چي مو پيدا کړه.

**پوه سه**: چي مراد له دې مشرکانو څخه غير د هغو مشرکانو دی چي عهد يې کړی وي او نه يې وي مات کړی.

**فائده**: حيث لپاره د عموم د مکان دی يعني که په حل کي وي او که حرم کي وي.

**درويش وايي**: چي روح البيان خو دا قدر ويلي دي في حل او حرم، لکن مراد يې دادی چي شروع په قتال سره مشرکين وکړي يا په حرم کي يا په اشهر حرم کي والدليل عليه قوله تعالى "الشهر الحرام بالشهر الحرام والحرمات قصاص فمن اعتدى عليكم فاعتدوا عليه بمثل ما اعتدى عليكم" فقوله تعالى الشهر الحرام آه في شروع المشركين بالقتال في هذه الاشهر فيجوز لنا القتال في هذه ايضاً، وقوله تعالى فمن اعتدى عليكم الآية في شروع المشركين القتال في الحرم فيجوز لنا القتال ايضاً فيه لان هتک حرمة الحرم کان من جانب المشركين واما نحن فنقاتلهم حفظاً لدمائنا لاهتكاً لحرمة الحرم.

**درويش وايي**: چي فعلى هذه الارادة والتقدير لجواز القتال في الحرم بكون المشركين بدووا بالقتال في الحرم لايرد، هغه سوال چي په حديث کي د بخاري او مسلم راغلی دی چي عليه الصلوٰة والسلام په کال د فتح د مکې داسي وويل ان هذا البلد حرمه الله تعالى يوم خلق السموات والارض فهو حرام بحرمته الى يوم القيامة وانه لم يحل القتال (يعني في الحرم) لاحد قبلي (يعني من الانبيا) ولا يحل لي الا ساعة من النهار وقد عادت حرمتها اليوم كحرمتها بالامس.

**سوال**: دا حديث به منسوخ وي په قول د خدای ﷻ "حيث وجد تموهم" لان حيث لعموم الامكنة والحرم ايضاً من الامكنة؟

**ځواب**: په اصول فقه کي مسئله داده چي کوم آيت يا حديث چي په تابيد مقيد وي د هغه نسخ نه ده روا، په مانحن فيه کي خو حديث مقيد بالتابيد دی يعني الى يوم القيامة.

**درويش وايي**: چي حاصل د کلام دادی چي وحيث وجد تموهم که څه هم دال پر عموم د امكنه و دی لکن په حديث صحيح کي د بخاري او مسلم خاص دی په هغه صورت سره چي مشرکان ابتدا د قتال په حرم محترم کي وکړی. جلال

الدين السيوطي رحمه الله وايي چې دا آيت ناسخ دی د تولوا هغو آياتو په قرآن کې
مسلمانان يې امر کړي دي چې له مشرکينو څخه دې اعراض وکړي يعني ځان
دې نه ورسره اخته کوي او صبر دې پر ازار ددوی کوي، او روح البيان دغه خبره
کړې ده او دعوه د اجماع د جمهور علما رحمهم الله پر دغې خبرې باندې هم کړې ده.

وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ

او بند يانوئ دوی والاخذ الاسير. ابن عباس رضي الله عنه وايي که دوی پخپله قلعه
ننوتل ستاسي څخه، نو تاسي يې قلعه بنده کړئ يعني منع يې کړئ له راوتلو
څخه لپاره د ضروریاتو تاچې مجبور سي وقتال ته او يا و اسلام ته او يا قبول د
جزيې وکړي، او تاسي مسلمانان کښېنئ ودوی ته په هر مرصد کې.

**پوه سه**: چې مرصد د انتظار ځای ته وايي ودښمن ته، لکه په پښتو کې چې
وايي لار ورته وه نسه. يعني محکه پر تنگه کړئ او مه پرېږدئ دوی چې ازاد
سفرونه وکړي يا مکې ته داخل سي.

فَإِن تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا الزَّكَوٰةَ فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ

که دوی توبه وکاږي له شرک څخه او د لمونځو کول قبول کړي او د زکوة
ورکول هم ومني، نو ايله کړئ لار ددوی يعني کار مه په لرئ، ولې چې په تحقيق
خدای جل جلاله غفور بخښونکی او مهربان دی، نو مشرک يا عاصي چې له شرک او
عصيان څخه توبه وکاږي خدای جل جلاله يې توبه قبلوي او بخښه د شرک او د گناه
ورته کوي سره د رحمت.

**پوه سه**: چې ما تفسير د اقاموا الصلوة آه په قبول او منلو سره وکړی له دې
سببه چې د ايمان شرط قبول دی د لمانځه کولو او وعده کول دي د زکوة ورکولو
لافعل الصلوة وايتآ الزكوة بالفعل.

وَإِنْ أَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ اسْتَجَارَكَ

که چېرې يو له مشرکينو څخه چې خدای جل جلاله ماته امر کړي په قتال او قتل د
هغو ستا څخه طلب د جوار او امان در څخه وکړي.

**فائده:** احد مرفوع دی په وروسته استجارک سره چي دې ته په نحو کي مرفوع علی شریطة التفسیر وایي هغه داسي چي عامل د رفع د احد چي استجارک ؤ د دمخه څخه یې حذف کړی په شرط د تفسیر یعني بیان او راوړل د هغه.

**سوال:** ددې څه فائده ده چي دمخه یې حذف کړي او وروسته یې بیرته راوګرځاوه؟

**ځواب:** فائده یې داده چي اولاً مخاطب د رفع د عامل د احد متردد وي او طالب یې هم وي وروسته چي هغه راوړل سي د مخاطب په زړه کي بنه تقرر او ځای پیدا کوي لما قال اهل المعاني ان العلم الحاصل بعد الانتظار والطلب یکون اعز واثبت في القلب کما قال العارف الجامي قدس سره السامي.

چه خوش باشد که بعد از انتظاری ........ باامید رسد امیدواری

والتجربة في العلم الحاصل بعد الکد و الطلب یکون اضبط وعزیزاً في قلب العالم المذکور من علم لایکون تحصیله للعلم بدون الکد والتعب تدل علی ماقلنا وکذا في الامور الدنیویة کما لایخفی.

﴿فَأَجِرْهُ حَتَّىٰ يَسْمَعَ كَلَامَ اللَّهِ ثُمَّ أَبْلِغْهُ مَأْمَنَهُ﴾

نو جوار او امان ورکړه چي کلام د خدای پاک واوري، کلام د خدای ﷻ یعني قرآن کریم او فکر به پکښي وکړي او په اعجاز د قرآن به پوه سي، نو امکان لري چي ستا د مبارک مخ له لیدلو او د قرآن کریم په اوریدلو به ایمان راوړي، او که یې ایمان نه راوړی تر ځای د امن دده چي د قوم دده دي ورسوه چي یو څوک ورسره کړه چي بل ځای مسلمانان تعرض پر ونه کړي.

**درویش وایي:** چي دادی د دین انصاف د دښمن سره.

﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْلَمُونَ ۝٦﴾

دغه امر د امن او جوار ورکولو چي ته په امر سوې او دا مدارات چي دښمن ته وکړې په سبب ددې دی چي دغه کافران حق او باطل نه سره پېژني فلا بد لهم من سماع کلام الله حتی یعلموا لعلهم یرجعوا من الکفر والعناد الی المحبة والایمان.

**مسئله**: داغه سړی که په بله ډله کي د کافرانو جنګ ته راسي او قدرت پر پیدا سي خامخا به قتل کېږي.

كَيْفَ يَكُونُ لِلْمُشْرِكِينَ عَهْدٌ عِندَ اللَّهِ وَعِندَ رَسُولِهِ

**پوه سه**: چي كيف لپاره د استفهام انکاري دی ای لايكون وكان تامة ای يوجد مشركينو لره عهد يعني پيمان، قرارداد او صلح په نېز د خدای ﷻ او په نېز د رسول ﷺ، وجه نفي العهد چي د هرو مشركانو خپلي وعدې ماتي كړې په سبب د عناد ددوی د اسلام او د عليه الصلوٰة والسلام سره او په سبب د فسق ددوی.

إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدتُّمْ عِندَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

مګر نه هغه چي تاسي معاهده ورسره كړې وه په نېز د مسجد حرام يعني مسجد مكة مكرمة، نو كه دمخه مشركينو څخه مطلق مشركين مراد وي، نو دا استثنا متصل ده او الذين منصوب على الاستثنا ده. او كه د مخه ذكر سوي مشركينو څخه ناقضی العهد مشركين مراد وي، نو دا استثنا منقطع ده په معنی د لكن.

**پوه سه**: چي مراد له معاهدينو څخه د مسجد حرام بني كنانه او بني ضمرة دي چي په حديبيه كي چي مكې ته نژدې ځای دی د عليه الصلوٰة والسلام سره يې عهد او صلح وكړه پر عدم قتال وعدم معاونة الكفار في الحرب مع رسول الله ﷺ.

فَمَا اسْتَقَامُوا لَكُمْ فَاسْتَقِيمُوا لَهُمْ

تر هغو چي دوی وفا دار د خپل عهد وي، نو تاسي ودوی ته وفا دار بالعهد اوسئ.

**پوه سه**: چي كلمه د ما يا شرطيه ده نو "فاستقيموا" ځواب دی، او يا مصدريه ده، نو مااستقاموا مرفوع محلاً ده فاستقيموا آه يې خبر دی.

**فائده**: ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي مراد له الذين عاهدتم تولـه قريش دي، او قتاده رحمه الله وايي چي مراد له الذين عاهدتم آه" څخه تولـه اهل مكـه دي چي عليه الصلوٰة والسلام صلح ورسره وكړه په حديبيه كي. نو خدای پاک عليه الصلوٰة والسلام امر كړی چي ته به تربص كوې په حال كي ددوی ان استقاموا على العهد يستقام من جانبک على الوفا لكن دوی استقامت پر عهد نه وكړی او عهد يې مات كړی، څه وخت چي بني بكر چي د اهل مكه حليفان وه پر خزاعة حمله وكړه

چي خزيمه بيا حليفان د عليه الصلوٰة والسلام وه تبوله اهل مكه د بني بكر سره شامل سوه، او خزيمه وو ته يې جاني ومالي تاوانونه وارول، نو عليه الصلوٰة والسلام د بني خزيمه د قسات اخستلو لپاره پر مكه مكرمه حمله وكړه او مكه يې فتح كړه او اهل مكې ته يې څلور مياشتي وخت وركړی چي تاسي په خپل منځ كي مشوره سره وكړئ كه مو خوښه وه اسلام راوړئ او په خپل تاتوبي مكه كي كما كان اوسېږئ او كه بل ښار او وطن ته تګ خوښوئ تاسو ته عامه او تامه اجازه ده اهل مكه د څلورو مياشتو له تېرېدلو څخه دمخه اسلام راوړی.

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ ۝

په تحقيق خدای پاک محبت كوي له متقينو كسانو سره عموماً وخصوصاً في مراعات العهد مع الكفرة، په مثنوي كي جلال الدين الرومي قدس سره وايي:

سوی لطف بيو فايان هين مرو ......... كان پل ويران بود نيكو شنو
نقض ميثاق وعهود از احمقيست ......... حفظ ايمان ووفا كار تقيست

كَيْفَ وَإِن يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ لَا يَرْقُبُوا فِيكُمْ إِلًّا وَلَا ذِمَّةً ۚ

ای كيف يكون للمشركين عهد حقيق بالمراعات عند الله سبحانه وتعالى وعند رسوله ﷺ وحالهم روح البيان، كه دوی برى پيدا كړی پر تاسي. الواو للحال "لايرقبوا" ای لا يحفظوا وقال الضحاک رحمه الله لا ينظروا وقال قطرب رحمه الله لا يراعوا.

**درويش وايي:** چي دا تېولي معناوي يوه شي ته راجع دي بلكې تقريباً سره مترادفي دي (فيكم الا) قيل خلقاً وقيل قرابةً، وقيل الاسم عبري بمعنى الاله، زهري رحمه الله وايي له اسماؤ څخه د خدای ﷻ دی په عبراني ژبه كما قالوا في جبرئيل معناه عبدالله لان جبر هو العبد وايل هو الله بالعبراني. نو دا احتمال سته چي ايل يې عربي ته نقل كړی وي او يا دې څندي حذف كړې وي، نو ال په معنى د اله يعني لا يراعون حق الله فيكم، او ابن عباس رضي الله عنهما كمامر په قرابت ترجمه كړي ده او بعض علما يې په رحم ترجمه كوي.

**درويش وايي:** چي بعض كسان د مسيلمة كذاب و ابوبكر رضي الله عنه ته راغله يعني ده د خلافت په وخت كي، نو ابوبكر رضي الله عنه ورته وويل چي تاسي د

مسیلمه کتاب وو اياست! هغو چي ورته قرائت کړی، نو ابوبکرﷺ ورته وویل چي دا کلام نه دی نازل سوی من "ال" یعني من الله وهذا الخبر یوید قول من قال ان ال اسم عبري معناه اله "ولاذمة" ای عهد اعاهدوه منکم، مؤکداً بالایمان.

**يُرْضُونَكُم بِأَفْوَاهِهِمْ وَتَأْبَىٰ قُلُوبُهُمْ وَأَكْثَرُهُمْ فَاسِقُونَ ﴿٨﴾**

یعني دوی داسي خبري کوي چي سبب د رضا ستاسي وګرځي نفاقاً کالمنافقین وتقیة کالروافض چي هغه خبري قسمونه دي او مواثیق دي چي موږ به حتماً به عهد وفا کوو، او ابا کوي زړونه د دوی د خپلو خلو له خبرو څخه یعني کفر او عداوت په زړه کي پټ ساتي له جهته د بېري ستاسي څخه، نو په وخت کي د ظفر به معلوم سي ددوی عداوت مبطن چي ددوی د خلو د خبرو به خلاف وي.

**درویش وايي:** چي مراد په دې آیت له فسق څخه فسق مخصوص مراد دی چي نقض العهد دی او اکثر لفظ چي ووایه ددې کبله چي بعض مشرکانو به د نقض العهد څخه ډډه کول او د وفا بالعهد لار یې خپله کړې وه.

**درویش وايي:** چي وفا بالعهد د غیرت مند سړي کار دی او بېوفايي اکثره د ښځو عادت دی، نو ددې کبله بعض قلیل خلګ که څه هم کافران وي او معاهده یې د دښمن سره وي بیا هم د عهد مراعات کوي.

**اشْتَرَوْا بِآيَاتِ اللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا فَصَدُّوا عَن سَبِيلِهِ**

یعني دغه مشرکین ناقضین للعهد رانسي په آیاتو د قرآن چي امر په وفا بالعهد سره دی یعني دا آیت یې پرې ایښی دی او په عوض کي یې "ثمناً قلیلاً" ای شیئاً حقیراً من شهوات الدنیا وحطامها غوره کړي دي، په تفاسیرو کي وايي چي ابو سفیان بن حرب اعراب د عربو سره راټول کړه او ډېره لویه مهماني یې ورته جوړه کړې وه تاچي دوی د علیه الصلوٰة والسلام له متابعت څخه منع کړي او باعثه یې کړي پر نقض الذي کان بینهم وبین رسول اللهﷺ، نو دوی هم عهد مات کړی په دا یوه مېلمستیا د ابو سفیان، نو فاعل د اشتروا هم دغه اعراب دي او ثمن قلیل د ابو سفیان ډوډۍ ده.

**یوه سه:** چي "صد" لازمي هم راغلی دی چي معنی یې عدول او اعراض ده، او متعدي هم راغلی دی چي معنی یې منع وصرف غیره ده.

**درویش وايي:** چې دلته دواړې معناوې صحیح کېږي لازمي معنا یې په اعرابو کي او متعدي معنا یې په ابو سفیان کي فافهم، مراد له سبیله لار د خدای ﷻ ده چي اسلام دی او وفا بالعهود ده.

**اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ**

په تحقیق هم د دوی بد دی عمل مستمر دی کما یدل علی الاستمرار صیغة المضارع ای یعملون.

**اعراب:** لفظ هم اسم د ان دی جمله د سأ یې خبر دی او سأ فعل ذم دی او کلمه د ما مصدریه ده او کانوا یعملون په تأویل د مصدر په محل کي د رفع دی فاعل د سأ دی او مخصوص بالذم یې محذوف دی ای عملهم هذا.

**پوه سه:** چي لفظ کان چي د مضارع سره راسي نص یې ګرځوي په استمرار کي وکان المضارع قبل ذالک محتملاً للاستمرار فتدبر.

**لَا يَرْقُبُوْنَ فِيْ مُؤْمِنٍ اِلًّا وَّلَا ذِمَّةً ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُعْتَدُوْنَ**

دوی نه ساتي په حق کي د مؤمن نه قرابت او نه عهد او هم دغه کسان تجاوز کونکي دي تر حدود او احکامو د خدای ﷻ.

**پوښتنه:** مثل ددې آیت خو مخکي تقریباً تېر سو، نو اوس یې ذکر کول به تکرار نه وي؟

**ځواب:** لا یرقبون په دې آیت کي تفسیر دی د ماکانوا یعملون او استیناف بیاني دی کانه قیل ماکان سوء عملهم فاجیب لا یرقبون آه. لپاره د تکرار د اول نه دی ذکر سوی، او بعض وايي چي اول آیت په منافقینو کي وارد او نازل دی او دا آیت خاص دی په الذین اشتروا آه چي یهودان دي او هغه اعراب دي چي ابو سفیان مهماني ورکړه وقد مر تفصیله قریباً.

**فَاِنْ تَابُوْا وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَاِخْوَانُكُمْ فِي الدِّيْنِ**

نو که دوی توبه وکاږي له شرک او کفر څخه او قبول کړي فرضیت د لمانځه او د ورکړي د زکوٰة التزام وکړي، نو دوی ستاسي ورونه دي په دین کي یعني که څه

هم نسبي ورونه نه دي لهم مالكم، د لام كلمه لپاره د نفع ده وعليهم ماعليكم كلمه لپاره د ضرور ده.

**درويش وايي:** چي اخوه او ورور گلوي درې قسمه ده الاول اولى من الجميع هغه دادى چي د نبي ورور وي او هم نسبه يې وي سوا كان اخ حقيقة او اخا من حيث القبيلة. والثاني دادى چي د يني ورور يې وي يعني په مسلمانئ ورسره شريک وي نه په قوم او نسب كي. والثالث چي اخوة ديني خو يې نه وي بلكې يو كافر بل مسلمان وي او نسبي وروولي يې وي يعني الاشتراک في القبيلة وهذه الاخوة لا اعتداد ولا اعتبار له في الدنيا والآخرة.

وَنُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿١١﴾

او مونږ تفصيل د آيتو په قرآن پاک كي كوو د هغه خلكو لپاره چي هغه په آيتو پوهيږي لانهم المنتفعون بها.

**پوه سه:** "ونفصل" جمله معترضه ده، فائده يې داده چي سړى يعني مسلمانان او اهل علم بايد فكر وكړي په دمخو آياتو كي چي بيان د معاهدينو د احكامو پكښې ذكر سو او داغه رنگه احكام د تائبينو هم پكښې ذكر سوه. ابن عباس رضي الله عنه وايي چي دې آيت د اهل قبله وينې تو يول حرامې وگرځولې يعني چي د كعبې شريفې پر خوا لمونځ كوي. له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چي خداى پاک په يوه بلكې په د پرو آيتو كي مونږ په لمانځه او په زكوة سره يو ځاى امر كړي يو فمن لم يزک فلا صلوة له اى لا اعتداد بصلوته.

**درويش وايي:** چي د ابن مسعود رضي الله عنه پر تغليظ او تهديد د مسلمانانو مبني دى. داسي حد يثونه ډېر نور ورته تهديدي هم سته مبني پر تغليظ كما قال عليه الصلوٰة والسلام "لاصلوة لجار المسجد الا في المسجد" بخاري او نورو محدثانو رحمهم الله له ابي هريرة رضي الله عنه څخه روايت كړى دى چي هغه وخت چي عليه الصلوٰة والسلام وفات سو او ابوبكر رضي الله عنه خليفه سو فكفر من كفر من العرب يعني د زكوة د فرضيت په انكار سره. نو ابوبكر رضي الله عنه ددغو كسانو وجنگ ته تياري نيول چي عمر رضي الله عنه ورغلى او ورته وه يې ويل كيف تقاتل الناس او حال

دادی چي علیه الصلوٰة والسلام ویلي دي چي زه امر سوی یم چي زه به جنګ د خلګو یعني کافرانو سره کوم "حتی یقولوا" لا اله الا الله او چا چي دا کلمه توحید وویل فقد عصم مني ماله ونفسه الا بحقه (کالقصاص مثلاً) وحسابه علی الله یعني د باطن حال یې په خدای ﷻ اړه لري یعني چي کلمه ویل په اخلاص او که په نفاق وه، ابوبکر رضي الله عنه ورته وویل والله لاقاتلن من فرق بین الصلوة والزکوة یعني باقرار الصلوة وانکار الزکوة فان الزکوة حق المال ای ثابت في القرآن فرضیته یعني والصلوة حق البدن والزکوة حق المال فکیف یمکن الایمان بالصلوة والانکار عن الزکوة آخر الامر دېر دلائل ابوبکر رضي الله عنه ورته وویل، نو عمر رضي الله عنه په دې قانع سو چي د زکوة د منکرینو سره جنګ روا دی.

**فائده:** یو له فرضي عبادت څخه انکار دی هغه بالاجماع کفر دی. او یو داچي فرضي عبادت نه ادا کوي اما منکر د فرضیت یې نه وي فهو مرتکب الکبیرة لاکافر. بخاري له انس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوٰة والسلام وویل "من صلی صلاتنا (احتراز عن صلوة الیهود والنصاری) واستقبل قبلتنا (یعني في الصلوة) واکل ذبیحتنا فذالک المسلم الذي له ذمة الله وذمة رسوله.

وَإِن نَّكَثُوٓا۟ أَيْمَـٰنَهُم مِّنۢ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَطَعَنُوا۟ فِى دِينِكُمْ فَقَـٰتِلُوٓا۟ أَئِمَّةَ ٱلْكُفْرِ

او که دوی مات کړه قسمونه خپل وروسته تر عهد کولو، او عیب یې وایه ستاسي په دین کي، نو تاسي جنګ کوئ د پیشوایانو سره د کفر.

"وَإِن نَّكَثُوٓا۟ أَيْمَـٰنَهُم (ای عهودهم) مِّنۢ بَعْدِ عَهْدِهِمْ (کما نکث کفار قریش)

وَطَعَنُوا۟ فِى دِينِكُمْ (یعني په تکذیب او تقبیح د احکام الهیه ؤ)

**سوال:** ځای خو د ضمیر ؤ یعني فقاتلوهم، نو د اسم ظاهر څه حکمت دی؟

**ځواب:** اشاره ودې ته ده چي په مذکوره کار رئیسان د کفر وګرځېدل، نو دوی احق دي په وژلو سره، او بعض مفسرین رحمهم الله وایي چي مراد له ائمة الکفر څخه رئیسان د قریشو دي لکه ابو سفیان بن حرب والحارث بن هشام وسهیل بن عمرو و ابو جهل وغیرهم، ولي دغو کسانو عهد مات کړی. نو د قریشو د

رئیسانو د تخصیص وجه داده چي ددوی په قتل سره د مکې د تولو مشرکانو زړونه ضعیف کېږي او بیا وجنګ ته د مسلمانانو نه تیارسئ کېږي.

إِنَّهُمْ لَآ أَيْمَانَ لَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَنتَهُونَ ﴿١٢﴾

په تحقیق هیڅ ایمان نسته دوی لره. بفتح الهمزة جمع د یمین ده په معناد عهد، یعني یو وار چي یې عهود مات کړه بیا طمع د وفا په عهد جدید سره مه ورته کوئ "لعلهم ینتهون" د "قاتلوا" سره تعلق لري، او په منځ کي جملې معترضې وې.

**پوه سه**: چي لعل په معنی د لام کی دی، یعني ددې لپاره جنګ ورسره کوئ چي دوی له کفره نهي سي او شرک دي پرېږدي، ددې آیت نکته داده چي غرض د مجاهدینو په جهاد کي فقط داغه وي چي کافران به کوندي ایمان راوړي نه دا چي صرف ازار ور رسول او نه قدرت تر لاسه کول او پادشاهي له ځا څخه نیول لکه د مسلمانانو د جنګ مرام چي همدغه ؤ او نه غنیمت تر لاسه کول، ولي چي دا تول نیات مبطل د ثواب د جهاد في سبیل الله دي.

**مسئله**: د امت مرحومه تولې فرقې او مذاهب پر دې یې اتفاق او اجماع ده چي سپکاوی د آنحضرت ﷺ بلکې د هر نبي کفر دی که یې فاعل روا بولي او که ناروا. او په ښکنځولو کي د نبي قصد او عدم قصد فرق نه لري بلکې په دواړو صورتو کي کافر دی، او په جهالت یا فکر مي نه ؤ هم له کفره نه خلاصېږي چي عقل یې سالم وي یعني لېوني نه وي.

**مسئله**: که چا وویل د اهانت په تو ګه چي علیه الصلوٰة والسلام تور سړی ؤ او یا یې وویل چي د ابو طالب یتیم ؤ او یا یې دا وویل چي علیه الصلوٰة والسلام قصداً له طیباتو څخه احتراز نه کاوه بلکې په سبب د کمال فقر ؤ او که ده ته طیبات رسېدلای خوړل یې، وامثال ذالک کفر.

**مسئله**: که چا وویل یو ساعت علیه الصلوة والسلام لېوني سوی ؤ فقد کفر. او که چا وویل چي پر علیه الصلوٰة والسلام یو ساعت بېهوشي راغله نه کافر کېږي، او فرق یې دادی چي لېونتوب زوال د عقل دی، وهو محال علی الانبیاً

ولو ساعة بخلاف الاغما.

**مسئله**: که چا له پیغوره علیه الصلوٰة والسلام یاداوه چي پسونه یې پېولي دي له پیغوره مراد اهانت دی او یا پیغور په سهوه د لمانځه ورکړي او یا په نسیان سره او یاد اهانت په توګه چي د علیه الصلوٰة والسلام دېري مایني خوښي وې په دې ټولو صورتو کې کافر کېږي، او که یې په دغو وینا کي غرض بیان د واقع ؤ نو نه کافر کېږي کذا في الفتاوی الخاقانیة.

**مسئله**: که چا وویل چي علیه الصلوٰة والسلام چي به وره دوډی یعني ښوروا وغیره خوړل ګوتې به یې څټلې، بل یوه وویل "این بي ادبي است" او په معنی ددغه فارسي الفاظو یې په بله ژبه وویل فقد کفر لعدم احتمال لغیره، په فتوی ظهیریه کي یې ویلي دي چي قاضي ابو یوسف د هارون رشید پر سترخوان ناست ؤ چي امام ثاني وویل چي د علیه الصلوٰة والسلام کدو خوښ ؤ، یو نوکر له نوکرانو څخه د هارون وویل چي زما کدو نه دی خوښ، امام ابو یوسف وهارون ته وویل چي دا نوکر دي کافر سو که یې توبه وکښل خو ښه دی او که یې نه وکښه سر یې په توره څنډي پرې کړه فتاب واستغفر فامن من القتل انتهی، لکن په فتاوی خاقانیه کي وایي چي دا هلته کافر کېږي چي پر وجه د اهانت دا خبره وکړي او ان مراده بیان الواقع فلا یکفر آه.

اَلَا تُقَاتِلُوْنَ قَوْمًا نَّكَثُوْٓا اَيْمَانَهُمْ وَهَمُّوْا بِاِخْرَاجِ الرَّسُوْلِ وَهُمْ بَدَءُوْكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ

آیا تاسي نه کوئ جنګ د هغه قوم سره چي مات یې کړل خپل قسمونه او عهود او قصد یې وکړی په فراره کولو کي د رسول او دوی ابتدا وکړه تاسي ته اول وار په عهد ماتولو سره.

**درویش وایي**: چي بعض مفسرین وایي چي مراد له دې قوم څخه یهودان او منافقین دي او نور کفار د مدینې چي علیه الصلوٰة والسلام د تبوک وغزا ته ووتی، نو دوی خپل تو له عهود تر پښو لاندي کړه یعني مات یې کړه او دا یې قصد هم ؤ چي علیه الصلوٰة والسلام او مؤمنان له مدینې څخه باسو کما

قال ابی لئین رجعنا الی المدینة لیخرجن الاعزمنها الاذل. او دوی ابتدأ وکړه په عداوت ستاسي اول وار چي د مشرکانو سره يې کومک وکړی او علیه الصلوٰة والسلام ددوی سره جنګ نه ؤ شروع کړی.

**پوه سه:** چي مظهري رحمه الله دا تفسیر د قوم په یهودو او منافقینو سره اظهر بللی دی، دی وایي چي دا سورت د تبوک تر غزا وروسته نازل سوی دی او هغه وخت خو اهل مکه وو ایمان راوړی ؤ یعني په اهل مکه سره يې تفسیر نه دی روا، او بل دا چي په دې آیت "هموا" ذکر سوی دی "هم" خو دا بولي چي قصد يې کړی ؤ کامیابه نه سوه، او اهل مکه خو د علیه الصلوٰة والسلام په اخراج کي کامیابه سول، ولي قریشو خو د علیه الصلوٰة والسلام د وژلو قصد کړی ؤ چي د دار الندوة په غونډه کي د ابلیس شیخ نجدي په صورت دا مشوره په اتفاق الآرا منظور سوه، نو علیه الصلوٰة والسلام مجبور سو وتلو ته که څه هم دوی نه وه ورته ویلي ووزه، لکن اجبار پر خروج اخراج دی، ولهذا قال الله تعالی واخراج اهله منه اکبر عند الله یعني عبد الله تعالی بالاخراج.

او بعض مفسرین رحمهم الله وایي چي له "الذین نکثوا ایمانهم" څخه مراد اهل مکه دي چي دوی اوله د حدیبیې صلح ماته کړه او د بني بکر سره يې مرسته وکړه چي ددوی معاهدین وه په جنګ کي د خزاعه وه چي علیه الصلوٰة والسلام معاهدین وه او قصد يې هم کړی ؤ پر اخراج الرسول چي د دار الندوة غونډه يې وکړه او د علیه الصلوٰة والسلام پر قتل يې اتفاق وکړی کمامر آنفاً او په جنګ هم اول وار دوی شروع وکړه، ولي چي علیه الصلوٰة والسلام خو دوی ته په دعوت د توحید وترک الشرک شروع وکړه او ددوی معارضه بکتاب الله وکړه کما ذکره الله تعالی في سورة البقرة وان کنتم في ریب مما نزلنا علی عبدنا فأتوا بسورة من مثله" په هغه کي دوی عاجزه پاته سوه، نو نوري معجزې لکه شق القمر هم ښکاره سوې نو په حجت کي چي دوی پاته راغله، نو د معارضة باللسان سره يې مقارعة السیف والسنان مختاره کړی حتی اجتمعوا في دار الندوة وانعقدوا علی قتله ﷺ، او بل دا چي ابوجهل چي د ابو سفیان د قافلې د ساتنې لپاره له

مکې څخه راوتې سره د زرو کسانو فوج تخمیناً او دوی پر لاري وه چي دوی ته د قافلې د سلامتیا خبر ورسېدی او خلګو د فوج رئیسانو ته وویل چي راځئ چي بیرته مکې ته رجوع وکړو ولي چي زموږ مقصد پر ځای سو. هغو ورته وویل چي یا حتی نستاصل محمداً واصحابه.

ابو جهل په نیت د استیصال د محمد ﷺ.. دی په خپله استیصال سو چي نیت یې بد ؤ او لانهم بدؤا بقتال خزاعة حلفاً رسول الله ﷺ لکن دا بیان هلته صحیح کېږي چي نزول دډغو آیاتو قبل فتح مکه وي کما لایخفی.

**درویش وایي**: چي امام مظهري رحمه الله دا خبره هم کړې ده چي په قول ثاني چي بعض مفسرینو ویلي دي چي مراد په "الذین نکثوا ایمانهم" کفار د مکې دي الخ چي پر دې تفسیر هغه د ابن عباس رضي الله عنهما قول هم صحیح سو چي ان قوله تعالی "ان نکثوا ایمانهم آه" نزلت في ابی سفیان وغیره المذکورین من قبل وقوله تعالی "الا الذین عاهد تم عند المسجد الحرام فاستقاموا لهم ما استقیموا لکم" المراد به قریش امر الله رسوله بالتربص في امرهم ان استقاموا علی العهد یستقاموا لهم لکنهم لم یستقیموا"

**درویش وایي**: چي صاحب د روح المعاني او صاحب د روح البیان دواړه تفسیر ثاني خوښوي او قول د ابن عباس په اقرار د مظهري هم پر تفسیر ثاني صحیح کېږي، نو امام مظهري ولي چي تفسیر د آیت یې په یهودانو او منافقینو سره وکړی داسي یې وویل "وهذا اظهر لان آه صرف په تفسیر ثاني کي دا قدر شی غواړي چي دغه مذکور آیات قبل فتح مکه نازل سوی دی او دا خو ډېره ګرانه خبره نه ده چي سورت توبه دي مدني وي او وروسته دي تر غزوه تبوک چي بعد الفتح وه نازل سوی وي لکن دا څو آیات د قبل فتح مکه ؤ قبل غزوۃ تبوک نازل سوی وي، وفي القرآن امثال کثیرة.

**فائده**: استفهام په الا تقاتلون آه کي انکاري دی او داخل پر حرف نفي دی وقد تقرر في موضعه ان انکار النفي اثبات للمنفي وهو هٰ القتال یعني قاتلوهم لکه چي وروسته به خدای پاک دغه امر ضمني چي د استفهام انکاري څخه

وفهمېدی کما ذکرنا صراحة ذکر کړی.

أَتَخْشَوْنَهُمْ

آیا تاسي له دوی څخه بېرېږئ چي یو مکروه به موږ ته ورسوي، نو له دې سببه جنګ نه ورسره کوئ، استفهام لپاره د انکار دی یعني مه څني بېرېږئ لان الله ناصرکم علیهم.

فَاللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخْشَوْهُ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٣﴾

خدای ﷻ احق دی په دې سره چي تاسي څني وبېرېږئ في ترک امتثاله تعالی في القتال مع اعدائه. که چېري تاسي یاست مؤمنین.

**پوهسه:** چي "ان" شرطیه دی جزا یې له ماقبل څخه فهمېږي، والتقدیر "ان کنتم مؤمنین فالله احق آه" یعني چي مقتضی د ایمان داده چي خالق د ټوله عالم خدای ﷻ دی حتی افعال العباد ایضاً، او نفع او ضرر ټوله په مشیت پوري د خدای ﷻ اړه لري لایخشی احدا غیره تعالی.

**درویش وایي:** چي دادی خدای پاک چي تېره د ضمني امر بالقتال یې له تېکي څخه وکښله او د تصریح پر ډګر یې مسلمانانو ته ښکاره کړه.

قَاتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِينَ ﴿١٤﴾ وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَىٰ مَن يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١٥﴾

تاسي مسلمانان قتال ددوی سره متختار کړئ خدای ﷻ به عذاب ورکړي ودوی ته ستاسي په لاسو یعني وژلو سره او خدای پاک به دوی ذلیل، خوار، شرمنده او رسوا کړي او کومک به درکړي خدای پاک تاسي ته پر دوی باندي.

**درویش وایي:** چي دا وعده د خدای ﷻ په نصر او قدرت پر قتل د اعدا الله واعدا رسوله واعدا المؤمنین والله لایخلف المیعاد، او خدای پاک به شفا ورکړي سینو یعني زړو ته د هغه قوم چي مؤمنان دي چي په مرض د کفارو د ظلمو او ناوړه چال چلند مبتلا وه او خدای پاک به لېري کړي هغه غوصه او

بیقراري او اضطراب چي په زړو کي د مسلمانانو ؤ په سبب د قریشو د کومک د بني بکر سره چي ددوی معاهدین وه پر قبیلې د خزاعة چي حلیفان د رسول الله ﷺ وه نو د قوم مؤمنین څخه خزاعة مراد دي چي ددوی زړونه په بني بکر باره سي په سبب د قتل د قریشو کمامر في الآیة السابقة. او توبه به خدای ﷻ قبوله کړي پر هغه چي د خدای مشیت او اراده وي.

**درویش وایي**: چي په دې آیتو کي ډېري معجزې سته (۱) یعذبهم الله (۲) په قتل سره ستاسي په لاسو (۳) وینصرکم یعذبهم الله آه (۴) ویخزیهم (۵) ویشف صدور (٦) ویتوب الله، دا اخیري جمله چي اخبار دی په توبه سره، بعض ډېرو کسانو ته خدای ﷻ توفیق د ایمان راوړلو ورکړی له قوم څخه د قریشو لکه ابوسفیان، عکرمة بن ابي جهل، سهیل بن عمرو او نور دا تولي جملې اخبار بالغیب ؤ چي عالم شهادت ته رانبکاره سوې او خدای پاک خبر دی په ماضي او مستقبل او په حاضر امورو سره او خدای پاک صاحب د حکمت دی لا یصدر عنه العبث جداً. په حدیث کي راغلي دي چي علیه الصلوٰة والسلام د فتح مکې په ورځ وویل ارفعوا آل خزاعة من بني بکر الی العصر، ابن عباس ﷺ وایي چي خزاعة یو بطن ؤ د یمن او سبأ چي مکې ته راغلي وه او اسلام یې راوړی ؤ، نو د مکې والو له خوا څخه یې ډېر کړاونه، دردونه او ازارونه لیدلي وه، نو یې علیه الصلوٰة والسلام ته مدینې ته یو استازی ور واستاوه او خپل د شکایت غوته یې ورته پرانېزل، علیه الصلوٰة والسلام د شکایت په عوض کي بشارت ور واستاوه بقوله ابشروا فان الفرج قریب، حافظ شیرازي وایي:

آنکه پیرانه سرم به صحبت یوسف نبواخت
اجر صبر یست که د ر کلبه احزان کردم

نمونه خروار حکمت الهي

**حکایت**: تاریخ دانان دیرین مینویسند لکن بتاریخ واقعه نپرداخته اند وبعض از مفسران آن زمان حکایت مذکور در تفسیر خود درج کرده اند، که درزمان قبل یک عالم بزرگ که درعالم ظاهر وباطن علمبردار بوده شبی تاریکی را بنور

تهجد منور ساخته وچراغ که دران زمان معمول بود نزدیک مصلی خود نهاده بود ، یک شب خزیده سیاه بدبو کلان پاکه سراهایی قدیم الزمان خاکی بوده دربیخ دیوار که خاک باشد خود را انگاه میدارد وشب بیرون آید یک شبی خزنده آمد بر نور چراغ آمده وبر جای سجده آن بزرگوار درمصلی او قرار میگرفت شیخ دروقت سجده آن خزنده بدست خود دور رانده، وقتیکه از سجدتین فارغ می شد وبر رکعت دیگر میپرداخت آن خزیده آهسته آهسته بجای سجده شیخ می رسانید شیخ اورا بدست دور می انداختند . خیر درین شب نماز تهجد شیخ درکش ماکش خزیده و او گذارده شد وهمان حضور قلبي شیخ از تهجد می داشت درین شب هیچ نماند دراخیر سجده التجا نمود که چه حکمت درافرینش این خزیده بود که نه رنگ خوش نه بوی لائق دارد وصرف بازار نماز خوانندگان کار وبار او بود ، خیر ایام سپری شد چند گاه بعد بردست شیخ دانه باسوری یا ناسوری نمودار شد بادرد فوق العادة وروز بروز کلان می شد ، البته درآن زمان کار جراحی نخواهد بود لکن ادویه طب یونانی از قسم خوردنی واز قسم مالیشی همه وهمه استعمال نموده فائده نمینمود شبها شبها از غایت درد خواب نتوانستند اخیر الامر بدرگاه ایزد متعال نعره عجز ونیاز شروع نمود.

چون بلا نازل شود بی دافعی ........... جز تضرع نبود دیگر دافعی

خیر روزی مریدان وشاگردان بامرشد و استاذ خود جمع بودند که طبیب اسپ سوار درکوچها نعره میزد که اگر کدام مریض باشد همراه ما دوایی هر مرض موجود است.

درویش میگوید" که اینچنین طبیبان کوچه گشت درزمان طفولیت ما بودند ومردم آنها را تگان می گفتند یعني مردم فریب دهندگان هستند اگر کسی مریض پیش اینها می آمد کوککهای خشخاش کوبیده یا هلیله سیاه وزرد کوبیده وامثال آن دوای ایشان بود وقدری عسل را می انداختند آنرا معجون قوت باه می نامیدند ، حاصل آنکه طبابت ایشان سر تاپا غداری می بود ، شیخ مریض بکدام تلمیذ گفته که همین طبیب که نعره میزد پیش من بیارید شاید

کدام دوا داشته باشد که سبب علاج من شود. شاگردان همگی گفتند اینها طبیب نیستند بلکه کار اینها غدر وفریب است، شیخ گفت بازهم که بیارید خوب است شاگرد رفت طبیب مذکور را پیش شیخ مریض آورد طبیب که دانه باسوری شیخ دید شاگردان شیخ راگفت زود ترسه دانه یا چار خزیده درخاک که دربیخ دیوارها خود رانگاه میدارند بیارید مردم حاضر خنده گرفتن شروع نمود که خزیده کدام دوا هم باشد. شیخ مریض همان اعتراض شبانه که بر صنعت خزیده کرده بود وطالب حکمت درخلقت آن خزیده بود بیاد آمد به مریدان وشاگردان گفتند که زود شوید خزیده چند جمع کنید که طبیب درمعالجه مرض من کامیاب شده بنظر میآید شاگردان ومریدان عجولانه درطلب خزیده شدند ودر اندک زمانه خزیدهای بسیار جمع کرده آوردند طبیب همه راکشتند وکوفتند ومرهم واری برکدام لته مالیدند وبردست مریض شیخ بستند، درلمحه چند دانه دست شیخ سوراخ شد وریم وخون وغیره که درآنجا جمع شده بودند رو بخروج نمود وخارج شدند شیخ از بیقراری درد وغیره جور شد.

درویش میگوید: که این بود حکمت الهي درخلقت همه چیزها زیرا که درخزیده هیچ کس را به حکمت خالق لایزال نمی رسید تاکه بچشم خود دید.

**خبردار:** که مخلوق خدا اعتراض نکنید ورنه باهمچو مرض شیخ مواجه خواهید شوید ومن الله التوفیق، دروخت حاضر دوکتوران عصر حاضر ادویه سمیه یعني زهریه ببعض مریضان می دهد سم که ضد صحت است مد صحت میگردند.

## أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تُتْرَكُوا

آیا تاسي گمان لرئ چي تاسي به پاته سئ پر احوالو د استراحت او په جهاد به مامور نه سئ او ستاسي د صادق او کاذب امتحان به نه واخستل سي.

**بوه سه:** چي خطاب یا و مؤمنانو ته دی چي بعض ددوی له قتال سره نه وه جوړ، او بعض مفسرین وایي چي خطاب د منافقانو سره دی، او کلمه د "ام" منقطعه ده په معنی د بل ا بل یې لپاره د نقل من کلام الی کلام آخر. او همزه لپاره د توبیخ دی پر دغه حسبان آتي.

وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جَاهَدُوْا مِنْكُمْ

او عالم ثبوت او متحقق ته په خدای ﷻ نه وي را ایستلي هغه کسان چي جهاد کوي له تاسي څخه یعني د کفارو سره که څه هم سر او مال یې پکښي ځي، نو ظاهراً که څه هم نفي د علم د خدای ﷻ دی لکن مراد نفي د معلوم دی. فلا یرد ان هذه الآیة یدل علی حدوث علمه تعالی بالامتحان ولیس کذالک لانه تعالی عالم ازلاً وابداً بکل شئ.

**درویش وایي:** چي مور تاویل د علم په معلوم سره ولي وکړی لان مدار الثواب والعقاب هو تحقق المعلوم لا العلم الازلي لله تعالی ولهذا قال الله تعالی لئلا یکون للناس حجة بعد الرسل وذالک لانه لو کان مدار الثواب والعقاب یوم القیامة هو العلم الازلي له تعالی فلا یحتاج الی ارسال الرسل وانزال الکتب واذا لم یکن ذالک کان للناس حجة یوم القیامة بعذر الجهل بالثواب والعقاب لعدم البشیر والنذیر.

وَلَمْ يَتَّخِذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلَا رَسُوْلِهٖ وَلَا الْمُؤْمِنِيْنَ وَلِيْجَةً

او چي خدای ﷻ کړي هغه کسان چي نه یې وي گرځولی ماسوی له خدای او له رسوله او نه له مؤمنانو څخه صاحب السر یعني پټ راز. دا مثال د عصر نبوي د منافقانو و.

**درویش وایي:** چي دا جمله عطف ده پر "جاهدوا" او داخل په حیز کي د معنی د موصول ده، والتقدیر ولما یعلم الله الذین لم یتخذوا آه، او من دون الله متعلق دی په یتخذوا پوري، او ولیجة چي بطانة یې هم بولي صاحب سر ته وایي چي سری خپل د زړه اسرار ورته کشف کوي، او ولیجه یوه، دوه، درو او زائدو ټولو ته وایي.

وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۶﴾

او خدای پاک خبر دی په عمل ستاسي، که ما مصدریه سي او بما تعملونه بحذف العائد که کلمه د ما موصوله سي، په دې آیت کي تنبیه ده چي حال د مجاهد خدای پاک ته معلوم دی چي خالصاً او مخلصاً لوجه الله ولاعلاً کلمة الله العلیا اعني لا اله الا الله جنگېږي د کفارو سره او که یې غنیمت مد نظر دی او ریاً وسمعه او یا مراعات د قومیت الی غیر ذالک، قال السعدي قدس سره:

منه اب زر جان من بر پشیز ............ که صراف دانا نگیرد بچیز
زر اندوه گانرا بآتش برند ............ پدید آید آنگه کی مس یا زرند
بروی وریا خرقه سهلست دوخت ............ وگر باخدا درفروشی نکوست

## مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِيْنَ

بغوي رحمه الله وايي چي عباس رضي الله عنه چي په بنديانو كي د بدر را وستل سو، نو خلگو عباس رضي الله عنه ته پيغور وركړى په شرک او په قطع د صله رحمي د عليه الصلوٰة والسلام سره يعني د مشركانو په لښكر كي راغلى د عليه الصلوٰة والسلام د قتل په نيت خصوصاً علي رضي الله عنه ډېري سختي خبري ورته وكړې، نو عباس رضي الله عنه وملامت كونكو ته وويل چي زما بدي ذكر كوئ او زما ښه اعمال نه ذكر كوئ، علي رضي الله عنه په مقابل كي ورته وويل الكم محاسن؟ عباس رضي الله عنه وويل نعم هو انا لنعمر المسجد الحرام ونحجب الكعبة ونسقى الحاج، موږ آباد وو مسجد الحرام او موږ ساتو كعبه او پوښ وركوو او حاجيانو ته اوبه وركوو، فانزل الله تعالى هذه الآية رداً على عباس، وفي رواية قال العباس رداً على الآثمين وفي رد تهمة علي رضي الله عنه جواباً لهم ان كنتم سبقتمونا بالاسلام والهجرة والجهاد لقد كنا نعمر المسجد الحرام ونسقى الحاج ونفك العالي فانزل الله تعالى الآية رداً عليه. والمعنى الآية ماصح وما ينبغي لهم اى للمشركين لكه عباس چي دعوه وكړه.

## أَنْ يَّعْمُرُوْا مَسٰجِدَ اللّٰهِ

چي دوى دي آباد كړي يو مسجد له مساجدو څخه د خداى جل جلاله فضلاً عن المسجد الحرام، ولي چي د مسجد آبادي ددې لپاره چي په هغه كي عبادت د خداى جل جلاله وسي وحده لاشريک له دا خو د مسلمانانو وظيفه ده نه دا چي په مسجد كي خصوصاً په مسجد الحرام كي دي عبادت د غير الله كېږي چي بتان دي، نو د كافر له شانه څخه دا نه ده چي يو مسجد دي اباد كړي.

**مسئله:** بعض ائيمه وايي چي مراد په آيت كي دا مشهوره ابادي ده من بنا المسجد ابتداءً يا مرمت كول د مسجد عند خرابه فيمنع الكافر منه حتى كه كافر د مريني په وخت كي وصيت وكړى چي زما په ثلث مال دي يو مسجد د

مسلمانانو لپاره جوړ کړل سي قاضي دي دده دا وصيت نه پر ځای کوي، او بعض علما رحمهم الله وايي چي مراد له عمارت څخه دخول دی د مسجد او په هغه کي ناسته. ترمذي وغيره من المحدثين له ابي سعيد الخدري رضي الله عنه څخه روايت کړی دی ده وويل قال رسول الله اذا رئيتم الرجل يعامر المسجد فاشهدوا له بالايمان. بيا عليه الصلوٰة والسلام دا آيت دليل وګرځاوه انما يعمر مساجد الله من آمن بالله، نو کافر ته که ابتداء يا انتهاء اجازه د مسجد د تعمير ور کړل سي، نو بايد په ايمان سره يې هم شاهدي ادا کړل سي واذ ليس فليس. وايضاً عمارة الکافر المسجد يخالف الآية المذکورة يعني انما يعمر آه بکلمة الحصر. او حسن بصري رحمه الله وايي چي د آيت معنا داده ماکانوا ای المشرکين ان يترکوا فيکون اهل المسجد الحرام.

**درويش وايي:** چي دا معنا که څه هم في نفسه صحيح ده لکن د مذکور شان نزول سره منافي ده والله اعلم بالصواب. په فتاوی قنيه کي وايي چي اعظم د مساجدو از روی حرمت. مسجد الحرام دی ثم المسجد النبوي في المدينة المنورة ثم مسجد بيت المقدس (وقيل بالعکس في المسجدين المذکورين) ثم الجوامع (يعني چي د جمعې لمونځ پکښې کېږي) ثم مساجد المحلات ويجوز الاعتکاف فيها. ثم مساجد الشوارع. يعني د لارو مسجدان که يې امام او مؤذن نه درلودی فضيلت د مسجد خو لري او اعتکاف نه دی پکښي روا.

شٰهِدِيْنَ عَلٰۤى اَنْفُسِهِمْ بِالْكُفْرِ

چي دوی شاهدي ادا کوي پر خپلو ځانو په کفر سره. مراد له شهادت څخه اظهار دی ای مظهرين الشرک وتکذيب الرسول صلى الله عليه وسلم ومعاداة المؤمنين. د شاهدين لفظ حال دی له ضمير څخه د يعمروا. والحاصل چي دوی څرنګه دعوه کولای سي چي موږ تعمير د بيت الله الحرام کوو او د بتانو عبادت هم کوو لانه دعوی اجتماع المتباينين کالجمع بين الضب والنون. حسن بصري رحمه الله چي دوی خو دا نه وايي چي موږ کافران يو لکن کلا مهم بالشرک شاهد عليهم بالکفر. او ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي ددوی سجده وبتانو ته شاهدي ده ددوی پر

خپلو ځانو پر کفر باندي، د قريشو کفارو خارج البيت الحرام د كعبة الله ودېوالـه ته بتان درولي وه، او دوی به پر بيت الله باندي طواف لخ پخ کاوه، نو هر وار چي به يې يو شوط پوره سو بتانو تـه بـه يې سجدې کولې، په زړه پوري وجـه د شاهدۍ پر ځان داده چي څوک چي له يهودي څخه پوښتنه وكړي چي په مذهب څوک يې؟ دی ورته وايي چي زه يهودي يم وهكذا النصراني يقول انا نصراني، او له دوی څخه چي به چا پوښتنه وکړه چي تـه پـه دين څوک يې، دوی به ورتـه ويل مشرک لکن د کفر لفظ يې نه وايه يعني شرک يې کفر نه باله.

**درويش وايي**: چي له دې بيانه څخه دا معلومـه سوه چي کفر ښخي تريخ نوم دی چي هيڅ څوک يې پر ځان نه قبلوي.

أُولَٰئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ ۚ وَفِي النَّارِ هُمْ خَالِدُونَ ﴿١٧﴾

دغه کسان چي فخر کوي پـه خپلو عملو لکه عمارة المسجد الحرام وسقاية الحاج وغير ذالک، ددوی گمان دادی چي دا ښـه اعمال دي او شاهدين على انفسهم بالكفر هم وي لغوه دي او بې فائدې دي دغـه عملونه ددوی او يـا نـور ورته ښـه عملونـه يعني هيڅ ثواب او اعتبار په نېز د خدای ﷻ نه لري لانتفا شرط الثواب عليها وهو الايمان او په اور كي د دوزخ به دوی همېشه وي.

**مسئله**: قاضي عياض رحمه الله په شفا کي وايي انعقد الاجماع على ان الكفار لاتنفعهم اعمالهم" يعني پر دې د امة مرحومه اجماع ده چي کافرانو ته ددوی عملونه نفع نه رسوي که څه هم د حسناتو له جنسه وي لکه مؤمن چي سره د ايمانـه وکړي لکـه پـه اوسنۍ زمانـه کي خيريـه مؤسسات د امريکايانو، انگرېزانو او د نورو کفارو چي د مصيبت زده مسلمانانو سره يې کوي دوی ته يې نفع او ثواب نسته لعدم الشرط وهو الايمان، او نـه تخفيف د عـذاب ځندي کېږي، اما پـه کافرانو کي فرق سته پـه انواع کي د کفر پـه اعتبـار د جرائمو ددوی، نو په عذابو کي يې هم فرق سته په شدت او ضعف کي ددوی د جرائمو په سبب.

إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسٰجِدَ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ وَلَمْ يَخْشَ اِلَّا اللّٰهَ

نه ابادوي مساجد د خدای ﷻ مګر هغه کسان چي ايمان يې راوړی پر خدای يعني په توحيد سره او پر ورځ باندي چي د قيامت ورځ ده يعني پر بعث بعد الموت باندي، او اقامة د لمانځه کوي، او زکوة ورکوي د خپلو مالونو که نقود وي او که مواشي وي.

**فائده:** اقامة الصلوة نفس لمونځ کولو ته نه وايي بلکې سره د شرائطو او فرائضو او د واجباتو او د سنتو او مستحباتو، ځکه علماً کرام وايي چي لمونځ کونکي خو ډېر دي لکن مقيمين الصلوة ډېر لږ دي، والفرق بينهما ظاهر.

**فائده:** مسلمانان بايد د فرائضو په ادا کولو کي له هيڅ چا څخه ونه ډېرېږي حتی چي هغه فرائض ترک کړي بلکې اوامر الهيه دي پر ځای کوي د خدای ﷻ له ډېري څخه.

**پوښتنه:** په آيت مذکور کي ايمان بالرسول نه راغلی توجيه يې څه ده؟

**ځواب:** الايمان بالله کما هو حقه نه پيدا کېږي بېله اخذ من الرسول ﷺ فاکتفی بذکر الايمان بالله عن ذکر الايمان بالرسول بهذ الاعتبار، په بخاري او مسلم کي په قصه د وفد د عبد القيس قبيلې چي رسول الله ﷺ ودوی ته وويل اتدرون ما الايمان بالله وحده؟ قالوا الله ورسوله اعلم عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل شهادة ان لا اله الا الله وان محمداً رسول الله، حيث ادرج الايمان بالرسول في الايمان بالله وحده الى اخير الحديث الطويل في قصة وفد عبد القيس.

**فائده:** مراد له عمارة المسجد څخه همېشه عبادت پکښي کول دي او ذکر الهي او تلاوت القرآن ودرس العلوم الشرعية فيها مع النظافة الظاهري من الانجاس، او له خس او خاشاک څخه يې پاک ساتل او لهو ولعب نه پکښي کول

**درويش وايي:** په نقل د تفاسيرو معتبره وو په پښتو ژباړه، تعمير د مساجدو څو قسمه دی.

(۱) نفس بنا د مسجد یعني پر مځکه یې اساس اېښوول.

(۲) تجدید ما انهدم منها. وجا في الحدیث الصحیح سبع یجري للعبد اجرهن وهو في القبر بعد موته (۱) من تعلم علماً" که چا ته یې وښوو یو علم یعني له علوم دینه وو څخه او یا د ما یتوقف علیه العلوم الدینیة کالنحو والصرف وغیرهما فیخرج به العلوم الفلسفیة المخالفة لدین الاسلام (۲) وکری نهراً او یا یې واله وکښل لکه په افغانستان کې د نهر سراج واله یا د بغرا واله (۳) او حفر بیراً یعني د خلګو د فائدې لپاره یې څاه وکښی (۴) او غرس نخلاً" یعني د خورما درخته یې شنه کړه یا یوه بله مېوه داره درخته لکه انار، سېب، انګور وغیرها (۵) مسجد یې بنا کړی که لوی وي او که کوچنی (٦) او ورث مصحفاً (۷) وترک ولداً یدعو له بعدموته. په روضة الاخیار کې راغلي دي که مسجد وړېدی او معطل سو او یا یې محله بار سوه په مسجد کې هیڅ چا لمونځ نه کاوه، امام محمد رحمه الله وایي چې دا میراث دی د ورثه د اول باني یعني که باغ ځندي جوړوي او که د کښت مځکه او که سرای، او امام اعظم او ابو یوسف وایي هو مسجد علی حاله یعني که یې مذکوره شیان پکښې جوړول نه دي ورته روا، له امیر المؤمنین علي رضي الله عنه څخه روایت دی چې شپږ کارونه د انسان د غیرت کارونه دي درې پر کور او درې په سفر کې. هغه درې چې په حضر کې دي یعني پر کور (۱) تلاوت کتاب الله (۲) عمارة مسجد لله (۳) کثرة الاخوان في الله" یعني د پر وروڼه او دوستان پیدا کول په لار کې د خدای جل جلاله، او د سفر د غیرت کارونه (۱) فبذل النزاد یعني د انډیوال سره د نفقې کومک کول (۲) وحسن الخلق د ملګرو سره ښه اخلاق کول (۳) مسخرې کول د ملګرو سره لکن في غیر معاصي الله.

(۳) خطیب په روضة کې وایي جارو کول د مسجد دي، قال حسن بصري رحمه الله ولور د جنت د حورو د مسجد و جارو کول او پاک ساتل دي.

(۴) ښائسته کول د مسجد په هغه فرش سره حتی الوسع که سترنجي او که قالین وي، او په حدیث کې راغلي دي چې اول سړی چې مسجد نبوي یې په بوریا فرش کړی حضرت عمر رضي الله عنه و دده تر مخه د مسجد مځکه په سنګرېزو فرش وه.

**مسئله:** د مسجد سپینول په گچو یا په سپینه خاوره روا دی، ولي چي په تاریخ اسلامي کي راغلي دي ان الولید بن عبد الملک انفق علی عمارة مسجد دمشق وتزیینه مثل خراج الشام ثلاث مراة.

تاریخ د ابن خلکان وایي چي سلیمان بن داوٗد علیهما السلام چي د بیت المقدس مسجد جوړاوه په بنائست کي یې فوق العادة سره زر سپین زر او پېش قیمته جواهرات کار کړه حتی چي د مسجد د قبه پر سر یې د کبریت احمر غمی چي په توله نړۍ کي نه په هغه وخت کي او نه اوس تر کبریت احمر لوړ قیمت غمی نه و او نه سته ولگاوه چي د شپې یې هر طرفته یو میل رڼا کوله. حتی چي کنې ودونکو به د شپې پر دوولس میله کنې ورته ودی، او بیت المقدس پر دغه بنائست پاته وه حتی چي بني اسرائیلو ظالمانو د خپلو نبیانو په مخالفت لاس پوري کړی حتی چي بعض انبیاءٔ یې هم ووژل، نو دریاب د غضب الهي پر جوش راغلی او بخت نصر بابلي سره د لوی لښکره پر بیت المقدس حمله وکړه او په زرهاوو بني اسرائیل یې په قتل ورسول او دوولس زره نوخاسته ځوانان یې په حصارت د مریي توب په تو گه ځندي بوتله، او د بیت المقدس توله سر او سپین زر او جواهرات او کبیرت احمر غمی یې ځندی لوټ کړه او وروسته یې بیت المقدس لوټي لوټي کړی او قیمتي قیمتي شیان یې توله ځندي ټول کړه او خپل دار السلطنت بابل ته یې نقل کړه، درویش وایي چي بیا د بیت المقدس د آبادي چي قصه ډېره اوږده ده.

(۵) په مساجدو کي قندیلان او څراغونه د هري زماني سره لائق روښانه کول دي، په حدیث شریف کي راغلي دي چي که چا قندیل یا گروپ په اوسنی زمانه کي په مسجد کي روښانه کړی او ویا زره ملکي ده ته دعاوي کوي تر هغو چي هغه قندیل وغیره ماتېږي کذا في الکشف. له انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي که چا په یوه مسجد کي د مساجدو څراغ ولگاوه نو تر هغه وخته پوري چي رڼا د هغه څراغ په مسجد کي وي ملکي او حملة العرش لگونکي ته دعاوي کوي، تاریخ وایي چي سلیمان بن داود علیهما السلام چي د بیت المقدس مسجد تکمیل

کړی کمامر بیانه، نو امر یې وکړی چې یو زر اووه سوه (۱۷۰۰) قندیلان چې د سرو زرو وي د سپينو زرو په ځنځيرانو دي په کنبي وځړول سي، د اسلام تاريخ وايي چې اول وار چې مسجد نبوي ﷺ په مدینه منوره کي تکمیل سو په ډېر ساده ډول چې میلان یې د خورما تیران وه او یا لکه منا غونډي لرګي وه، سربېره یې د خورما د درختو لښتي پر اچولي وې او بیا یې ګل پر اچولی ؤ چې لږ تېز او دوام داره باران به وسو تېوله مسجد به څڅېدی، او د ماخستن د لمانځه په وخت کي به یې څو لرګي د خورما ولګول او د هغو ورڼا ته به یې لمونځونه کول حتی چې تمیم داري رضي الله عنه چې یو تاجر ؤ مدینې منورې ته راغلی څو دانې قندیلان یعني د تیلو څراغان او رسۍ چې هغه څراغان یې په ځړول او د زیتون تېل یې راوړه او د شپې یې په مسجد نبوي کي وځړول، نو علیه الصلوٰة والسلام چې دا نوراني مسجد ولیدی داسي دعا یې تمیم داري ته وکړه نورت مسجدنا نورالله قلبک او قبرک" او داسي یې زیاته کړه که ما لور درلودای وتمیم رضي الله عنه داري ته به مي په نکاح ورکړې وای.

**مسئله:** له مستحب بدعاتو څخه دی تعلیق القنادیل في المساجد و اول من فعله ذالک عمر بن الخطاب رضي الله عنه ولي ده چې خلګ جمع کړه پر ابی بن کعب باندي د تراویح په لمانځه کي، نو په مسجد نبوي کي یې په کثرت قندیلان وځړول، نو علي رضي الله عنه چې مسجد روښانه ولیدی، نو یې وویل نورت مسجدنا نورالله قبرک یا ابن الخطاب.

**درویش وایي:** چې په قید د کثرت په قنادیلو کي د عمر رضي الله عنه هغه سوال دفعه سو چې اول ځړونکی د قندیل په مسجد نبوي کي تمیم داري رضي الله عنه ؤ کمامر فافهم

**مسئله:** شیخ عبدالغني النابلسي رحمه الله خپل په کتاب کي چې نوم یې کشف النور عن اصحاب القبور دی داسي لیکلي دي، چې خلاصه یې په پښتو ژباړه داده "البدعة الحسنة الموافقة لمقصود الشرع تسمی سنة" لکه جوړول دي د ګنبدو پر قبورو د علما دین والاولیا والصلحا و وضع الستور والثیاب علی قبورهم امر جائز اذا کان المقصود في ذالک التعظیم في اعین العامة حتی لا یحتقروا صاحب هذا

القبر لان التحقير والاهانة للاولياً والصلحاً كما لايجوز في حياتهم لايجوز بعد مماتهم. فالمقصود من الامور المذكورة تعظيماً لهم ومحبة فيهم جائز لا ينبغي النهي عنه كما هو مذهب السلفية والوهابية فانهم يقولون التعظيم لما وراً الله شرک فما يقولون في تعظيم القبر الانور للنبي ﷺ وضجعيه ابوبكر وعمر رضي الله عنهما.

(٦) سنت د مساجدو دخول دی مسجد ته او ناسته ده په مسجد کي. والعبادة والذكر فيها او درس د علوم دينيه ؤ په مساجدو کي ونحو ذالک، ابن عباس رضي الله عنهما خلگو ته وویل الا ادلكم على ماهو خير لكم من الجهاد قالوا بلى ان تبنوا مسجداً فيتعلم فيه القرآن والفقه في الدين او السنة.

**درويش وايي:** چي په شروح کي د کتابو د حديثو وايي چي ورته خبري د ابن عباس رضي الله عنهما محمول دي على السماع من رسول الله ﷺ.

(٧) د مسجد حق دادی چي مسجد به ساتي له هغو کارو څخه چي مسجد د هغو کارو لپاره نه وي جوړ سوی لکه د دنيا خبري يا نوري بې فائدې خبري، وورد في الحديث الصحيح "الحديث في المسجد" يعني لغوه او بې فائدې خبري يا په امورو کي د دنيا خبري "ياكل الحسنات كما تاكل البهيمة الخشيش" وفي الحديث قال الله تعالى ان بيوتي في ارضي مساجد وان زواري فيهما عمارها. فطوبى لعبد تطهر في بيته ثم زارني في بيتي، فحق على المزوران يكرم زائره.

الاحاديث الصحيحة الوارد في المساجد (١) چي تاسي ووينئ يو سړی چي عادت يې د مسجد سره وي يعني د صلوات خمسه لپاره او د تلاوت القرآن لپاره الى غير ذالک من العبادات فاشهدوا له تاسي شاهدان اوسئ دده لپاره په ايمان سره قال الله تعالى انما يعمر مساجد الله من بالله واليوم الآخر رواه الترمذي وابن ماجه عن ابي سعيد الخدري رضي الله عنه عن النبي ﷺ.

(٢) عن ابي هريرة رضي الله عنه عن النبي ﷺ من غداً الى مسجد او راح اعد الله له منزلة من الجنة كلما غداً او راح (متفق عليه)

**ژباړه:** کله څوک قبل الزوال مسجد ته ولاړ يا بعد الزوال يعني د عبادت لپاره خدای پاک به اراسته کړي دده لپاره منزله يعني درجه په جنت کي هر وخت چي

دی قبل الزوال او بعد الزوال چي دی مسجد ته تګ کوي.

(۳) عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ سبعة يظلهم الله في ظله يوم لاظل الا ظله" وذكر فيهم رجل قلبه (ترلی وي په مسجد پوري) اذا خرج منه حتى يعود اليه (متفق عليه)

**ژباړه:** ابو هريره رضي الله عنه وويل چي عليه الصلوٰة والسلام وويل چي زما د امت اووه قسمه خلګ به د عرش په سايه کي وي هغه ورځ چي سايه نه وي بيله سايي يعني بيله عرش د سايي، ددې اوو کسانو په جمله کي هغه څوک دی چي زړه يې مربوط وي په مسجد پوري چي څندي ووزي تر څو چي بيرته ورته راځي.

**درويش وايي:** چي ددې حديث معنا داده چي يو لمونځ يې په جماعت په مسجد کي وکړی د جماعته چي ووزي، نو د بل لمانځه په انتظار وي والله اعلم.

(۴) وعن سلمان رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من توضأ في بيته فاحسن الوضوء ثم اتى المسجد، فهو زائر الله حق على المزور ان يكرم زائره (طبراني، بيهقي، ابن جرير)

**ژباړه:** عليه الصلوٰة والسلام وويل که چا اودس تازه کړی په کور کي او ښه کامل اودس يې تازه کړی وروسته راغلی مسجد ته، نو دا سړی د خدای ﷻ زيارت کوونکی دی يعني چي بيت الله ته راغلی دی، او حق دی پر خدای ﷻ چي مزور دی چي د خپل زائر اکرام به کوي يعني په رحمت او مغفرت سره.

(۵) عن عمر بن ميمون رضي الله عنه قال كان اصحاب رسول الله ﷺ يقولون ان بيوت الله في الارض المساجد وان حقاً على الله ان يكرم من زاره فيها (بيهقي، عبدالرزاق، ابن جرير)

(۶) عن محمود بن لبيد رضي الله عنه ان عثمان بن عفان رضي الله عنه اراد بناً المسجد (اى المسجد النبوي پر طرز جديد يعني تر ډېرو پوري او تر ميلانو پوري او تر باڼه پوري پر پاخه ډول. صحابه کرامو ﷺ دغه پخته بناً چي عثمان رضي الله عنه يې اراده کړي وه مکروه وبلل او ددوی خوښه وه چي پر طرز نبوي دي پريښول سي. او زياتوب چي پر خلګو تنګ دی د هغه بنا نبوي پر ډول دي پکښي وکړل سي. نو عثمان رضي الله عنه خلګو ته وويل چي ما له رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي که چا مسجد بنا کړی يبتغي به وجه الله بنى له مثله في الجنة (بخاري، مسلم، ترمذي)

**پوښتنه:** په دغه حديث سره عثمان ﷺ څرنګه دليل ووايه پر صحت او جواز د پخته جوړولو د مسجد نبوي؟

**ځواب:** عثمان ﷺ په مثله دليل وو ايه يعني چي مثله پر دې دلالت کوي چي مسجد په کم او په کيف او په مختلفو ډولو جوړېدلای سي په کم لوی او کوچنی په کيف کچه لکه په عصر نبوي کي مسجد نبوي ﷺ چي وُ کېدای سي او پخته او مزين هم کېدای سي.

**درويش وايي:** چي د مسجد د بنا او د تزئين په باب او د فروش فاخره وو په باب او د څراغانو په کثرت سره او په مستحکم عصري ډول جوړولو د پر احاديث صحيحه راغلي دي چي د ټولو راوړل به غايت اطناب وي فلترجع الى تفسير القرآن العزيز.

فَعَسَىٰٓ أُولَٰٓئِكَ أَن يَكُونُوا۟ مِنَ ٱلْمُهْتَدِينَ ﴿١٨﴾

نو ښايي چي دغه کسان به وي د مهتدينو له ډلي څخه.

**يوه سه:** چي خدای پاک ددغو کسانو په باره کي چي مؤمنين بالله وه او مؤمنين بيوم الآخرة وه او لمونځونه يې هم کوله او د اموالو زکوة يې هم ورکاوه او نه بېرېدله له غير الله څخه. لفظ د عسى يې وو ايه چي لپاره د توقع او طمع دی تنبيه يې پر دې وکړه چي مشرکان دي طمع د اهتدا نه کوي په سبب د اعمال مذکوره سره د شرکه او سر زنش ودوی ته چي ددوی يقين وُ چي موږ پر هدايت يو، حاصل د توبيخ دادی چي دغه ډله چي مؤمنين بالله آه وه لاهم هدايت يې دائر دی په منځ کي د عسى او لعل. نو ددوی ضد کسان چي مشرکين دي څرنګه خپل پر ځان شاهدي د هدايت او يقين پر خپل نجات لري!.

أَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ ٱلْحَآجِّ وَعِمَارَةَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ

آيا تاسي ګرځوئ اوبه ورکول وحاجيانو ته او آبادي د مسجد الحرام.

**درويش وايي:** چي ددې آيت دوه قسمه شان نزول دی چي مسلم او ابوداؤد له نعمان بن بشير ﷺ څخه روايت کړی دی، دی وايي چي د جمعې ورځ وه زه د منبر نبوي سره د نورو کسانو سره ناست وم، چي يوه نفر له اصحابو څخه د رسول الله ﷺ وويل ما أبالي ان لا اعمل بعد ان اسقى الحاج، او بل يوه وويل لا

ابالي ان لا اعمل عملاً بعد ان اعمر المسجد الحرام، او بل صحابي وویل الجهاد في سبيل الله افضل مما قلتما. نو عمر ﷺ دوی زجر کړه او داسي یې ورته وویل لا ترفعوا اصواتکم عند منبر رسول الله ﷺ ولکن چي د جمعې لمونځ وکړم زه به د فتوی طلب ستاسي لپاره وکړم له علیه الصلوٰة والسلام څخه، نو چي لمونځ وسو علیه الصلوٰة والسلام کور ته ولاړی عمر ﷺ ورغلی پوښتنه یې څندي وکړه فنزلت هذه الآیة.

**درویش وایي:** چي دغه حدیث د نعمان بن بشیر ﷺ چي مو ږ ذکر کړی مظهري ﷺ هم راوړی دی، لکن د کاتب د سهوه له سببه غلط دی فانظر هنالک والصحیح ماذکرنا، او بعض مفسرین ﷺ وایي چي دا آیت په باره کي د مشرکانو نازل سوی دی، بعض له دوی څخه وایي چي علي ﷺ ورسته تر هجرت مکې ته ورغلی و، نو عباس ته یې وویل ای عم الا تهاجر الا تلحق برسول الله ﷺ (ته هجرت مدیني ته نه کوې یعني هجرت وکړه ولي الا حرف تخصیص دی چي پر مضارع داخل سي مراد څندي باعث کول وي د مخاطب پر هغه کار، او ته د رسول الله ﷺ سره نه ملاقي کېږي یعني چي ایمان پر راوړې؟ عباس ورته وویل اعمر المسجد الحرام واحجب البیت فانزل هذه الآیة. بغوي له ابن عباس ﷺ څخه روایت کړی دی چي عباس چي د بدر په ورځ ژوندی اسیر سو، نو علي ﷺ په ډیر شدت وده ته وویل چي تا قطع د صلة الرحم وکړه چي د نورو مشرکینو سره د علیه الصلوٰة والسلام په قتل پسي له مکې څخه راوتلی یې، عباس ورته وویل لئن سبقتمونا بالاسلام والهجرة والجهاد لقد کنا نعمر المسجد الحرام ونسقی الحاج فانزل الله تعالی هذه الآیة، نو حاصل د عباس د کلام رد دی چي عمارت د مسجد الحرام او سقیا د حاجیانو سره د شرکه هیڅ په درد نه خوري، نو مخاطب په جعلتم سره مؤمنان دي پر اول روایت، او پر دوهم روایت مخاطب مشرکان دي والمعنی آیا تاسي گرځوئ ای مشرکانو سقایة الحاج آه.

الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ كَمَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَجَاهَدَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

لکه هغه څوک چي ایمان یې راوړی پر خدای ﷻ باندي چي خدای یو دی او

لاشريک له في الذات ولا في صفاته ومن صفاته المعبودية فلا شريک له في العبادة. او ايمان يې وي پر ورځ د اخيرت يعني بعد الموت الاحيا المستلزم للايمان بالجنة والنار والحساب على الاعمال الحسنة والسيئة او جهاد يې کړی وي په لار کي د خدای ﷻ.

**يوښتنه**: از روی قانون عقلي والاصطلاحي مشبه او مشبه به بايد له يوه جنسه څخه وي، او په آيت کريمه کي مشبه سقاية او عمارة دي چي دواړه مصدر دي او مشبه به يې من آمن دی چي هغه ذات دی، نو د تشبيه يې څه وجه ده؟

**ځواب**: صحت د تشبيه يې مبني پر حذف د مضاف يا په مشبه کي. والتقدير اجعلتم اهل سقاية الحاج آه، او يا په مشبه به کي. والتقدير اجعلتم سقاية الحاج آه کايمان من آمن الخ.

**يوه سه**: چي استفهام په آيت کي لپاره د انکار دی ای ليس الاول بمشابه للثاني اصلاً، او د تشبيه د صحت لپاره بله وجه هم بعض مفسرينو راوړې ده چي سقاية او عمارة دي په معنی د فاعل وي ای اجعلتم ساقي الحاج وعماره آه.

**فائده**: که چېري نزول د آيت في اختلاف المؤمنين بالمشركين وي کما يدل عليه قول ابن عباس رضي الله عنهما ومحمد بن کعب وغيرهما فلا خفاً في انکار المشابهة په منځ کي د مشرکانو او د اعمال خبيثه وو ددوی، او د مؤمنانو او د اعمال حسنه وو ددوی، او که چېري اختلاف په تشبيه کي د مؤمنينو بالمؤمنين وي کما روی مسلم عن النعمان بن بشير رضي الله عنه. فوجه انکار التشبيه داده چي مراد له عمارة المسجد الحرام څخه عمارة ظاهري دی ولاشک ان الجهاد في سبيل الله افضل من العمارة بحسب الظاهر.

**تنبيه**: درويش له دې سببه عمارت ظاهري ووايه ولي چي عمارت حقيقي د مسجد حرام په نيز د اهل الله دوام د ذکر او د لمانځه دی په مسجد حرام کي ولاشک ان دوام الذکر افضل من الجهاد لقوله عليه الصلوٰة والسلام ما من شئ انجى من عذاب الله من ذکر الله رواه مالک والترمذي وابن ماجه رحمهم الله من حديث معاذ بن جبل رضي الله عنه، وفي رواية قالوا ولا الجهاد في سبيل الله، او نه الجهاد في

سبیل الله انجی من عذاب الله دی تر ذکر د خدای ﷻ الا ان یضرب بسیفه حتی ینقطع مګر ښه جهاد انجی دی تر ذکر انجی چي په توره کفار وهي تر هغو چي جهاد قطع کبږي. په بل حدیث کي چي روایت یې احمد رحمه الله کړی دی چي علیه الصلوة والسلام و صحابه کرامو ﷺ ته وویل آیا زه تاسي ته خبر درنه کړم په داسي یو عمل سره چي خیر د عملو ستاسي وي او پاک عمل وي عند ملیکم وارفعها في درجاتکم وخیر لکم من انفاق الذهب والفضة وخیر لکم من ان تلقوا عدوکم فتضربوا اعناقهم ویضربوا اعناقکم. قالوا بلی یعني راوه یې ښیه ښه عمل چي دومره فضائل لري، قال ذکر الله. ددې حدیث روایت ترمذي او ابن ماجه هم کړی دی له ابو درداء رضی الله عنه څخه، او له ابو سیعد الخدري رضی الله عنه څخه روایت دی چي له علیه الصلوٰة والسلام څخه چا پوښتنه وکړه ای العبادة افضل وارفع درجةً عند الله یوم القیامة قال ﷺ "بحذف المضاف" ای ذکر الذاکرون الله کثیراً والذاکرات قیل یا رسول الله ﷺ ومن الغازي في سبیل الله قال لو ضرب بسیفه في الکفار حتی ینکسر او یختضب دماً فان الذاکر لله افضل منه درجةً" رواه احمد والترمذي.

**درویش وایي:** چي ذکر د خدای ﷻ عام لفظ دی ذکر خفي او جلي دواړو ته شامل دی، او عام دی که په لفظ د الله الله الله وي او که په نورو اسماً الحسنی سره وي او که کلمة التوحید وي یعني لا اله الا الله او که په سبحان الله وبحمده سبحان الله العظیم سره وي او که په کثرة تلاوة القرآن سره وي الی غیر ذالک مما فیه التوجه الیه تعالی بالفاظ لائقة بذاته عزوجل، البته په انواعو کي د ذکر به فرق وي لکن اذکار په صورت مجموعي افضل دي تر جهاد في سبیل الله بحکم رسول الله ﷺ.

لَا يَسْتَوُنَ عِنْدَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ

دا دوې ډلې نه دي سره برابري په نېز د خدای ﷻ، او خدای هدایت نه ورکوي و هغه قوم ته چي ظالمان وي.

**درویش وایي:** چي دا آیت تائید دی بلکې تصریح د هغه قول کوي چي مراد په آیت سابق کي عدم استواً وه د فعل د مؤمنانو من الایمان بالله وبالیوم الاخیر والجهاد في سبیل الله، او د مشرکانو د فعل سقایة الحاج وعمارة

المسجد الحرام والمعنى على التقدير المذكور في هذه الآية والله لا يهدي القوم الظالمين بالشرک وانما قلنا يؤيد لانه جا في هذه الآية لفظ الظالمين وليس في الاختلاف بين المؤمنين ظالم اصلاً.

**سوال:** راويان د هغه قول چې دا آيت په اختلاف کې د مؤمنانو راغلی دی لوړ علمي کسان وه، نو هغه به د دې آيت څه ترجمه کوي او کومه ډله د مؤمنانو به ظالمه بولي؟

**ځواب:** هغه کسان دا آيت جمله معترضه يا مستأنفه بولي د تحذير له ظلم څخه والله اعلم.

**قصة سقاية الزمزم:** بخاري او نورو محدثانو رحمهم الله له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی چې عليه الصلوٰة والسلام د حجة الوداع په کال راغلی وسقاية ته د زمزم او عباس رضي الله عنه ته يې وويل اوبه راکړه، عباس رضي الله عنه وخپل زوی فضل ته وويل ورسه مور ته دي ناره وکړه چې عليه الصلوٰة والسلام ته صافي اوبه راوړه فقال ﷺ استقني يعني داغه اوبه راکړه چې وه يې څښم. عباس رضي الله عنه ورته وويل چې په دې اوبو خلګ لاسونه چخي يعني في الجملة چټلې دي. عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل اسقني يعني داغه اوبه راکړه، نو عباس رضي الله عنه هم حاضري اوبه ورکړې او عليه الصلوٰة والسلام وڅښلې. بيا عليه الصلوٰة والسلام ورغلی خلګو اوبه راکښلې په دې ډول چې په سولاغه پوري يې لو رسۍ تړلې وه، نو سولاغه چې به په څاه کې ډکه سوه، نو د اوبو راکښونکي به رسۍ پر غاړه کښېښول روان به سو تر هغو چې سولاغه له څاه څخه راختلای. نو عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل اعملو فانكم على عمل صالح ثم قال لو لا ان تغلبوا النزلت حتى اضع الحبل على هذه واشار الى عاتقه (متفق عليه)

**ژباړه:** که چېري نه وای يعني زما توهم که زه د زمزم اوبه راوکاږم چې تاسي به د نورو خلګو له خوا مغلوبه سئ يعني هر سړی راځي چې ما ته رسۍ راکړه چې پر غاړه او اوږه يې کښېږدم يو څو سولغې راوکاږم او د عليه الصلوٰة والسلام سنت به پر ځای کړم، نو زه به درکښته سوی وای حتی چې رسۍ به مې پر دغه

ایښي وای او اشاره یې و اوریږ ته وکړه انتهی.

**درویش وایي:** چي مظهري رحمه الله په عنوان کي ددې قصې د زمزم دا قصه هم راوړې ده چي مسلم یې د بکر بن عبد الله څخه روایت کړی دی وایي چي زه د ابن عباس رضي الله عنهما سره ناست وم د کعبې سره چي یو اعرابي راغلی ابن عباس رضي الله عنهما ته یې وویل مالي اری بني عمکم یسقون یعني الحاج اللبن والعسل وانتم تسقون النبیذ آمن حاجة بکم ام من بخل" څه سبب دی چي زه وینم د اکا زامن ستاسي یسقون خلګ یعني حاجیان اوبه وي په شیدو او عسلو سره او تاسي په نبیذ اوبه وئ چي تر عسلو او شیدو کم شی دی آیا دا سبب دی چي تاسي محتاجه او مسکینان یاست او یا د بخل له سببه دا کار کوئ. ابن عباس رضي الله عنهما اعرابي ته وویل ما بنا من حاجة ولا بخل لکن قدم النبي ﷺ پر اوښه سپور ؤ او تر شا یې اسامه رضي الله عنه سپور ؤ موږ دا نبیذ خلګو ته ورکول. نو علیه الصلوٰة والسلام را ته وویل احسنتم واجملتم کذا فاصنعوا. نو موږ دا اراده نه لرو چي تغیر ورکړو و هغه کار ته چي علیه الصلوٰة والسلام موږ په امر کړي وو یعني قوله علیه الصلوٰة والسلام کذا فاصنعوا. د درویش غرض دادی چي سقایة اللبن والعسل وسقایة النبیذ په سقایة زمزم پوري څه اړه لري چي مظهري د قصة الزمزم تر عنوان لاندي راوړه د زمزم دا خو خالي د څاه اوبه وې نه شیدې وې او نه عسل او نه نبیذ پکښې ؤ هغه جلا مهماني وه د قریشو د حاجیانو سره الا ان یقال اورد المظهري رحمه الله قصة اللبن وغیره في قصة زمزم لادنی مناسبة بینهما في اعزاز اهل مکة للحجاج الزائرین لبیت الحرام والله اعلم بمراد عباده.

**درویش وایي:** چي دا کرم او اعزاز د اهل مکه که څه هم په اوسني زمانه کي د حج په موسم کي نه لیدل کېږي په سبب د کثرة ازدهام لکن زه په سنه ۱۴۲۷ ه کي په ازاد پاسپورټ د ربیع الاول په میاشت کي چي یو زوی مي په نامه د حاجي عبد الهادي هم راسره ؤ هغه کرم او اعزاز د اهل مکه د مهمانانو معتمرینو او روژاتیانو چي ډېر ازدهام به نه ؤ ومي لیدی په هفته کي به دوه واره باقاعده ستر خوانونه د خلګو مخ ته اوار سوه او په کثرت سره خورما او قهوه چای پر

ایښوول کېدې که د چا روژه وای او که نه له سترخوانه د کرم دوی خوراک کاوه او په مدینه منوره کې هم دا رواج جاري ؤ.

## اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ اَعْظَمُ دَرَجَةً عِنْدَ اللّٰهِ

هغه کسان چې ایمان یې راوړی وي او هجرت یې له مکې څخه مدینې ته کړی وي او جهاد یې له کافرانو سره کړی وي په لار کې د خدای ﷻ یعنې بېله اعلاء د کلمة الله بل غرض یې نه وي او جهاد یې په مالو او په ځانو سره کړی وي دا کسان ډېر لوړ دي ازروی درجه او کرامت پر خدای ﷻ په نېز د خدای ﷻ یعنې تر هغو کسانو چې فخر په سقایة الحاج او په عمارة البیت الحرام کوي یعنې نور نو هیڅ صفت مدح چې په دې آیت کې مذکور دي نه ورکښې او یا تر هغو مؤمنانو چې دغه صفات نه وي پکښې.

## وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ۝

او دغو کسانو ته کامیابي حاصله ده بالنجاة من النار والفوز بالجنة دار الابرار والدرجات العلی في القرب الی العزیز الجبار.

## يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُمْ بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ وَرِضْوَانٍ وَّجَنّٰتٍ لَّهُمْ فِيْهَا نَعِيْمٌ مُّقِيْمٌ ۝ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۭ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝

دوی ته زېری کوي رب ددوی په لوی رحمت او په ډېره رضا د خدای ﷻ او په لویو جنتو چې دوی لره به په هغو جنتو کې لوی نعمتونه وي او هغه به دائم وي.

**پوه سه:** چې تنوین په هر لفظ د مبشر به لپاره د تعظیم دی او تنکیر یې لپاره ددې دی چې دا مبشر به شیان معهود نه دي او نه یې څوک بیان بالتفصیل کولای سي او دوی به مکث طویل ابدي ولري په دغو نعمتو کې، او په تحقیق د خدای ﷻ په قدرت کې اجر عظیم سته چې نسبت د خدای ﷻ مقدور اجر ته دوی ورکړه سوي نعمتونه به حقیر معلومېږي، او اجر عظیم دی نسبت د دنیا و نعمتو ته، در کشف الاسرار فرموده که رحمت برای عاصیانست ورضوان برای مطیعان است وجنات برای

کافه مؤمنان است رحمت را تقدیم نمود تا اهل عصیان رقم نا امیدی بر صفحات احوال خود نه کشند که هرچه گناه عظیم بود رحمت ارحم الراحمین ازان اعظم است.

گنه ما گر فزون بود زشمار .......... عفوت افزونتر از گناه همه
قطره آب رحمت توبس است .......... شستن نامه سیاه همه
الهی عبدک العاصي آتاکا .......... مقراً بالذنوب وقد دعاکا
فان ترحم فانت لذاک اهل .......... وان تطرد فمن یرحم سواکا

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا آبَاءَكُمْ وَإِخْوَانَكُمْ أَوْلِيَاءَ إِنِ اسْتَحَبُّوا الْكُفْرَ عَلَى الْإِيمَانِ

اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی تاسې مه ګرځوئ پلرونه ستاسي او ورونه ستاسي دوستان که ددوی خوښ وکفر پر ایمان، له ابن عباس ﷺ څخه ابی صالح داسي روایت کړی دی په شان نزول کي ددې آیت چي آنحضرت ﷺ امر وکړی مسلمانانو ته چي په مکه مکرمه کي وه چي هجرت وکړئ ومدینې منورې ته، نو بعضو مسلمانانو چي د هجرت قصد وکړی، نو ماینې، عیال او نورو اقاربو به داسي ورته ویل موږ تاته د خدای روی نسو او په خدای قسم درکوو چي ته مدینې ته هجرت مه کوه، موږ چاته پرېږدې موږ ته به نفقه څوک برابروي، نو تر تا وروسته به موږ ضائع سو، نو دده به زړه پر وسو او د هجرت تر قصد به تېر سو او مقاتل رحمه الله وایي چي دا آیت په هغو نهو (۹) کسانو کي نازل دی چي له مدینې څخه ومکې ته ولاړه او مرتد سوه، نو خدای پاک مؤمنان د هغو نهو (۹) کسانو له دوستی څخه منع کړه، او د آیت معنی چي تاسي دغه نه کسه بطانة یعني صاحب السر مه ګرځوئ یا له مدینې څخه اسرار وراستوئ او که په مکه کي پاست ددوی سره اوسېده پر هجرت غوره کړئ.

وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ

که چا ددوی سره دوستي مختاره کړه یا په اسرار د مؤمنانو د مدینې ودوی ته کشف کول او یا اوسېدل ددوی سره په مکه کي یې تر هجرت غوره کړه، نو دغه کسان ظالمان دي، ولي چي د ظلم معنا وضع د شي د ه بېځایه، دي کسانو ته هم

موالات ځايه مسلمانان وه بېځايه استعمال کړی يعني په کافرانو کي. بغوي وايي چي دا آيت چي نازل سو نو هغو کسانو چي ايمان يې راوړی وُ او هجرت يې نه وُ کړی، هغو وويل که چېري موږ هجرت وکړو زموږ مالونه چي په مکه کي دي ضايع به سي او تجارت به مو ختم سي او سرايونه به مو ونړېږي او قومي قرابتونه به مو هم خړ پړ سي، فنزلت.

قُلْ إِن كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُم مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ فَتَرَبَّصُوا حَتَّىٰ يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ ۗ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ﴿٢٤﴾

ووايه ته اې محمد ﷺ ومتخلفينو ته د هجرت ومدينې ته که چېري دي پلرونه ستاسي او يا زامن ستاسي يا ورونه ستاسي چي په مکه کي کافران يا مسلمانان اوسېږي او تاسي له هجرته منع کوي، او ستاسي ماينې چي تاسي له هجرت څخه منع کوي او يا قومي خلګ يعني کافران ستاسي د قبيلې او يا هغه مالونه چي تاسي په مکه کي ګټلي دي او يا هغه تجارت چي تاسي په مکه کي کاوه تاسي بېرېږئ پر کوته والي او نقصان د هغه تجارت، او يا سرايونه چي تاسي يې په مکه کي لرئ چي تاسي په راضي ياست، دا ټوله مذکوره الفاظ اسم د کان دي او "احب آه" يې خبر دی او احب اسم تفضيل د مفعول يعني محبوب وتاسي ته تر خدای او رسول د خدای، او تر جهاد په لاره کي د خدای ﷻ، نو ځکه مو هجرت مامور بها د خدای او د رسول د خدای او داغه رنګه جهاد في سبيل الله چي هم د خدای او د رسول د خدای دی پرې مو ښود او په مکه کي ورته مقيم سواست هجرت او جهاد مو پرېښو، نو تاسي انتظار وکړئ تر هغه وخته پوري چي راتګ کوي خدای پاک په خپل امر سره. دا جمله جواب د ان شرطيه ده. او سخت ترين توبيخ دی ودغو خلګو او مؤمنانو ته. عطا رحمه الله وايي چي مراد له "بامره" څخه قضاء الهي ده په عقوبت عاجله يا آجله سره، او مجاهد او مقاتل وايي چي مراد

فتح د مکې ده، او خدای پاک هدایت نه کوي هغه قوم ته چې فاسقین وي یعني خارجین عن طاعة الله ورسوله، روح البیان وایي وفي الآیة الکریمة وعید شدید لایتخلص منه الا اقل قلیل حتی لو تتبعت اخوان زماننا من الزهاد الورعین ای بحسب الظاهر فوجدتهم یتحیرون ویتحزنون بفوات احقر شئ من الامور الدنیویة ولا یبالون بفوات اجل حظ من الامور الدینیة. قال الشاعر:

آن کس تراشناخت جانرا چه کند ........ فرزند وعیال وخانمان راچه کند

دیوانه کنی هردو جهانش بخشی ........ دیوانه تو هر دو جهانش چه کند

وفي الحدیث الصحیح للبخاري وغیره قال رسول الله ﷺ لایؤمن احدکم حتی اکون احب الیه من ماله وولده والناس اجمعین.

**درویش وایي:** چې په آیت مبارک کې او داغه رنګه په مذکور حدیث کې وعامو خلګو ته یوه مشکله پوښتنه په زړه کې ورګرځي، هغه دا چې د مذکوره شیانو محبت په آیت مبارک کې او د مذکوره شیانو محبت په حدیث کې طبعي او بلا اختیار کار دی او تکلیف خو په اختیاري شي وي، آیة کریمه "لایکلف الله نفساً الا وسعها"؟ والجواب بیضاوي ﷫ وایي چې مراد په آیت کې حب اختیاري دی یعني چې یو سړی دغه مذکوره شیان په آیت کې خوښ او امتثال د اوامرو د خدای د رسول د خدای پرېږدي دون الحب الطبعي فانه لایدخل تحت التکلیف کمامر، او ابن الملک ﷫ په شرح کې د حدیث مذکور وایي المراد نفي کمال الایمان وبالحب الحب الاختیاري، د مثال په توګه که علیه الصلوة والسلام امر وکړي چې د کفارو جنګ ته راځه یا پلار یا زوی یا ماینه وغیرهم ورته ووایي چې غزاً ته مه ځه. نو که دا سړی سره د مذکوره کسانو د منع وغزا ته ولاړ، نو رسول الله ﷺ یې محبوب دی تر مذکوره خلګو چې مانع وه، او که غزاً ته نه ځي ولاړ نو مذکوره کسان یې محبوب دي، او یا علیه الصلوة والسلام امر وکړي چې پلار چې دي کافر وي قتل یې کړه او یا زوی دي کافر دی قتل یې کړه او غیر ذالک من الاقارب باید مؤمن کامل ددې امر نبوي په امتثال کې توقف ونه کړي که څه هم ددغو کسانو سره خو حب طبعي سته لکن اختیاراً

وحب الله وحب رسوله ته باید ترجیح ورکړي او دا کار ونه کړي.

**درویش وايي:** چي مثال د حب اختیاري او حب غیر اختیاري په دې مثال ښه ښکاره کېږي چي یو سړی چي سخت مریض وي او طبیب ته ورسي، نو هغه طبیب یوه ډېره خو اګرځنه بدبویه دوا ورکړي، نو که څه هم د مریض کراهت طبعي له دغې دوا څخه کېږي لکن دده په ګمان چونکه صحت او عافیت محبوب په دغه دوا کي ویني، نو په ډېر محبت اختیاري یې نوش جان کوي او یا مثلاً یو د نس ناجوړه یعني چي پر نس یې سخت درد وي ډاکتر ته ورسي، ډاکتر وروسته تر معاینا تو لاذمه وو ورته ووايي چي ته فینل کس یې یا انسداد یې ستا اپرېشن لازماً کېږي دا سړی د حب الحیوة په خاطر اختیاراً او اپرېشن ته چمتو وي که څه هم طبعاً دا عملیات خلاف الطبع دي. داغه رنګه د مؤمن کامل باید دا یقین وي چي رب ﷻ ارحم الراحمین دی او رسول کریم ﷺ هم رحمة للعالمین دی. نو دوی زما د دنیا او اخرت په ښېګڼو ښه خبر دي نو چي دوی ما ته د یو شي امر راکوي زه بې حتماً کوم وان کان ثقیلاً طبعاً. داغه رنګه مهاجرین چي خدای او رسول دده دوی امر کړه په هجرت له مکې څخه ومدینې ته دوی خپل محبوب وطن مکه مکرمه چي ابائي تاتوبی یې و اختیاراً پرېښو که څه هم پر طبع درند و.

**درویش وايي:** چي ومن هذا النوع امثلة کثیرة.

**یوه سه:** چي علامة بغدادي السید محمود آلوسي رحمه الله په روح المعاني کي وایي ددې آیت په تفسیر کي بالحب الاختیاري المستتبع لاثره الذي هو الملازمة للعمل لامیل الطبع فانه امر جبلي لایمکن ترکه ولا یؤاخذ علیه ولایکلف الانسان بالانتفاع عنه، او بیضاوي او روح البیان او ابن الملک او تفسیر قرطبي رحمهم الله هم موافق الرای هغه سي تفسیر کړی دی لکه روح المعاني چي کړی دی، نو ګویا تفسیر په حب اختیاري سره دون الطبعي مجمع علیه تفسیر دی، یو امام مظهري دی چي وایي پر مؤمن لاذمه ده چي دی به خپل طبعیت تابع د شریعت ګرځوي، او پر دې مطلب یې یو څو احادیث مبارکه راوړي دي چي هغه ټوله د کمال ایمان پر مقتضی دلالت کوي، او کمال ایمان

مبني دی پر حب اختياري كمامر من الائمة المذكورين من المفسرين رحمهم الله، په اخير كي يې ويلي دي وهذه الآية ماذكرنا من الاحاديث النبوية. يوجب افتراض اكتساب التصوف من خدمة المشائخ رحمهم الله.

**درويش وايي:** چي كه مراد د مظهري رحمه الله له افتراض څخه معنى شرعي وي چي منكر يې كافر وي وتارك يې محكوم بالفسق وي فهذا المعنى الشرعي لايمكن اثباته بالاخبار الآحاد ولا بالاشارات التكليفية من الآيات القرانية كما فعل المظهري رحمه الله في هذه الآية ولا بالقياس على بيعة الناس مع رسول الله ﷺ كما لايخفى بل لابد في افتراض عمل اى عمل كان من نص صريح فيه في القرآن او الاحاديث المتواترة لفظاً ومعناً، وكيف تكون البيعة مع المشائخ الكرام رحمهم الله فرضاً بالمعنى الشرعي فانه يلزم انيكون اكثر الامة المرحومة عاصيين بالمعصية الكبيرة اذ لم يوخذ اكثرهم البيعة من الشيخ المرشد. بل فصارى امر البيعة مع المرشد الكامل المكمل انيكون مندوباً ومستحباً وغايته انيكون سنةً وان اراد المظهري رحمه الله المبالغة في الاستحباب او السنية فله وجه والله اعلم بمراد عباده.

لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ فِي مَوَاطِنَ كَثِيرَةٍ ۙ وَيَوْمَ حُنَيْنٍ

او په تحقيق سره كومک كړی دی خدای پاک يعني غلبه يې دركړي ده پر كافرانو په ډېرو ځايو كي يعني غزواتو كي لكه يوم بدر، ويوم الحرب مع بني قينقاع وفي غزوة الاحزاب او په غزا كي د بني قريضه او بني نضير د مديني، او يوم الحديبية او په جنگ كي د خيبر او په فتح كي د مكې مكرمې وغيرها كما قال رسول الله ﷺ نصرت بالرعب مسيرة شهر "ويوم حنين" او په ورځ د حنين.

**درويش وايي:** چي تفصيل ددې غزواتو بعض دمخه تېر سو او بعض به وروسته راسي ان شا الله العزيز.

**پوښتنه:** يوم په څه عامل منصوب دی؟

**ځواب:** عطف دی پر محل د مواطن.

**پوښتنه:** مواطن جمع د موطن ده، موطن ظرف مكان دی او يوم ظرف زمان دی والتناسب شرط في العطف؟

**ځواب:** په حذف د مضاف یا په معطوف یا په معطوف علیه کې تناسب راځي ای مواطن یوم حنین، نو عطف د مکان پر مکان سو او یا ایام مواطن کثیرة نو عطف د زمان پر زمان سو.

**پوښتنه:** چي یوم یې و حنین ته مضاف کړی لوقوع الحرب فیها یومئذٍ.

**فائده:** ددې غزا نوم لکه غزوه حنین چي ده داغه رنګه غزوه هوازن یې هم یو نوم دی په اعتبار د جانب مقابل، او اوطاس یې هم نودی په اعتبار د مکان چي اخیري ددې غزا په اوطاس کي ؤ او حنین د یوې شېلې نوم دی په منځ کي د مکې او د طائف.

**إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ**

چي تاسي یې په تعجب کي یعني په خوشالی کي اچولي واست د پر والي د عدد ستاسي چي دوولس زره کسان واست او ټوله هم مسلح واست چي لس زره هغه کسان چي په فتح کي د مکې شامل وه من المهاجرین والانصار ﷺ او دوه زره طلقا وه چي دوی اهل مکه وه ووجه التسمیته بالطلقا چي علیه الصلوٰة والسلام چي مکه فتح کړه دوی یې په زور سره بندیان کړه او ورته وه یې ویل انتم الطلقا. او په دې غزا کي د حنین جانب مقابل د هوازن قوم او د ثقیف قوم ؤ چي کل تعداد یې څلور زره کسه وه. تاریخ اسلامي پر جوش راغلی خبري کوي او وایي چي علیه الصلوٰة والسلام فتح د مکې چي درې ورځي د روژې پاته وې پای ته یې ورسوله. او بعض راویان وایي چي دیارلس ورځي د روژې تېري سوي وې پای ته ورسېدې، نو علیه الصلوٰة والسلام په مکه کي ؤ ترڅو چي شوال داخل سو. نو د شوال پر شپږم تاریخ یې د حنین پر خوا حرکت وکړی او د مکې د لمانځه حاکم یې عتاب بن اسید ﷺ مقرر کړی. او د سنت او شریعت د احکامو د ښوولو لپاره یې معاذ بن جبل ﷺ وټاکی، راویان وایي مکه چي فتح سوه ټولو قبائلو د عربو د علیه الصلوٰة والسلام اطاعت مختار کړی الا هوازن وثقیف. نو خانان او رئیسان د هوازن او ثقیف یو د بله په تنګ راتګ سره په مشورو بخت سول. او دوی سره وویل چي اوس حتماً محمد ﷺ پر موږ حمله کوي ولي د ټولو عربو څخه موږ ته فارغه سو او هیڅ مانع یې نسته، او دوی په خپلو کي سره وویل چي تسلیمېږو به

نه بلکې جنګ به ورسره کوو په خپلو ځانو سره دمخه تر دې چې دوی راځي موږ به حرکت وکړو میدان جنګ ته. نو هوازنو خپل مشر مالک بن عوف بن سعد بن ربیعه وټاکی (دا مالک بن عوف وروسته بیا مسلمان سوی دی) او ثقیف قبیلې هم مشر توب ومالک مذکور ته وسپاری، او د نصر قبیله او د جشم قبیله هم ددوی سره یو ځای سول، او د بني بکر قبیله چې کوچنۍ وه چې سل کسه ته نه رسېدل هم ددوی سره یو ځای سوه، او په هوازنو کې د کعب قبیله او د کلاب قبیلې بې طرفي مختاره کړه، ولي ابن ابي برأ ددوی له شمول څخه منع کړې وه، او ددغو دوو قبیلو خلګو وویل چې که له شرقه تر غربه پوري خلګ د محمد سره عداوت او جنګ ته تیارسي بیا به هم محمد غلبه پر کوي، راوي وایي چې د جشم په قبیله کې یو سړی ؤ چې زید بن القمة یې نوم ؤ چې بعض راویان وایي چې د یوسل او شلو کلو ؤ او بعض وایي د یوسل شپېتو کلو ؤ او په سترګو ړوند او او یوازې پر دابه باندې نه سوای سپرېدای، نو دې زید وویل چې زه د تولـه لښکر د هوازن او د ثقیف ریاست غوارم په دې سبب چې زه جنګ ازموده یم او په جنګو کې لویه تجربه لرم، نو د مشاور په حیث به ستاسي ریاست زه پر غاړه لرم او زما مخالفت به څوک نه کوي، او که مخالفت کوي نو میدان جنګ ته نه درسره ورځم، نو مالک بن عوف چې لوی قوماندان ؤ د هوازن او د ثقیف او په عمر دېرش کلن ؤ، نو دی زید ته راغلی چې موږ ستا مخالفت نه کوو، نو زید بن القمه هم د تلو اراده وکړه، نو مالک بن عوف چې د علیه الصلوٰة والسلام د جنګ ومخته ور ووتی، نو خپلې ښځې، مالونه، غواوې او غوایې، اوښان وغیره ور سره راوستلي وه او د هر طرفه کومک ورته راروان ؤ، نو زید بن القمه چې په سترګو ړوند ؤ یوه ورځ یې وویل چې ولې زه نه اورم ژړا د کوچنیانو او نارې د خرو چې نهیق یې بولي په عربي، او نه د مېږو او پسو اوازونه اورم چې په عربي یعار ورته وایي، او رامباړې د غویو چې په عربي یې خوار بولي هم نه اورم، خلګو ورته وویل چې دا تولـه شیان مالک بن عوف د ځانه سره بیولي دي میدان جنګ ته، زید مالک بن عوف راوغوښتی چې دا کار دې ولي وکړی؟ مالک ورته وویل چې له دې سببه مې وکړی چې د هرې

سړي تر شا چې خپله ښځه او مال وي نو له جنګه نه تښتي، زيد وويل چې دا عوف د مېړو شپانه دی دده يې له جنګه سره څه او زيد له تعجبه څخه د مالک بن عوف د کارنامې چک چکې کړې چې سړی چې شکست وکړي بيا يې نو ماينه راګرځولای سي که چېري فتح او برى ستا په برخه وي نو تاته فائده نه سي رسولای مګر رجل بسيفه ورمحه. او که فتح د دښمن سي پر تا باندې نو ته تښتې او ښځه او مالونه به دي پاتېږي دا بيا بله رسوايي ده چې تاته به رسېږي. زيد ورته وويل چې بوزه ښځې، کوچنيان او مالونه دي محکمه قعلو ته د قوم چې څوک حمله نه سي پر کولای بيا د دښمن سره جنګ کوه پر شا د آسانو او فوجي پياده رجال. ولې که دښمن غلبه وکړي مال او عيال او ښځې خو دي خوندي کړي دي ستا پښه ايله ده که تښتې او که ځان وژنې. مالک بن عوف ته دره ورغلی او ناري يې کړې يا معشر هوازن مافعلت کعب وکلاب (چې د دوو قبيلو نومان وه) خلګو ورته وويل چې هيڅ څوک يې نه دی حاضر سوی. زيد وويل غاب الحد اى المنع والجد اى الشجاعة. که ورځ زموږ د غلبې او لوړتيا وای کعب او کلاب نه غائبېدل. او زيد وويل يا معشر هوازن ارجعوا وافعلوا ما فعل هؤلاً يعني کعب وکلاب هوازن قوم منع وکړه چې داسې نه کوو. وروسته مالک بن عوف زيد ته وويل هل من رأئ غير هذا يعني بېله تېښتې بله لار هم سته چې زه قوم په امر کړم. زيد ورته وويل نعم که ته د يو څو کسو کمين ونسې چې په عربي يې جهش مختفی بولي ستا به کومک وي که پر تا جانب مقابل حمله وکړه، نو د کمين کسان به پر را ووزي د شا لخوا به حمله پر وکړي او ته سره د هغه کسانو چې ستا سره درسره دي دمخ له خوا به حمله پر وکړي، نو دوی يعني جانب مخالف به په منځ کې حصار سي او يو به ژوندی ولاړ نه سي، نو هغه وچې مالک په رأيه د زيد عمل وکړی او خپل لښکر ته يې وويل کونوا کميناً في الشعاب وبطون الاودية، راوي وايي چې عليه الصلوٰة والسلام د حنين د جنګ لپاره د صفوان بن اميه څخه زغري او سلاح وغوښتل. هغه ورته وويل اغصباً يا محمد ام عارية؟ عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل بل عارية مضمونة که ورک يا مات سي پر ما يې ضمان دی، نو صفوان بسل

زغري سره همراه د سلاح چي د سلو زغرو سره لازم وي ور کړه، او له سهيلي څخه روايت دی چي عليه الصلوٰة والسلام په عاريت وغوښتلې له نوفل بن الحارث بن عبد المطلب څخه درې زره نېزې او عليه الصلوٰة والسلام و نوفل ته دا وويل چي زه لګه ستا نېزو ته چي ګورم لګه په شاوکي د مشرکينو چي وهل کيږي، تاريخ پوهان وايي چي عليه الصلوٰة والسلام چي له مکې څخه حنين ته حرکت کاوه مکې وال تول ورسره ووتل څوک سپاره څوک پياده، او د عليه الصلوٰة والسلام د اکا زوی ابو سفيان بن حرب يې ملګری ؤ او صفوان بن اميه چي مشرک ؤ او دوې ماينې يې مسلمانانې وې او تفريق يې ته و سره سوی، او په دې سفر کي د عليه الصلوٰة والسلام سره دوې کور داري ام سلمه او ميمونه رضي الله عنهما چي دوی ته په وخت د اقامت فوجي خيمه درول کېدل ورسره ووتل.

د خدای جل جلاله شان: پوه سه! چي چونکه په علم د خدای جل جلاله شمل علمه وعظمت قدرته دا وه چي د حنين په غزا کي به فتح د عليه الصلوٰة والسلام او مؤمنانو په برخه وي، نو ځکه يې مالک بن عوف ودوی ته وګماری چي سره د ذريه او د ښځو او د حيواناتو يې حنين ته راوستل تاچه فتح ميسر سي مجموعه غنيمت د ذريه او د ښځو او د حيواناتو پر يوه ځای د عليه الصلوٰة والسلام او مسلمانانو ولاس ته ورسي، او که چيري مالک د زيد بن القمه په خوله کړي وای چي ښځي اولاونه او اموال و محفوظ قلعه او د غرو په منځ کي درولي وای، نو که څه هم فتح سوې وای لکن ددې تولو غنائمو جمع کول مسلمانانو ته به آسان کار نه وای کما لايخفى.

**فوائد شتى:** درويش وايي: چي بعض وقائع د حنين د غزا به په دغه عنوان درته ذکر کړو ان شا الله تعالى.

(۱) **فائده:** ابن اسحاق، ترمذي، نسائي او ابن حبان رحمهم الله له حارث بن مالک رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي موږ د عليه الصلوٰة والسلام سره ووتلو د حنين پر خوا ونحن حديثوا عهد بالجاهلية، او زموږ د جاهليت يعني کفر لږ وخت کېدی چي په اسلام سره مشرف سوي ؤ.

**پوه سه:** چي په دې خبره کي وکتا آه حارث بن مالک خپل عذر بيانوي چي تاسي

ولي دا وروسته خبره وعليه الصلوٰة والسلام ته وکړه. حاصل د عذر يې دا دی چې موږ نوي مسلمانان سوي وو د اسلام په احکامو او په جائز ناجائز ډېر نه وو خبر، دی وايي د قریشو د کفارو او د نورو کافرانو يوه لويه درخته وه چې هغې درختي ته به دوی ذات انواط او په بل روايت ذات نواط وايه او ددې سره به يې اوښان وغيرها ذبح کول او دلته به يې يوه ورځ او شپه پوره تېرول، موږ د عليه الصلوٰة والسلام روان وُ چې يوه بله لويه درخته په مخه راغله. نو موږ و عليه الصلوٰة والسلام ته وويل چې موږ ته دغه درخته ذات انواط وټاکه لکه قريش چې يې لري؟ نو رسول الله ﷺ وويل الله اکبر يعني زموږ ددې خبري په رد او په تعجب کي چې دا خو تاسي ماته داسي خبره وکړه لکه د موسى ﷺ قوم چې موسى ﷺ ته کړې وه "اجعل لنا الها کما لهم الهة" موسى ﷺ ورته وويل "انكم قوم تجهلون" چې د عبادت لپاره زما څخه د بت عبادت غواړئ.

(۲) **فائده**: د سهيل بن حنظله ﷺ څخه روايت دی چې موږ حنين ته نارسيده وو چې يو د آس سپور راغلی او وه يې ويل يا رسول الله زه پر فلانی او فلانی غره وختم، نو هوازن سره د ښځو او د اوښانو او د پسو سره راغونډ سوي وه، عليه الصلوٰة والسلام تبسم وکړی وه يې ويل تلک غنيمة المسلمين ان شا الله تعالى.

**درويش وايي**: چې وکان کذالک فهذا معجزة باهرة لرسول الله ﷺ.

**يوه سه**: چې رسول الله ﷺ د هوازن د کشف الحال لپاره عبد الله بن حدرد ﷺ واستاوه تاچې ددوی حال راوړي، عبد الله ﷺ ولاړی يوه يا دوې درې ورځي يې په هوازنو کي تېري کړې چې راغلی نو عليه الصلوٰة والسلام ته يې داسي وويل چې مالک بن عوف چې د هوازنو قومندان وُ کمامر داسي يې وقوم ته خطاب وکړی ان محمداً جنگ نه دی کړی تر اوسه تر دې دمخه يعني د جنگ د پوهانو سره لکه موږ چې يو البته د يو قوم اغمار يعني په جنگ ناخبره کسانو سره يې جنگ کړی دی نو پر غالبه سوي دي، غرض د مالک دا وُ چې په جنگ دلاوره کسان نو موږ يو پر موږ غلبه نسي کولای. او مالک قوم ته وويل چې اول صف مواشي ستاسي صف کړئ ورپسې ښځي او ذريه صف کړئ او بيا تاسي ټولو يو

صف ودربېږئ او په شل زره تورو داسي حمله پر لښکر د محمد وکړئ لکه يو سړي چي پر بل حمله کوي واعلموا ان الغلبة لمن حمل اولاً يعني هرچا چي اول له حمله وکړه بنه لښکر په غالبه کېږي.

**(۳) فائده:** بيهقي او بخاري په روايت د ابي بردة بن دينار ﷺ داسي حديث راوړی دی چي يوه ورځ په سفر کي د حنين غرمه وه او ډېره گرمي وه چي په يوه ځنگله کي چي ډېري درختي سايه داره پکښې وې. د عليه الصلوٰة والسلام اصحاب سره تيت سوه د غرمې د خوب لپاره داسي لږ گړی چي موږ بيده سوو عليه الصلوٰة والسلام نعرې وهلې موږ چي راغلو عليه الصلوٰة والسلام ناست و او يو بل سړی هم ناست و. نو عليه الصلوٰة والسلام وويل چي زه بيده وم چي دا سړی راغلی او زما توره چي ما په درخته پوري ځړولې وه. ده را اخستې وه او له تېکي څخه يې کښلې وه زه راويښ سوم دی زما وسر ته ولاړ و او داسي يې وويل يا محمد من يمنعک مني؟ ما ورته وويل "الله" پر ده د الله نوم دومره رعب او هيبت پرې ايستی چي لاس يې وربېږدېدی او توره ځني ايله سوه ما توره را واخستل او ده ته مي وويل من يمنعک مني ده وويل لا احد فجلس. ابو برده ﷺ وايي ما توره له تېکي څخه وکښل عليه الصلوٰة والسلام ته مي وويل چي ته ما پرېږده چي دی زه په توره پر مغزي ووهم او سر يې قلم کړم فانه من عيون المشركين دا سړی د مشرکينو له جاسوسانو څخه دی. عليه الصلوٰة والسلام راته وويل اسکت يا ابا بردة. نو هغه سړي ته يې هيڅ نه وويل يعني نه د عتاب پر ډول او نه يې عقاب ورکړی هغه سړی ولاړی، نو عليه الصلوٰة والسلام ماته وويل يا ابابردة الله معاذلي وحافظي حتی يظهر دينه على الدين كله. دا هغه حديث و چي بعض عبارات يې د بخاري او بعض يې له بيهقي څخه منقول وه.

**(۴) فائده:** درويش وايي: چي څه وخت چي د مالک بن عوف خبري عبدالله بن حدرد ﷺ و عليه الصلوٰة والسلام ته راوړی. نو سلمة بن سلامة اوقصي انصاري ﷺ و عليه الصلوٰة والسلام ته وويل لن نغلب اليوم من قلة يعني موږ نه مغلوبه کېږو د قلت له سببه ولي چي دوولس زره کسه يو. دې خبري عليه

الصلوٰة والسلام غمجن کړي په سبب ددې چې توکل او اعتماد پر کثرت د لښکر څنډي فهمېږي ولا ینبغي ذالک، راوي وایي چې ددې خبرې شوم په اوله حمله کې مسلمانانو ته ورسېدی چې سره د کثرة العدد چې دوی فخر په کوی شکست یې وخوړی که څه هم وروسته یې فتح نصیب سو.

**(۵) فائده:** یوه سړا چې ابو نعیم او بیهقي وایي چې علیه الصلوٰة والسلام د سه شنبې په شپه پر یوولس د شوال د جنګ ځای ته ورسېدی، نو مالک بن عوف درې کسه د هوازنو د جاسوسۍ پر ډول واستول او ورته وه یې ویل چې یو ځای مه سره ګرځئ بلکې متفرق او ټوله حالات د رسول الله ﷺ او د اصحابو کشف او نوټ کړئ د هغې خوا چې هغه درې کسه راغلله لاسونه او پښې یې مړه پوري خرېدل او زنګنونه یې تک ژړ وه. مالک ورته وویل ویلکم ماشانکم؟ دوی ورته وویل چې موږ په مسلمانانو کې ولیدل رجالاً بیضا علی خیل بلق، سپین خلګ وه پر ابلکو آسانو سپاره وه، نو مو ځانونه نه سوای تکیه کولای حتی چې دغسي سولو لکه ته چې مو وینې، او دې درو کسانو مالک ته وویل والله مانقاتل اهل الارض انما نقاتل اهل السماء قسم په خدای دی چې موږ جنګ نه کوو د ځمکې والو سره بلکې د اسمان والو سره جنګ کوو، ولې داسې خلګ مو په انسانانو کې یو هم نه دی لیدلی، نو دوی مالک ته وویل که ته زموږ په خوله کوې قوم دې تر شا وتنیوه، ولې که یې ورسره مخامخ کړې او دوی هم هغسې خلګ ووینې لکه موږ چې ولیدل ستا ګرده لښکر ته به داسې حال ورپېښ سي لکه موږ ته چې راپېښ سو، مالک ورته وویل اف لکم بل انتم اجبن اهل العسکر، او درې سره یې بندیان کړه تاچې دا خبره په لښکر کې شائع نه سي ګرده لښکر به بزدله سي او د جنګ میدان به پرېږدي، مالک لښکر والو ته یې وویل چې تاسې یو ډېر دلاوره سړی په لښکر کې ما ته راواستوئ، نو ټولو پر یوه نفر اتفاق وکړی چې دا د لښکر شجاع سړی دی، نو هغه ډېر دلاوره چې د علیه الصلوٰة والسلام لښکر ته ورغلی دې سړي هم احساس د بل ډول خلګو وکړی لکه هغه نورو درو کسانو چې کړی ؤ، او دې یوه دلاور ته هم هغه حالت

وربښی سو لکه هغه نورو درو ته، نو مالک هغه هم بندي کړی.

(۶) **فائده**: مالک هم په خپل زړه کي وېرېدی له مخامخ جنګ څخه، نو ځکه چي دوې حصې د شپې تېري سوي لښکر يې تو له وادي حنين ته ګېل کړی وادي حنين يوه ډېره خوفناکه ښېله ده چي تنګ ځايونه پکښې دي، او د شپلې په نس کي غونډی، غونډی، ځايونه وه، نو هوري سره ځای پر ځای سوه او د تيارسي حکم يې ورکړی چي ورځ سي د علیه الصلوٰة والسلام پر لښکر به په يوه وار حمله کوو.

(۷) **فائده**: رسول اللهﷺ هم خپل د لښکر تعبيه وکړه او د سدس اخير د شپې په وخت کي يې صفوف بسته کړه او بيرغونه يې پر اصحابو باندي ووېشل، روح البيان وايي چي عليه الصلوٰة والسلام لبس ذرع داؤد ﷺ التي لبسها حين قتل جالوت او پر خپل کچر دلدل سپور سو، او مظهري ﷫ وايي چي دوې زغري يې يو پر بل سر بېره واغوستلې او د اوسپني خول يې پر سر کښېښو، او د صفو ومخ ته ودرېدی صفونه پر راتاو سوه، نو مسلمانان يې وقتال ته وهڅول او د فتح زېری يې هم ورکړی "ان صدقوا وصبروا" او خالد بن الوليد سره د بني سليم او د اهل مکه پر مقدمة الجيش او ميمنة الجيش او ميسرة الجيش يې مقرر کړه، او عليه الصلوٰة والسلام په قلب الجيش کي ؤ.

**فَلَمۡ تُغۡنِ عَنكُمۡ شَيۡـٔٗا وَضَاقَتۡ عَلَيۡكُمُ ٱلۡأَرۡضُ بِمَا رَحُبَتۡ ثُمَّ وَلَّيۡتُم مُّدۡبِرِينَ ۝٢٥**

نو فائده نه وکړه هغه کثرت د هيڅ شي يعني چي تاسي په مستغني واست او خوشحاله واست، او تنګه سوه پر تاسي مځکه، بيا مو دښمن ته شا کړه په داسي حال کي چي شکست مو وخوړی.

**يوه سه**: چي شيأ مفعول مطلق دی ای شئ من الاغنا او يا مفعول به دی د تغن ای من امر العدو "بمارحبت" با په معنا د مع ده او ما مصدريه دی ای مع رحبها يعني سره د فراخي د مځکي، ضيق الارض کنايه ده له دې څخه چي سړی ځای د قرار چي زړه يې پکښې آرام سي نه لري، دلته مراد ځني شدت رعب دی له دښمنه څخه.

**درويش وايي**: چي په ژبه کي ورته کنايات ستنه مثلاً چي يو سړی له دښمنه ډېر ډېرېږي وايي مځکه ځای نه راکوي او يا سخت مريض وي وايي مځکه مي نه

مني وامثال ذالک کثيرة.

**پوښتنه**: له "توليتم" څخه معنی د مدبرين فهمېږي نو ذکر ته یې څه ضرورت و؟

**ځواب**: د مدبرين معنی دلته منهزمين يعني شکست خورده دی، دا معنی له توليتم څخه نه فهمېږي ولي چي تولی گاهي لپاره د حيلې وي په جنگ کي يعني دښمن ته فرار په خيال ورکړي چي هغه ورنژدې سي مخ پر راواړوي قتل یې کړي چي دې ته فر وکر وايي.

**پوه سه**: چي خطاب و هغو مؤمنانو ته دی چي په جنگ د حنين یې شکست وکړی، راوي وايي چي مسلمانانو چي شکست وکړی عليه الصلوٰة والسلام يوازي پاته سو دده سره يو نه و مگر عباس رضي الله عنه چي د عليه الصلوٰة والسلام اکا و چي د عليه الصلوٰة والسلام د غاټري ملکونه یې نولي وه چي عليه الصلوٰة والسلام پر مخ نه سي ولاړ او بل یې د اکار زوی ابو سفيان بن حرب رضي الله عنه و چي هغه د غاټري رکب نيولی و او عليه الصلوٰة والسلام پښې پر شوروله يعني د دښمن پر خوا روان و او دا یې ويل"

انا النبي لاکذب............ انا ابن عبد المطلب

**پوښتنه**: عليه الصلوٰة والسلام خو شاعر نه و بشهادة القرآن، نو دا بيت یې څرنگه جوړ کړی؟

**ځواب**: من وجهين، الاول په مختصر الشافي کي چي د عروض کتاب دی چي په شعر کي قصد معتبر دی دا بيت بې قصده د عليه الصلوٰة والسلام پر خوله ورغلی، په محيط الدائرة کي وايي چي د هر متکلم په خبرو کي سړی فکر وکړي بعض خبري یې پر وزن شعري د يو بحر برابروي او متکلم هيڅ قصد د شعر نه لري. محيط دائره وايي که بېله موزونه بيت ويونکی سړی شاعر وبولي نو به ټوله انسانان شاعران سي ثم اورد صاحب محيط الدائرة لذالک امثلة وزاد ان کان الموذون بلا قصد شعراً، وذکر لذالک بعض آيات الموذونة من القرآن وعين لها بحراً. والثاني ان البيت المذکور من بحر الرجز، او اراجيز بعض عروضيان شعر نه بولي بلکې نثر منظوم یې بولي، او داغه رنگه و ويونکي ته د رجز شاعر نه وايي.

**سوال:** علیه الصلوٰة والسلام خو د عبدالله زوی ؤ، نو ده ولي عبد المطلب ته ځان منسوب کړی؟

**ځواب:** ټولو عربو د علیه الصلوٰة والسلام نسبت و عبد المطلب ته کاوه لان عبدالله مات في حیوة عبد المطلب. قال عبد المطلب ما رئ عبد الله ابنه ﷺ لانه مات قبل ولادة رسول الله ﷺ.

**سوال:** افتخار په ابا واجدادو خو د جاهلیت د خلګو عادت ؤ او اسلام منع ځندي کړي ده؟

**ځواب:** علیه الصلوٰة والسلام دا خبره افتخاراً نه ده کړي بلکې اشاره یې و یو خوب ته وکړه چي عبد المطلب لیدلی ؤ، او دا د خوب قصه مشهوره وه عند العرب، نو هغه قصه علیه الصلوٰة والسلام ودوی ته ورپیاد کړه قاله الخطابي رحمه الله.

**پوښتنه:** د عبد المطلب دخوب قصه څرنګه وه؟

**ځواب:** په عقد الدرر کي وایي عبد المطلب چي د علیه الصلوٰة والسلام نیکه ؤ یوه ورځ په حطیم کي بیده ؤ، نو چي راویښ سو ډېر وارخطا ؤ. عباس رضي الله عنه وایي چي زه په پسې وم چي بابا ولي دومره وارخطا راهي سو، او زه په دغه وخت کي ځوان وم، نو د قریشو کاهنانو ته ورغلی چي ما خوب لیدی چي زما له شا څخه یو ځینځیر د سپینو زرو جلا سو، بیا دا ځینځیر څلور ښاخه سو، یو ښاخ یې مشرق ته ورسېدی او بل ښاخ یې مغرب ته ورسېدی، او یو ښاخ یې اسمان ته ورسېدی او بل ښاخ یې اسفلي ځمکي ته ورسېدی، نو عبد المطلب وویل چي په داسي حال کي چي ما ځینځیرانو ته کتل دا څلور ښاخه د ځینځیرانو بیر ته سره راټول سوه یوه درخته سوله، زه په هغه حیرت کي وم چي دوه سپین ږیري خلګ راغلله، ما یوه ته وویل چي ته څوک یې؟ هغه راته وویل چي نوح نبي رب العالمین یم، هغه بل ته مي وویل چي ته څوک یې؟ هغه راته وویل چي زه ابراهیم خلیل رب العالمین یم، عبد المطلب وویل، نو په دې وخت کي راویښ سوم، هغو کاهنانو ورته وویل که چېري رشتیا تا دا خوب لیدلی وي، نو ستا له ملا څخه به نبي پیدا کیږي چي اهل السما والارض به ایمان پر راوړي، او

څینځیر چي حلقې یې درلودې او یوه په بله کي ننوتلي وې پر دې دلیل دی چي د هغه نبي اتباع به ډېر وي. او بیا چي درخته سوه ښه سرسبز او شادابه دا ددې دلیل دی ثبات امره و علو ذکره. او څوک چي پر هغه نبي ایمان نه راوړي هغه به هلاکېږي یوه یوه پلا لکه قوم نوح چي په بلا د غرق هلاک سوه. او ملت د ابراهیم ﷺ په هغه نبي ژوندی کېږي.

**درویش وایي:** چي دا قصه په ډول د جمله معترضې راغله. بیرته د هوازنو د قصې پر خوا. راوي وایي چي تخمیناً څورلس واره په دغه جنګ کي به علیه الصلوٰة والسلام داسي وکړه چي ده چي به پر کفارو حمله وکړه هغه به څندي وتېښتېدل، چي هغو به حمله پر وکړه دی به ورته ولاړ و وهذا شاهد علی غایة شجاعته. ولې چي په داغسي سخت حال ده نه خپل نوم پټ کړی ولې ناري یې وهلې انا ابن عبدالمطلب. او نه له کفارو څخه بېرېدی پر خپل ځان باندي چي قتل به مي کړي، ولې چي عباس ﷺ د علیه الصلوٰة والسلام دابه منع کول چي پر مخ ولاړه نه سي او د کفارو په منځ وګډه نه سي، نو په دغه وخت کي علیه الصلوٰة والسلام له خدای ﷻ څخه غوښتنه کول په دې الفاظو سره (یارب ایتني بما وعدتني) یعني النصر علی هؤلاء الکفرة او علیه الصلوٰة والسلام و عباس ﷺ ته وویل چي صبح بالناس یعني پر مؤمنانو ناره وکړه د عباس ﷺ دومره لوړ آواز و چي تر اته (۸) میله پوري دده اواز اورېدل کېدی. او یوه ورځ د بیري له جهته پر اهل مکه فنادی و اصباحاه. نو هري جاملې ښځي چي به دده اواز واورېدی د ډېره رعبه به یې اسقاط حمل کاوه، نو ده ناري کړې یا آل الانصار بیا یې قبیلةً قبیلةً ددوی نومان واخستل. او بیا یې ناري کړې یا اصحاب الشجرة یعني اهل بیعة الرضوان في الحدیبیة، د بلې خوا به جوابونه ورکول کېدل لبیک نحن لدیک.

**درویش وایي:** چي روح البیان په یوه روایت کي داسي ویلي دي چي بعضو د منهزمینو مکې ته ځانونه ورسول او د مسلمانانو د شکست خبر یې په مکه کي خپور کړی. او د هوازنو د غلبې خبر یې په مبالغه آمیزه ډول مکې والو ته بیان

کړی حتی چي بعض د مکې والو په شکست د مسلمانانو خوشالي ښکاره کړه که څه هم د مکې په فتح کې مکي والو ټولو اسلام راوړی ؤ لکن بعض خفيف الايمان او يا منافق ډوله مسلمانان هم پکښې وه هغو دا مسرت په شکست د مسلمانانو ظاهر کړی، تر دې اندازې پورې چي د صفوان ورور (د مور لخوا) دا خبره وکړه الا قد ابطل الله السحر اليوم، صفوان چي تر دغه وخته پورې مشرک ظاهري پاته ؤ خپل مورني ورور ته یې ویل اسکت فض الله فاک خدای دې خوله له غاښو څخه خالي کړه. او صفوان وویل والله لان يربني چي پر موږ سلطنت کوي او زموږ د تدبير او تربيت واګي په لاس کې اخلي يو سړی د قريشو چي مراد يې عليه الصلوٰة والسلام ؤ احب الي من ان يربني رجل" ماته محبوبه ده تر دې چي پر موږ حکومت کوي يو سړی د هوازنو د قبيلې. غرض يې دا ؤ چي رياست او حکومت د عليه الصلوٰة والسلام چي قريش دی پر قومي سطح مې خوښ دی تر هوازنو چي له قريشه څخه نه دي. ولي طبعي خبره ده چي قومي سړی پر خپل قوم دومره ظلم نه کوي لکه غير قومي سړی (مشهور متل دی وای خپل قومی که سړی مړ هم کړي، خو لمر ته يې نه غورځوي)

**درويش وايي:** چي بخاري او ګڼ شمېر محدثينو ﷺ روايت کړی دی له ابن اسحاق رحمه الله څخه چي يو سړي براء بن العاذب رضي الله عنه ته وويل افررتم يوم حنين؟ قال لا والله ما ولی رسول الله ﷺ" موږ فرار نه دی کړی قسم په خدای دی چي عليه الصلوٰة والسلام شا نه ده ګرځولې مطلب يې دا دی چي دار مدار د فرار پر عليه الصلوٰة والسلام دی هغه پر خپل ځای ثابت ؤ "لکن خرج شبان اصحابه ﷺ حسراً ليس عليهم کثير سلاح" لکن جنګ ته ووتل د هوازنو بعض ځوانان د اصحابو ﷺ ده "حسراً ای ليس لهم کثير سلاح فلقوا قوماً رمات" دوی مخامخ سوه د يو قوم سره چي هغه ډېر ښکاريان وه يعني هوازن. چي قريب نه ؤ چي د دوی غشی دې پر مځکه ولګېږي يعني خامخا به په سړي کي ښښتی او موږ د دوی سره چي په جنګ کې يو ځای سو او موږ پر دوی حمله وکړه دوی ته مو شکست ورکړی، نو مسلمانان په غنيمتو ټولو لو اخته سوه هوازنو پر موږ سلاح راواړول په داسي دول

کثرت سره لکه مچخ "مایکادون یخطئون فاقبلوا من هناک الی رسول الله ﷺ"
موږ ددوی یعني هوازنو مخ راواړوی علیه الصلوٰة والسلام ته راغلو، د براء بن
عاذب رضي الله عنه غرض دا دی چي دی ته فرار نه وای چي عسکر دښمن ته شا کړي او خپل
فوجي مشر ته راسي. علیه الصلوٰة والسلام پر خپله سپینه غاتره سپوره ؤ او ابو
سفیان رضي الله عنه تر جلو نیولي وه، نو علیه الصلوٰة والسلام له غاتري څخه کښته سو او
دعا یې وکړه او طلب د نصرت یې له خدای څخه وکړي.

**اختلاف او جمع**: درویش وایي: چي په دې باره کي د علیه الصلوٰة والسلام
احادیث چي په د هزیمت په وخت کي څوک وه او که نه وه. پر دې تقدیر چي یو
څو کسه وه عظیم اختلاف دی او ددې احادیثو جمع تر دې عنوان لاندي بیانېږي،
د انس رضي الله عنه په روایت کي راغلي دي چي علیه الصلوٰة والسلام یوازي پاته سو، او
په روایت د مسلم عباس رضي الله عنه وایي چي په ورځ د حنین چي هزیمت د مسلمانانو
پېښ سو، زه او ابو سفیان بن حرب رضي الله عنه له علیه الصلوٰة والسلام څخه هیڅ نه یو
جلا سوي، او په نورو احادیثو کي راغلي دي چي د علیه الصلوٰة والسلام سره یو
جماعت د اصحابو رضي الله عنهم پاته ؤ، محمد بن یوسف رحمه الله ددې قولو جمع داسي کړې
ده چي مراد په هغه حدیث کي د انس رضي الله عنه روایت دی چي علیه الصلوٰة والسلام
یوازي پاته سو دادی چي مخامخ و دښمن ته دی یوازي ؤ، عباس او ابو
سفیان رضي الله عنهما خو دده په خدمت کي وه چي دده مبارک غاتره یې ټینګه کړې وه چي
پر مخ تګ ونه کړي، نو مباشر د جنګ یوازي علیه الصلوٰة والسلام دی دوی دوه
یې خادمان او مانعان د پېښ قدمی وه، او یو جماعت چي په بعضو احادیثو کي
راغلي دي چي ورسره ؤ مراد دادی چي د علیه الصلوٰة والسلام تر شا متصل ولاړ
وه، بیا اختلاف په عدد کي د ثابتین مع رسول الله ﷺ هم سته، کلبي رحمه الله وایي
کان حول رسول الله ﷺ ثلاثة مائة نفراً، یعني درې سوه کسه نورو تېولو هزیمت
کړی ؤ، او بیهقي له حارثه رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي زما په اټکل ثابتین د
علیه الصلوٰة والسلام سره سل کسه وه، احمد او طبراني له ابن مسعود رضي الله عنه څخه
په صحیح سند وایي چي د خلګو د شکست په وخت کي موږ اتیا کسه د علیه

الصلوة والسلام سره پاتـه سـوو مـن المهاجرين والانصار ﷺ، نو موږ د انهزام پـه وخت کي اتيا قدمـه تـر شـا سوو لکن شـا مـو نـه ده ورګرځولي، وهـکـذا الروايات الاخر، او امام نووي رحمه الله د مسلم پـه شـرح کـي وايـي چـي د عليـه الصلوة والسـلام سره ثابتين لس کسه وه، او د عباس رضي الله عنه په شعر کي هم لس کسه راغلي دي.

نصرنا رسول الله في الحرب تسعة ...... وفر من فر عنه فاقشعوا

و عاشرنا لاقى الحمام بنفسه ...... لما مسه في الله لايتوجع

يعني لسم کس يې زه وم، صالحي وايي چي حافظ ابن حجر وايي

لعل هذا هو الاثبت ومن زاد على ذالک يکون عجل في الرجوع فعد فيمن لم ينهزم، بعض هغه زيادتي عدد چي راغلي دی د هغه سبب دادی چي هغو کسانو ژر بيرته رجوع وکړه، نو ګويا هزيمت يې نه وکړی، نو په ثابتين کي حساب سول، او څلور ښځي په ثابتينو کي دي مع رسول الله ﷺ (۱) ام سليم (۲) ام سليط (۳) ام الحارث (۴) ام عمارة رضي الله عنهن.

ثُمَّ أَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ

وروسته تر کيت وکيت خدای ﷻ نازل کړی اطمنان قلبي پر رسول د خدای او پر مؤمنانو عام تر دې که منهزمين او که ثابتين وه.

**پوه سه:** چي سکينه د زړه ارام ته وايي د اضطراب ضد ده.

**سوال:** سکينه او اطمنان قلبي خو په عين حال کي د انهزام د مؤمنانو او په عين حال د انفراد دده ورسول الله ﷺ ته حاصله وه کمايدل عليه ما نقلنا سابقاً چي عباس او ابو سفيان رضي الله عنهما د عليه الصلوة والسلام ښاتره يې له پېش رفتـه څخه منع کوله، نو اضطراب قلبي خو عليه الصلوة والسلام ته په هيڅ حال کي نه و فما معنى قوله تعالى على رسوله؟

**جواب:** دا خو صحيحه ده لکن سکينه چي و منهزمينو ته حاصل سوه په برکت د وجود د عليـه الصلوٰة والسـلام فيهم فصارت کمـا انزلـت عليـه ﷺ او روح المعاني او روح البيـان يـې داسي معنـی کـړې ده ای رحمتـه التـي تـسـکن بها القلوب وتطمئن بها اطمئناناً کلياً متتبعاً للنصر القريب، وهذه السکينة لم تکن

حاصلة له ﷺ من قبل فافهم. والاولى ان يقال چي په وخت کي د انهزام د قوم کله ځنه هم د علیه الصلوٰة والسلام زړه د خپل ځوند او قتل په باره کي مطمئن ؤ لکمال الایمان بان ماشاء الله کان ومالم یشأ لم یکن. لکن طبعاً په حال کي د منهزمینو فکرجن ؤ چي دوی به څرنګه سي فلما اجتمع جميع المنتهزمين وغيرهم عنده ﷺ اطمئن قلبه والله اعلم.

**نکته:** د مؤمنین په لفظ سره دا ثابته سوه چي ګناه کبیره سړی له ایمان څخه نه باسي کما هو المذهب لاهل السنة والجماعة خلافاً للمعتزلة.

**وَأَنزَلَ جُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا**

او خدای ﷻ را واستول لښکرونه چي تاسي نه لیدل، سدي الکبیر وایي چي مراد له جنود څخه ملکي دي لکه په بدر کي، سعید بن جبیر رضي الله عنه وایي چي د حنین په ورځ خدای ﷻ د علیه الصلوٰة والسلام کومک وکړی په پینځه زره ملکو چي مسومین وې، علامه داره وې چي په رنګ د رجال وې او سپین مخان یې وه پر کمرو (ابلق) اسانو او پر سرو آسانو سپاره وه او شملې یې د اوږو په منځ کي وې. په یوه صحیح روایت کي راغلي دي چي علیه الصلوٰة والسلام یوه لپه خاوري راواخستلې او د قوم هوازنو پر خوا یې وپاشلې او دا یې وویل شاهت الوجوه. نو دا خاوري د ټولو په سترګو او په خوله کي ولوېدلې تاچي پر دوی یې رعب پرېږي نه وځي، او کفارو لیدلې تاچي مرعوب سي او شکست وکړي.

**درویش وایي:** چي روح المعاني، روح البیان، تفسیر قرطبي او نور تفسیرونه ټوله وایي چي مراد له جنود څخه ملکي دي، یو مظهري رحمه الله دی چي ګاهي وای مېږیان وه ګاهي وای ډبري وې او ګاهي وای ملکي وې، د حنین د واقعې راوي وایي چي د علیه الصلوٰة والسلام پر مبارکه ژبه داسي دعا جاري وه «اللهم لك الحمد واليك المشتكى وانت المستعان» نو جبرئیل و علیه الصلوٰة والسلام ته وویل چي ماته د داسي تلقین خدای ﷻ وکړی لکه موسی علیه السلام ته چي یې کړی ؤ په هغه وخت کي چي دریاب یې کوڅې کوڅې کاوه د بني اسرائیلو د تېرېدلو لپاره او د فرعونیانو د غرقېدلو لپاره، روح المعاني وایي چي په عدد کي د

ملائکه وو د حنین اختلاف دی بعض علماً وایي چې دري زره وې، او بعض اهل تفسیر وایي چې پینځه زره وې، بعض وایي اته زره وې، بعض وایي شپاړس زره تعداد ؤ د دوارو لښکرو په عدد یعني دوولس زره د مسلمانانو لښکر ؤ او څلور زره د هوازنو فوج ؤ، او په دې کې هم اختلاف دی چې ملکو په حنین کې جنګ کړی دی او که نه، جمهور علماً پر دې دي چې ملکو بېله بدره بل ځای جنګ نه دی کړی، په حنین کې صرف د مسلمانانو د زړه د تقویت لپاره.

**سوال:** په قرآن مبارک کې خو داسي راغلي دي بجنود لم تروها، نو څرنګه یې ددوی د زړونو تقویه کوله؟

**ځواب:** د مسلمانانو په زړو کې یې افکار حسنه وراچول په دې سره یې ددوی تائید کاوه مثلاً په زړو کې به یې دا وراچول چې تاسي خو د خدای او د علیه الصلوٰة والسلام یاست خامخا به تاسي کامیابه کېږئ په دغه جنګ کې الی غیر ذالک من الخواطر الحسنة، او د کفارو په زړو کې یې رعب او بیره پیدا کول، ولي چې کفارو خو به لیدلي کمامر.

وَعَذَّبَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۗ وَذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٢٦﴾

او خدای ﷻ په عذاب کړل هغه کسان چې کفر یې کاوه یعني قوم هوازن وثقیف او دغه عذاب جزاً د کافرانو ده، له سدي کبیر رحمه الله څخه روایت دی چې دا عذاب قتل بالسیف دی، او روح المعاني او روح البیان وایي بالقتل والا سر وابسي، راوي وایي مشرکانو چې په غزوه حنین کې شکست وخوړی تر شا ولاړه اوطاس ته یې ځانونه ورسول چې په هغه ځای کې ددوی مالونه او عیال وه، نو علیه الصلوٰة والسلام یو سړی د اشعریانو له قوم څخه چې نوم یې عامر ؤ رئیس د لښکر ددوی یې وګرځاوه اوطاس ته یې پسې واستاوه، هورې چې ورغله بیا معرکه جوړه سوه لکن بیا مالک سره د فوجه شکست وخوړی او مسلمانانو ددوی ښځې او عیال په سبي ونیول، مالک بن عوف طائف ته وتښتېدی او امیر المؤمنین ابو عامر رضي الله عنه هم شهید سو، نو علیه الصلوٰة والسلام طائف ته پسي ورغلی هلته تر محاصره لاندې وه باقي میاشت د شوال، نو ذو القعدة چې داخله

سوه، نو علیه الصلوٰة والسلام جنګ ته خاتمه ورکړه ولي چي ذوالقعدة څو د
اشهر حرم څخه ده، او جعرانه ته راغللی چي د یو ځای نوم دی په منځ کي د مکي
او د طائف دا ځای د یوې ښځي په نامه مسمی سوی دی چي نوم یې ریطه بنت
سعد وه او جعرانه یې لقب و، علیه الصلوٰة والسلام د یارلس ورځي دلته تېري
کړې او په جعرانه کي یې غنائم د حنین د اوطاس سره وویشل، سبي یعني ښځي
او کوچنیان شپږ زره نفره وه او اوښان څلورویشت زره وه او پسونه او بزې تر
څلوېښت زره بالا وې او څلور زره اوقیې سپین زر وه، او له جعرانه څخه یې د
عمرې احرام وتاړه او علیه الصلوٰة والسلام وویل چي اوویا نبیانو علیهم السلام له
جعرانه څخه د عمرې په نیت احرامونه تړلي دي.

**درویش وایي:** چي ما جعرانه په پخوا کي هم لیدلی و چي د هر ساده ځای و او
یو ساده مسجد پکښي جوړ و، خورما او تسبیح به بعض خلګو پر حاجیانو
چي له مکې څخه به ددې عمرې لپاره ورتله خرڅولې، او په وروستیو کلو کي
مي هم ولیدل چي ښه جامع مسجد پکښي جوړ سوی و او غسل خانې او د
اوداسه ځایونه یې پر عصري ډول جوړ وه، حاصل دا چي جعرانه یو مبارک او
خوشاله ځای دی چي د سړي روح پکښي تازه کېږي، او د مکې مکرمې څخه
ددغه ښار ټیکسي موټران په دې نامه ناري وهي بړه عمره بړه عمره یعني
لویه عمره په اردو ژبه، او که یې مطلق ناري وهلې عمره عمره هغه د تنعیم د
عمرې ټکسیان دي چي د علیه الصلوٰة والسلام د تنعیم عمره نه ثابت هان،
سید تنا وامنا عائشة رضي الله عنها له تنعیم څخه عمره کړې ده علیه الصلوٰة والسلام د
حجة الوداع په کال وقصته طویلة.

ثُمَّ يَتُوبُ اللَّهُ مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٧﴾

وروسته تر جنګ د هوازنو او ثقیف خدای جل جلاله توبه قبلوي پر هغه چا چي د
خدای جل جلاله مشیت او اراده ورته وسي چي دغه هوازن وه چي اسلام یې قبول کړی
او علیه الصلوٰة والسلام ته راغله تائبین من الشرک، او خدای پاک غفور
بخښونکی دی د توبه کونکو او مهربان دی علی العموم والخصوص.

بخاري رحمه الله په صحيح كتاب كي داسي روايت كړی دی له مروان او مسور بن مخرمة څخه چي رسول الله ﷺ ته چي راغلی وفد د هوازنو مسلمانان سوي وه او له عليه الصلوٰة والسلام څخه يې وغوښتل چي زموږ ټوله مالونه او سبي په لاس راكړه، نو عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل "معي من ترون" زما سره راسره دي دغه كسان چي تاسي يې وينئ يعني المجاهدين چي صحابه كرام رضي الله عنهم وه مطلب يې دا ؤچي زه خو يې يوازي اختيار نه لرم "واحب الحديث الي اصدقه" او محبوب د خبرو ماته رشتيا خبره ده يعني رشتيا ويل زما خوښ دي دا يې وروسته خبري ته تمهيد دی "فاختاروا احدى الطائفتين اما المال واما السبي" نو تاسي مختاره كړئ يوه د دوو طائفو يا مال يا سبي يعني دواړه نه دركوم چي مجاهدين يې برخي پر ېږدم "قالوا فانا نختاروا السبي" زموږ سبي چي ښځي او اولاد دي په لاس يې راكړه "فقام رسول الله ﷺ واثنى بما هو اهله ثم قال اما بعد فان اخوانكم قد جاءوا تائبين" نو ولاړ سو عليه الصلوٰة والسلام او حمد د خدای جل جلاله يې په هغه ډول چي د خدای پاک اهل دی بيا يې وويل مسلمانانو ته يعني چي په جهاد كي د حنين چي يې برخه اخستې وه، اما بعد زموږ ورونه راغلي يعني تائبين له شرک څخه "واني رئيت ان ارد عليهم سبيهم فمن احب منكم ان يطيب بذالک فليفعل ومن احب انيكون على حظه نعطيه حتى اياه من اول فيئ الله علينا فليفعل" او زما دا رايه ده چي ودوی ته رد سي سبي ددوی، نو كه يې څوک په خپل خوښه وركوي يعني خپله حصه له سبي څخه خو دا دي وكړي او كه د چا خوښه وي چي زه دي پر خوله حصه د سبي قائم يم يعني نه يې وركوم هغه ته موږ به اول غنيمت كي چي خدای پاک موږ ته راكړي دده حصه د سبي يعني اوس خو دي دا سړی د هوازنو سبي چي ده ته برخه ورغلې وه هوازنو ته رد كړي موږ به اول غنيمت كي چي خدای يې موږ ته راكړي دده حصه د سبي به وركړو، نو هغه داغسي وكړي "فقالوا قد طبينا يا رسول الله ذالک فقال رسول الله ﷺ انا لاندري من اذن منكم ممن لم ياذن فارجعوا حتى يرفع الينا عرفانكم امركم" نو خلگو په يوه اتفاق وويل چي زموږ خوښه ده چي سبي د هوازنو دوی

ته حواله کړل سي، نو علیه الصلوٰة والسلام وویل چي زه نه یم خبر چي چا اجازه ورکړه له تاسي څخه او چا نه ده ورکړې یعني تمییز د اجازې والا په تاسي کي له هغو کسانو څخه چي اجازه یې نه وي ورکړې نه راتنه وسو، ولي چي اوازونه د طیبنا په یوه پلا پور ته سول اجازه کونکي او نه کونکي ماته نه سوه معلوم. نو تاسي ولاړسئ چي ستاسي ملکان یعني مشران به ستاسي سره تفصیلي پوښتنې وکړي او بیا مرافعه ستاسي یعني بیان تفصیلي ستاسي به ماته ورسوي "فرجع الناس فکلمهم عرفائهم ثم رجعوا الی رسول اللهﷺ فاخبروه انهم قد طیبوا واذنوا" نو خلګ ولاړل، نو ددوی ملکانو خبري وکړې بیا ملکان بیرته راغله رسول اللهﷺ ته او خبر یې ورکړی چي خلګ خوښ وه د سبي د رد به برخه کي او اجازه یې وکړه.

**حکایت**: محمد بن عمر وایي چي هغه وخت چي شکست مشرکانو په حنین کي وخوړی، نو علیه الصلوة والسلام امر وکړی مسلمانانو ته په طلب کي د لوی جنایت کار دښمن چي بجاد یې نوم ؤ چي دا جنایت یې کړی ؤ، چي یو مسلمان یې په حنین کي نیولی ؤ او اندام اندام یې پرې کړی ؤ او بیا یې اور پر بل کړی ؤ. نو بجاد چونکه خپل په خیانت خو خبر ؤ او په دې هم خبر ؤ چي علیه الصلوٰة والسلام راخبر دی نو تښتېدلی ؤ، نو مسلمانانو بجاد ونیوی، نو ایشماٴ یوه ښځه وه چي مسلمانانو ته یې وویل چي تاسي بجاد ماته په لاس راکړئ چي زه ستاسي د صاحب تعني علیه الصلوة والسلام رضعي خور یم. زه یې څندي خلاصوم. نو مسلمانانو دواړه ملګري سره رارهوان کړه، لکن د مسلمانانو د شیماٴ دا دعوه یقیناٴ زړه ته نه لوېدل، خیر شیماٴ یې و علیه الصلوة والسلام ته راوستل، شیماٴ ورته وویل یا محمد زه ستا خوریم یعني رضعي علیه الصلوة والسلام خو نه پېژندل، نو یې طلب د علامې او د دلیل څندي وکړی. نو د هغې په بته ګوته کي یو تپ ؤ چي اوس جوړ ؤ لکن غار یې معلوم ؤ. علیه الصلوة والسلام ته یې وربښکاره کړی چي دغه تپ ستا د غاښو دی چي زه دي په غاښ کړم. او په وادي السرب کي ما او تا پسونه هم سره پېولي دي، او د مور پر تي

مو جنګ هم سره کړی دی یعني په وخت کې د رضاع او په وادي السرب کې چې مو پسونه پوول ته هم لوی وې زه هم لویه وم، نو د علیه الصلوة والسلام ورپیاد سوه، نو خپل له ځای وغورځېدی ولاړ سو او پټو یې اوار کړی او خور ته یې وویل چې پر دې پټو کښېنه بیا یې مرحبا او ښه راغلی ورته وو ایه. او تر دوارو سترګو یې اوښکي راغلې وروسته یې د مور او پلار پوښتنه ځندي وکړه، دې ورته وویل چې هغه مړه دي، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چې اوس نو ستا خوښه ده که دلې زموږ سره پاتېږې په ډېر کرامت او عزت او که دې دا خوښه وي چې زه بېرته ځم خپل قوم ته، نو شیما ایمان راوړی او رسول الله ﷺ درې مریان ورکړه او یوه یې مینځه ورکړه او دوه اوښان یې ورکړه، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چې زه طائف ته ځم. شیما ولاړه جعراني ته یعني خپل قوم هوازن ته، او علیه الصلوة والسلام د شیما د کورنۍ لپاره اوښان او پسونه هم ورکړه او بجاد یې هم وروبخښی هغه ایمان هم راوړی.

**درویش وایي:** چې وګورئ کرم عالي او خلق عظیم د رسول الله ﷺ چې د رضعي خور یې څومره احترام وکړی او څومره صله رحمي یې ورسره وکړه، چې چا د نسبي خور سره په ټوله امت مرحومه په تاریخ کې نه دي راغلي یعني هیڅ تاریخ د نسبي ورور او خور دومره محبت نه دی بیان کړی.

**درویش وایي:** چې له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دی چې موږ د علیه الصلوة والسلام سره وو په حنین کې. نو څه وخت چې هوازنو شکست وخوړی او اموال ددوی او سبایا ددوی د مسلمانانو په لاس ورغلې کماهر عنقریب. نو د هوازنو یو هیئت و علیه الصلوة والسلام په جعرانه کې او ددوی څورلس کسه وه چې مشر یې زهیر بن صرد ؤ او په دوی کې ابو برقان چې د علیه الصلوة والسلام رضعي اکا ؤ هم موجود ؤ، او ټولو ایمان هم راوړی ؤ، نو زهیر بن صرد وویل یا رسول الله ﷺ موږ یو اصل قبیله وو او موږ ته ورسېدل یوه بلا چې تا ته هم معلومه ده غرض یې هزیمت او اموال او ښځي او ذریه یې دې چې په غارت او غنیمت کې راغله "فامنن علینا من الله علیک" ته زموږ سره احسان وکړې خدای ﷻ ستا

احسان وکړی، زهیر بن صرد چي خطیب د هوازنو ؤ ولاړ سو او ډېر په جوش او خروش سره یې دا وینا وکړه یا رسول الله دغه په خېمو وغیره کي چي ستا سره سبایا ډېر سره دي دا ستا عمه ګاني یا خاله ګاني دي یعني من الرضاع او ستا په غېږ کي ساتونکي دي چي ستا کفالت یې په غاړه درلودی یعني د رضاع په وخت کي او ده زیاته کړه که موږ جنګ کړی وای او حارث بن ابي شمر چي د شام بادشاه دی په عربو کي یا د نعمان بن المنذر چي سلطان العراق دی او موږ ته ددوی له خوا څخه دومره لوی مصیبت رسېدلی لکه ستا د خوا چي راورسېدی او موږ پښېمانه ورغلي وای پر موږ به یې عطف کړی وای او احسان به یې راسره کړی وای وانت یا رسول الله خیر المکفولین بیا یې یو څو اشعار وویل چي اول بیت یې دادی:

اقول امنن علینا رسول الله في کرم ........... فانک المرء نرجوه وننتظر

علیه الصلوة والسلام چي دا شعر واورېدی نو یې وویل ماکان لي ولبني عبد المطلب فهو لکم وقالت قریش ماکان لنا فهو لله ولرسوله وقالت الانصار ماکان لنا فهو لله ولرسوله.

**درویش وايي:** چي دا حدیث او د بخاري حدیث چي سره د ترجمې دمخه تېر سو سره معارض دي، ولي چي د علیه الصلوة والسلام سره ملګري په غزا کي د حنین دغه مذکورین في هذا الحدیث کسان وه هغه د علیه الصلوة والسلام تر تولو شیانو چي له هوازنو څخه په غنیمت راوړي وه تېر سو ، او ددې حدیث په باره کي صالحي رحمه الله وايي هذا حدیث جید الاسناد عال جداً، رواه ایضاً المقدسي في صحیحه ورجحه الحافظ ابن الحجر رحمه الله وقال انه حدیث حسن والله اعلم بالصواب وعلینا النقل من الکتاب ولست انا من اصحاب الترجیح لافي الفقه ولا في الحدیث، لکن دا قدر ویلای سو چي عام مفسرین او عام اهل حدیث رحمهم الله او شروح د صحاح سته پر دې دي چي د هوازنو اموال رسول الله ﷺ وویشل او سبایا یې ورمعاف کړل.

**درویش وايي:** چي و علیه الصلوة والسلام ته چي په حنین کي فتح ورنصیب سوه. بیهقي له عبد الله بن الحارث او هغه له خپل پلار ه داسي روایت کړی دی

چي د حنین په جنګ کي د طائف اوویا کسه مشرکان ووژل سول لکه په بدر کي او په حنین کي دغه لاندي کسان شهیدان سول (۱) ایمن ابن ام ایمن (۲) سراقة بن الحارث (۳) یتیم بن ثعلبة (۴) یزید بن زمعة (۵) ابو عامر الاشعري، د مالک بن عوف چي شکست په برخه سو ولاړی طائف ته وتښتېدی، او د طائف په مضبوط والي چي په هغه وخت کي تر دغه کلا مضبوطه کلا نه وه ځان یې د ثقیف د قوم سره محفوظ کړی. راوي وایي چي مالک بن عوف چي طائف ته ولاړی، نو رسول الله ﷺ د تعقب لپاره د حنین مغانم بعض راویان وایي ابو سفیان بن حرب رضي الله عنه ته تسلیم کړل یعني د حفاظت لپاره تر بېرته راتلو پوري د علیه الصلوٰة والسلام له طائف څخه، او بعض راویان وایي چي بدیل بن ورقاً خزاعي رضي الله عنه ته یې تسلیم کړل او ابن اسحاق رحمه الله وایي چي پر غنائمو یې مسعود بن عمر الغفاري رضي الله عنه مقرر کړی.

**درویش وایي**: چي په دغو روایاتو کي جمع ممکنه ده چي دغو درو کسانو به په هیئت اجتماعي د غنائمو حفاظت کاوه او یا به یې په صوت د نوبت حفاظت کاوه په هر حال علیه الصلوٰة والسلام سره د خپله فوجه د طائف پر خوا راهي سو چي هوري مالک بن عوف او سره د قوم ثقیف پناه اخستې وه، او دا کلا په تصرف کي د عبد یالیل وه ابن اسحاق رحمه الله وایي چي علیه الصلوٰة والسلام طائف ته نژدې خپل عسکر سره ځای پر ځای کړل او خېمې یې ودرولې، ثقیف چي خبر سول پر کلا باندي پورته سول سلو کسو غشي ویشتونکو په غشو ویشتلو لاس پوري کړی، نو چي څوک یعني د علیه الصلوٰة والسلام د عسکرو څخه به له کلا څخه لېري وه هغه به یې په غشو ویشتل او چي کلا ته په نژدې وه پر هغو به یې د وسپني توتې چي په اور به یې مضبوطه تودې کړي وې راغورځولې، پر مسلمانانو یې د غشو باران وه وراوه چي ډېر کسان ټپکښي ټپیان سول او دوولس کسه شهیدان سول، نو علیه الصلوٰة والسلام هغه لوړ ځای ته پورته سو هغه لوړ ځای ته چي اوس پر هغه ځای باندي لوی عظیم الشان مسجد جوړ دی چي د ثقیف قبیلې وروسته تر اسلام تعمیر کړی دی او

عمرو بن مسعود الثقفي چي وروسته بیا مسلمان سوی دی وایي چي د نبي ﷺ اصحابو ﷺ به هرڅو ثقیفیانو ته دعوت ورکړی چي میدان جنګ ته راووزئ هغو دا خبره نه منل او دا به یې ویل چي پر پرېږدئ تر هغو چي اوسپړي زموږ ځه پرواه په کېږي وروسته سیف الله خالد بن ولید راغلی، نو لو نعره یې وکړه چي د مبارزې لپاره میدان جنګ ته راووزئ خو هیڅ څوک هم پر کلا نه سو راپورته، بیا یې نعره وکړه هیڅ څوک نه سو راپورته دریېم وار یې بیا نعره وکړه، نو عبد یالیل له کلا څخه ور نعره کړه لا ینزل الیک احد او موږ په خپله دغه کلا کي اوسېږو تو له ضروریات مو پوره کړي دي حتی چي موږ په کلا کي دومره خوراکي مواد ساتلي دي چي په ډېرو کلو زموږ بس دي، نو که دا مواد او ضروریات زموږ خلاص سي بیا نو میدان جنګ ته درځو سره د تورو تر هغو چي تو له مره کېږو ولم یخرج الیه احد لکن غشي یې ویشتل حتی چي ډېر صحابه ﷺ ټپیان یا شهیدان سول کمامر آنفاً، او علیه الصلوٰة والسلام نعره وکړه چي هر څو مریان چي په کلا کي دي هغه دي راووزي هغه ازاد دي، نو لس په یو څو کسه بالا مریان له کلا څخه راووتل او علیه الصلوٰة والسلام هم ددوی د وعدې سره موافق دوی ازاد کړل، وروسته و علیه الصلوٰة والسلام ته سلمان فارسي ﷺ وویل چي زما رایه داده چي پر یو لوړ ځای باندي منجنیق ورته جوړ کړو او کلا به په ولو . هغه ؤ چي منجنیق یې ورته نصب کړی، راوي وایي چي دا اول منجنیق دی چي د مسلمانانو په لاس نصب سو، لکن هغه هم ګټور ثابت نه سو، بیا علیه الصلوٰة والسلام امر وکړی چي هر مسلمان دي د ثقیف په باغو کي پینځه د خورما درختي او پینځه تاکان ورېبي زجراً الهم. نو مسلمانانو په دغه کار شروع وکړه، نو ثقیفیانو له کلا څخه پر را ږغ کړه ولې زموږ د باغو درختي قطع کوئ. که تاسي غالبه سواست خو ستاسي به په به درسي او که یې لپاره د خدای او صلة الرحم پر پرېږدئ تاسي ته به خدای عوض درکړي، رسول الله ﷺ ورته وویل فاني ادعها الله وللرحم، غرض دادی چي د طائف او د ثقیف فتح ونه سوه.

ترمذي له جابر ﷺ څخه روایت کړی دی چي اصحابو ﷺ و علیه الصلوٰة والسلام ته وویل چي موږ اور د ثقیف وسولو. نو دوی ته ښېرا وکړه علیه الصلوٰة والسلام وویل اللهم اهد ثقیفاً وایت بهم. د طائف په محاصره کي اختلاف دی یو قول دادی چي دېرش ورځي یا قریب و هغه ته محاصره جاري وه، بل روایت دی شل ورځي په یو څه بالا وې، بل روایت دی چي شل ورځي. بل روایت دی چي لس ورځي په یو څه بالا. ابن حزم اندلسي ﷺ وایي چي دا اخیري روایت صحیح دی.

**درویش وایي:** چي د روایاتو جمع چي ممکنه نه وي، نو د ترجیح ته د بعض علماؤ توجه کول په کار دی. راویان وایي چي د طائف د رجوع په وخت کي علیه الصلوٰة والسلام پر مرکب سپور و داسي یې وفرمایل" اللهم اهدهم واکفنا موئتهم.

**درویش وایي:** چي هغه څوک چي تاریخ د مغازیو د رسول الله ﷺ د دوی پر اوږو پروت دی وایي چي د هوازنو وفد چي په اسلام مشرف سو، و علیه الصلوٰة والسلام ته راغله، نو رسول الله ﷺ ورته وویل مافعل مالک بن عوف هغوی ورته وویل چي هغه وتښتېدی او په حصن طائف کي د ثقیف سره یو ځای سو. علیه الصلوٰة والسلام د مالک بن عوف و یو قریب ته وویل که دی راسي او ایمان راوړي زه به دده اهل وعیال او مال ټوله په لاس ورکړم او سل اوښان به هم ورکړم. او علیه الصلوٰة والسلام د مالک اهل وعیال په مکه کي ددوی د عمه سره یعني ام عبدالله بن ابي امیه خوندي ساتلي وه، مالک ته چي دا حال کوم اهوازي ورساوه چي ستا اهل او مال کامل خوندي دی وېشل سوی نه دی، او مالک په عین حال کي له ثقیف څخه ببرېدی پر ځان باندي ولي چي که دوی ته یعني ثقیف ته دا پیغام نبوي ﷺ چي ماته یې را استولی ورسېږي حتماً به ما قتل کړي. نو مالک خپل ښیان وه حنا ته واستول او یوه نوکر ته یې وویل چي زما آس مابنام ماته راوله. قاتي به لیلاً نو پټښي یې پر ښورولي حنا ته راورسېدی. نو خپل پر ماري اوښ سپور سو. نو علیه الصلوٰة والسلام ته یې ځان ورساوه یا په جعرانه کي یا په مکه کي، نو علیه الصلوٰة والسلام و مالک ته دده عیال او مال ورکړه او سل

اوښان يې هم ورکړل، نو دوی اسلام راوړی په ډېر اخلاص سره، نو عليه الصلوٰة والسلام مشر توب د هغه چا چې مسلمان سي من تلک القبائل يعني من قومه هوازن وقبيلة اوس او ثقيف وثماله مالک ته وسپاره، نو مالک ته راجع سول ډېر مسلمانان ددغو قومو او مالک باقاعده بيرغ جوړ کړی چې دغه مسلمانان به يې ددوی د قومو د مشرکانو سره جنګول خصوصاً د ثقيف سره او د ثقيف پر قوم يې ډېري حملې کولې او هر ځای چې به د ثقيف مواشي راووتل هغه به يې بوتله او شپانه به يې ورمړ کړی او د غنيمت خمس به يې عليه الصلوٰة والسلام ته را واستاوه، يو وار يې د ثقيف سل اوښان نيولي وه او بل وار يې زر پسونه نيولي وه، او يوه ورځ يې د طائف پر رمو او پسو يرغل ورووړی زر پسونه او مېږي يې ځني بېولي وې، اخير الامر محمد اسحق وايي چې ثقيف هم مجبوره سوه وايمان ته، نو د روژې په مياشت کې چې سنه نهه د هجرت وه د ثقيف وفد راغلی او ايمان تولـه قوم پـه يـوه وار راوړی، او د عليه الصلوٰة والسلام هغه خواست خدای ﷻ قبول کړی اللهم اهدهم ای ثقيف واكفنا مونتهم.

**درويش وايي**: چې دا ؤ د حنين د غزاً تفصيل، هوازن، اوطاس، طائف حسب المقدور مو تفصيل مطالعه کونکو ته د تفسير وکړی او په عين حال کې مو اختصار حتى الامكان وکړی "تاطبع شريفت نه پذيرد ملالتي" ورنه په اوراقو کې تفصيل نورهم موجود ؤ، آن به كه نامه را بدعا مختصر كنم.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ

اې هغه کسانو چې ايمان يې راوړی دی نه دي مشرکان مگر نجس.

**يوه سه**: چې "نجس" په زور د نون او جيم لکه په دې آيت کې چې راغلی دی مصدر دی حمل پر مشرکانو مبالغةً دی لکه زيدٌ عدلٌ، وبهذا يندفع ما عسى ان يتوهم ان نجس مفرد فكيف يصح حمله على المشركون وهو جمع وجه الدفع ان المصدر يستوي فيه المفرد والتثنية والجمع.

**يوه سه**: چې كفارو ته يې په دې سبب يې نجس وويل چې مسلمان بايد لـه دوی څخه اجتناب وکړي لکه د نجس حقيقي قاذوراتو څخه او لـه دوی څخه بېزار

اوسي او قطع د محبت ورسره وکړي، داسي نه لکه د اوسني زماني بعض مسلمانان چي امریکایان چي اشد ضرر آدي وه اسلام ته دوی په ډیر احترام او محبت ورته ګوري، او بل دادی چي کافران له جنابت او له حدث څخه په اوبو نه پاکیږي لعدم شرطه وهو الاسلام.

**فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَٰذَا ۚ**

نو دوی دي نه نژدي کیږي په سبب ددې چي دوی عین نجاست دی.

**پوه سه**: چي خدای ﷻ ذکر د قرب وکړی په دې معنی چي دخول خو ېیخي نسته کما في قوله تعالی "لاتقربوا الزنی" وقوله تعالی "لاتقربا هذه الشجرة"

**درویش وایي**: چي په تفسیر تبیان کي وایي چي دخول د مشرکانو په ټوله حدود کي د حرم ممنوع دی، او حدود د حرم د مديني پر خوا دري ميله دی او د عراق له خوا څخه اووه ميله دی او د جعرانه له خوا څخه نهه ميله دی او د جدي له خوا څخه لس ميله دی انتهی قول التبیان، ومسجد حرام ته پس سږ کال چي دا اوس دی یعني سنه نهه هجري چي امیر الحاج ابوبکر ﷺ علیه الصلوٰة والسلام پاکلی ؤ چي تر حجة الوداع د علیه الصلوٰة والسلام یو کال دمخه ؤ. ولي حجة الوداع په سنه لس کي د هجرت ؤ. او دا مذهب د امام شافعي رحمه الله دی، او پر مذهب د امام ابو حنيفه رحمه الله مراد په آیت کي د مشرکانو منع ده ومسجد حرام ته لپاره د عمرې یا د حج. فمعنی الآیة لایحجوا ولایعتمروا بعد عامهم هذا. دلیل يې د علي ﷺ دا قول دی چي ده په مکه کي اعلان د سورة برائة وکړی دا يې هم ووېل الا لایحج بعد عامنا هذا مشرک ولا یعتمر.

**تفریع**: د امام اعظم رحمه الله پر مذهب مشرک او کافر مطلقاً له دخول څخه د حرم او مسجد حرام ممنوع نه دي وکذا سائر المساجد.

**درویش وایي**: چي په فتاوی اشباه والنظائر کي وایي في احکام اهل الذمة ولایمنع من دخول المسجد ولو جنباً بخلاف المؤمن، او دغه فتاوی وایي چي دخول د ذمي و مسجد ته پر اجازه د مسلمان هم نه دی موقوف ولو کان المسجد الحرام ثم قال في الاحکام ولایسکن فیه ای في الحرم کافر" استوګنه به نه کوي

په حرم کي کافر. انتهی قول الاشباه.

**درویش وایي**: چي امام بخاري په خپل صحیح کي داسي باب راوړی دی "باب دخول المشرک المسجد" یعني علی جواز دخوله. او په دې باب کي یې استدلالاً یو طویل حدیث راوړی دی پروایة ابی هریرة رضی الله عنه قال بعث رسول الله ﷺ خیلاً قبل نجد فجائت برجل من بني حنیفة (چي مشرکان وه) یقال له ثمامة بن اثال (چي دا هم مشرک و) فربطوه بساریة من سواری المسجد (ای المسجد النبوي) الی اخیر الحدیث النبوي. لکن مظهري دا دلیل ضعیف بولي یعني الاستدلال به علی جواز دخول المشرک المساجد ضعیف لانفس الحدیث فانه صحیح.

**پوه سه**: چي تېر سوي آیت "فلا یقربوا المسجد آه" چي نازل سو نو په روایت د ابن عباس او سعید بن جبیر رحمه الله پر مسلمانانو د مکې مکرمې دا سخت واقع سو وقالوا من یأتنا بالطعام وبالمتاع. ولي چي په پخوا زمانه کي چي به مشرکین بیت الله شریفي ته راغله له ځان سره به یې متاع او طعام هم راوړل یعني غنم وغیره. نو چي دوی له بیت الحرام څخه منع سول دا شیان به موږ ته څوک راوړي. نو دا آیت نازل سو.

وَإِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً فَسَوْفَ يُغْنِيكُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ إِن شَاءَ

او که تاسي بېرېږئ اي مسلمانانو د مکې د فقراو له لوږي څخه په سبب د منع د تجارو د مشرکانو له مکې څخه. نو ژر دی چي غنیان به کړي تاسي خدای پاک یعني بې پرواه به کړي تاسي له تجارت څخه د مشرکینو په وجه آخر سره د خپل تفضل او احسان په یوه بله وجه که د خدای اراده وه او خدای خپل وعده پوره کړه چي بارانونه یې ډېر پر اورول او شاوخوا قومونه مسلمانان سوه او هغو به غلې او کالي ورته راوړل. او بیا خدای پاک فتح د ښارو وکړه پر مسلمانانو د مکې او بیا غنیمتونه پیدا سوه.

**تنبیه**: خدای پاک د مشیت قید ووایه لپاره د تنبیه پر دې چي دا اغناً من وجه آخر پر خدای واجبه نه ده بل هو متفضل بها. او بل اشاره ودې ته ده چي د انسان مسلم زړه باید په وجود پوري د موعود مربوط نه وي بلکې په کرم پوري د من وعدبه ویتفرع الیه في نیل جمیع المهمات ودفع جمیع الآفات.

إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ حَكِيمٌ

خدای پاک عالم دی په هر حال د هر چا او حکمت لري په هر کار کي، بعض وخت به یو کار د سړي په خیال عتاب وي هغه به ثواب وي. بعض وخت یو کار مصیبت بولي هغه به نعمت وي وهکذا.

خداوند کریمست اگر دري دربندد ...... در دیگري بکشا ید
گمان مدار اگر ضایعم تو بگذاری ...... که ضایعم نگذارد مسبب الاسباب
برای من در احسان اگر تو دربندی ...... درد یگر بکشاید مفتح الا بواب

**فائده:** اهل مکه چي له لوږي بې ‌ېدل، مقاتل رحمه الله وایي چي خدای جل جلاله اهل جده او صنعا او جرش یمن په اسلام مشرف کړه وجلبوا المطعومات الكثيرة الى مكة فكفاهم الله تعالى ماكانوا يخافون.

قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ

تاسي جنګ، جهاد او غزا کوئ د هغو کسانو سره چي ایمان نه لري پر خدای یعني په وحدانیت سره او نه پر ورځ د اخرت. مجاهد رحمه الله وایي چي دا آیت هلته نازل سو چي خدای جل جلاله علیه الصلوٰة والسلام امر کړی په غزا د روم، نو وروسته تر نزول ددې آیت علیه الصلوٰة والسلام د تبوک غزا وکړه.

**سوال:** رومیان خو اهل کتاب وه، اهل کتاب خو پر خدای او پر یوم الآخرة ایمان لري، نو څرنګه دا آیت پر دوی موافق کېږي؟

**جواب:** ددوی ایمان پر خدای لکه نه ایمان دی، ولي چي یهودان عزیر ابن الله بولي او نصاری عیسی ابن الله بولي، نو ددوی ایمان پر خدای جل جلاله حقیقةً نه دی لانه تعالى احد صمد لم يلد ولم يولد ولم يكن له كفواً احد كما في سورة الاخلاص، او دوی چي وایي لن يدخل الجنة الا من كان هوداً او نصارى، او یا وایي لن تمسنا النار الا اياماً معدودة لم يكن ايمانهم باليوم الآخر على حقيقة ذالك اليوم فايمانهم كلا ايمان.

وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ

او دوی حرام نه بولي هغه کار یا شی چي خدای او رسول د خدای حرام ګڼلی وي

يعني ماثبت تحريمه بالوحي المتلو وهو القرآن او الوحي الغير المتلو وهو السنة النبوية مثل الدم والخمر والخنزير وغيرها مما جا حرمته في القرآن او الحديث النبوي ﷺ.

## وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ

او تدين نه کوي نو پر دې تقدير دين الحق يې مفعول مطلق دی او که لايدينون په معنی لايعتقدون ولا يقبلون سي، نو دين الحق يې مفعول به دی.

**پوه سه:** چي حق صفت مشبه دی او اضافت د دين وحق ته من قبيل اضافة الموصوف الى صفته. والاصل الدين الحق، وهو دين الاسلام لانه دين ثابت نسخ جميع ماسواه من الاديان وثابت كر الازمان ومر الدهور، له قتاده رحمه الله څخه روايت دی چي حق نوم د خدای ﷻ دی فالمعنى لايدينون دين الله الذي هو الاسلام كما ورد ان الدين عند الله هو الاسلام، ابو عبيده رحمه الله وايي معناه لايطيعون طاعة اهل الحق.

**درويش وايي:** چي مآل ددې تولو تفسيرو وه يوه شي ته دی.

## مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَٰبَ حَتَّىٰ يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَن يَدٍ وَهُمْ صَٰغِرُونَ ۝

هذا بيان الذين لايؤمنون يعني اليهود والنصارى، له هغو کسانو څخه چي ورکړه سوی دی کتاب، تر هغه وخته پوري جنگ ورسره کوئ چي دوی درکوي جزيه (سر غم) له خپل لاس څخه په داسي حال کي چي دوی به ذليل وي.

جزيه په اصل کي جزائة دی او وزن يې د فعلة دی چي لپاره د هيئت دی عند الصرفيين، والمراد بالهيئة ههنا الذلة كما ستعرف، او يا يې جزيه له دې سببه بولي چي معنی د جزيه فديه د اهل ذمه لپاره دا فديه د قتل ده، يعني په سبب د جزيه قتل له دوی څخه پورته سو، والمراد بالجزية المقدار المضروب على رقابهم من الذهب والفضة (چي په پښتو يې سر غم بولي) "عن يد" حال دی له ضمير څخه د يعطوا يعني مسلمين (دوی به يې تسليموي وحکامو ته د مسلمانانو په خپل لاس يعني د بل چا په لاس به يې نه ورکوي) او يا معنی داده

عن يدٍ مطيعة يعني منقادين. ددې قيد فائده داده که دوی انقياداً جزيه نه ورکول بلکې جبر او اکراه ته ضرورت پيدا سو د مسلمانانو د حکامو له خوا نو عقد ذمه يې له منځه ولاړه او ددوی حکم قتل او قتال ته ګرځي نو "عن يد" کنا يه ده له طوع او انقياد څخه "وهم صاغرون" عکرمه ﷺ وايي چې اهل ذمه به ولاړ وي او اخستونکی به ناست وي. بعض وايي جزيه چې يې ورکړه پر څټ دې په چپلاخه هم ووهي او په خوله دې ورته ووايه اد الجزية يا ذمي يا عدو الله. له ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چې جزيه يې ځندي واخستل مغزی دي هم ورېبچي والغرض الاذلال.

**فائده**: له ظاهر څخه ددې آيت داسې فهمېږي چې جزيه مخصوصه په اهل کتابو پورې ده ځکه عمر ﷺ د مجوسيانو يعني آتش پرستانو څخه جزيه نه اخستل حتی عبدالرحمن بن عوف عمر ﷺ ته دا شاهدي اداً کړه چې عليه الصلوٰة والسلام له مجوسيانو څخه د هجر جزيه اخستې ده.

**شپاته فائده**: پوه سه! چې کافران پر درې قسمه دي:

(۱) هغه قسم کفار دي چې تر هغو به مسلمانان قتال او جنګ ور سره کوي څو اسلام راوړي يعني بېله اسلامه له دوی څخه جزيه نه قبلېږي وهم مشرکو العرب والمرتدون. اما مشرکو العرب له دې سببه جزيه نه ځني قبلېږي چې رسول الله ﷺ ددوی له قومه څخه دای ﷻ ورواستاوه دوی ته يې قسم قسم معجزات ښکاره کړې او بيا هم دوی ايمان رانه وړی، نو ددوی کفر افحش دی. واما المرتدون دوی مخ واړاوه له دين حق څخه وروسته تر دې چې په محاسنو ددين حق پوه هم سوه د يو غرض فاسده لپاره يعني د چوکۍ او رياست لپاره يا د ډالرو، پونډ لپاره مثلاً، فيکون کفرهم اقبح والعقوبة على قدر الجناية چونکه جنايت د دغو ډلو اعظم الجنايات ؤ نو عقوبت يې هم اعظم العقوبات دی وهو القتل. او د جزيه پر ورکړه کې خو پر دوی تخفيف دی او دوی د زړه سوي او د تخفيف مستحق نه دي.

(۲) هغه کافران چې جنګ به ورسره کېږي چې يا اسلام راوړي او يا جزيه ته

غاړه ایږدي وهم الیهود والنصاری والمجوس. اما الیهود والنصاری فبهذه الآیة واما المجوس چې حکم یې د اهل کتابو دی او سره ددې چې دوی آتش پرستان او مشرکان دي فبقوله علیه الصلوٰة والسلام وهو حدیث صحیح رواه ارباب السنن في المجوس "سنوبهم سنة اهل الکتاب غیر ناکحي نسائهم واکلی ذبائحهم" تاسي معامله کوئ ددوی سره یعني د مجوسیانو سره لکه معامله د اهل کتابو سره یعني في قبول الجزیة منهم. مگر ښځي ددوی مه په نکاح کوئ او ذبیحه ددوی مه خورئ، ولي چي دوی مشرکان دي د مشرکي ښځي نکاح و مسلمان ته نه ده روا او ذبیحه یې هم مرداره ده بخلاف اهل الکتاب.

(۳) هغه کافران دي چي نه مشرکو العرب وي او نه مرتد وي او نه یهود او نصاری وي او نه مجوس کعبدة الاصنام من الهند وجاقان وبعض الترک، نو پر مذهب د امام اعظم رحمه الله اخذ د جزیه له دوی څخه روا دی.

**پوښتنه:** دوی خو هم داسي بت پرسته دي لکه مشرکان د عربو نو ل هغو څخه د جزیه اخستل خو روا نه وه کمامر آنفاً. نو له دې مشرکانو څخه ولي اخذ د جزیې روا دی؟

**ځواب:** په صحیح احادیثو سره ثابته ده چي اجتماع د دوو دینو په جزیرة العرب کي نه ده روا، نو که له مشرکانو څخه د عربو جزیه قبوله سي او دوی پر خپل دین پرېښول سي خو اجتماع د دوو دینو په جزیرة العرب کي لازمېږي. او په هند وغیره کي اجتماع د دوو دینو روا ده، وهذا هو الفرق بین فریقی المشرکین ای العرب والهند مثلاً فافهم.

**پوه سه:** چي مقدار د جزیه په نیز د حنیفیانو رحمهم الله پر مسکین چي کاریګر وي یعني یا موچي وي یا بناً وي الی غیر ذالک دوولس درهمه ده في کل شهر درهم په شرط ددې چي د کال په اکثره حصه کي دی جوړ وي یعني هغه خپل کار وکسب کولای سي، او که نیمی کال یا بالا تر نیمی مریض ؤ بیا جزیه نسته باندي والوجه ظاهر. او پر متوسط الحال یعني نه غني وي او نه فقیر وي پر هغه باندي څلورویشت درهمه جزیه سته د میاشتي دوه درهمه، او پر غني باندي اته

څلوېښت درهمه جزیه ده په میاشت کې څلور درهمه. او فقیر چې له کسبه عاجزه وي او پر شیخ فاني او ګوډ شل او پر رانده او پر ښځه او کوچني او یا راهب ددوی چې له خلګو څخه ګوښه کښېنستل اختیار کړي وي پر دغو ټولو کسانو جزیه نشته. والدلیل علی ذالک دادی چې مشروعیت د جزیه خو ددوی لپاره دی چې کافر زجر سي له کفر څخه او باعثه کول دي پر اسلام. نو ګویا جزیه په ځای کې د قتل ولاړه ده، نو چاته چې عقاب د قتل نه وي متوجه، نو پر هغه عوض د قتل هم نشته یعني الجزیه. او د مذکوره کسانو وژل په جنګ کې شرعاً ناروا دی.

**پوښتنه:** ملاحدة یعني بې دینه کسان چې وایي چې څرنګه شرع روا بولي قدرت ورکول وکافر ته پر کفر باندې په ورکړه د جزیه بدلا عن الاسلام؟

**ځواب:** داس خو نه ده چې اخذ د جزیه رضا په کفر سره د کافر ده کما توهم الملحد بلکې جزیه عقوبت او عذاب ورکول دي ودوی ته چې پر کفر ټینګ دي، او چې مهلت ورکول و کافر ته روا دی بېله جزیه د فکر لپاره او د دعوت لپاره، نو په جزیه سره خو په طریق اولی روا دی، هذا ماقاله الحدادي في جواب الملاحدة ونقله صاحب روح البیان.

**نصیحت:** د مسلمانانو والیان چې پر اخذ د جزیه د اهل ذمه وو مسلط وي باید تر حدود د شریعت او دین اسلام یوه ذره هم تجاوز ونه کړي لانه ظلم والظلم لایجوز مطلقاً که پر مسلمان وي او که پر ذمي وي، سعدي وايي:

جمله دانند این اگر تو نگروی ............ هرچه می کاریش روزی بدروی

**تبصره:** چونکه تر خیر القرون وروسته یعني قرن الصحابة ﷺ وقرن التابعین وقرن تبع تابعین ﷺ پادشاهان د اسلام علی الاکثر عیش پرستان سوه او پر رعیتو یې ظلم شروع کړی نه یوازې پر اهل ذمه بلکې پر مسلمانانو یې هم ظلمونه وکړه، نو رفته رفته د غلبه اسلام لمر او په غزواتو کې کامیابي او تر غربه او تر شرقه تر جنوبه او تر شماله ځلاندي ورانګې د اسلام د غلبې د لمر مخ پر ژړوالي سو، او سر سبزه او شاداب درخته د اسلام مخ پر مړاوي سوه حتی چې په اوس سنه ۱۴۲۸ هـ کې بلکې په لسیزو کلو دمخه کفار په انواع مختلفه وو

سره يعني المشركين واليهود والنصارى وبالخصوص الامريكين پر تيوله نړۍ تقريباً تسلط لري يا بالذات لکه ددوی خپل دولتونه او يا بالواسطة لکه پر يو مملکت د مسلمانانو خپل يو غلام حلقه بگوش رئيس جمهور وټاکي او په حقيقت کي حکومت د کافرانو وي، حتى چي په اوسني زمانه کي به مستقل مطلق دولت د مسلمانانو نه وي او که وي هم هغه به تر شعاع سميه يعني زهريه د امريکايانو تر دباؤ لاندي وي، التسلط عليه اليوم او غداً او بعد غد.

چو بينم دين احمد درغريبى .............. دلم سوزان زچشم خون جارى

**درويش وايي:** چي نو له دې سببه د جزيه کمبله تقريباً اوس تيوله سوه.

چون فرود آيد بلابى دافعى ............. جز تضرع نبود ديگر شافعى

اللهم انصر الاسلام والمسلمين في جميع كرة الارض ودمروا هلك اعدا الدين اللهم دمرهم وزلزلهم زلزالاً شديداً واسلبهم مدد الامهال اللهم قلل عددهم اللهم مزقهم كل ممزق مزقة لاعدائك انتصاراً لانبيائك و اوليائك برحمتك يا ارحم الراحمين.

## وَقَالَتِ الْيَهُودُ عُزَيْرُ ابْنُ اللَّهِ

او وايي يهودان عزير ﷺ د خداى ﷻ زوى دى.

**پوه سه:** چي بعض له قرا سبعه وو څخه عزير په تنوين سره وايي.

**سوال:** په عزير کي خو عجمه او علميت جمع دي، نو خو غير منصرف دى، نو ولي يې په تنوين وايي؟

**ځواب:** اول دا کسان چي يې په تنوين وايي لفظ د عزير عربي مصغر بولي، دوهم دا که عجمي هم سي، نو د انصراف وجه يې داده چي اسم خفيف دى مشابه د مصغر سره دى، نو ځکه يې منصرف کړى، لکه هود، لوط او نوح چي عجمي خفيف دي.

**پوه سه:** چي عزير مبتدا ده او ابن الله يې خبر دى، صفت يې نه دى لبقا المبتدا بلا خبر، او بعض له قرا سبعه وو څخه يې به تنوينه وايي يا له دې سببه چي دوى يې عجمي بولي او بل علميت پکښې دى. نو غير منصرف دى. او لالتقا الساکنين تشبيهاً للنون بحرف اللين.

**فائده:** عزیر بن شرحیا له نسله د یعقوب ﷺ دی او له قبیلې څخه د لاوي دی او په څورلسم پښت د هارون بن عمران ﷺ سره یو ځای کېږي او دا قول د قدماؤ د یهودانو دی.

**سوال:** یهودان خو له دې څخه منکر دي چې موږ عزیر ابن الله بولو؟

**خواب:** خدای ﷻ ددوی د قدماؤ قول نقل کړی دی. او په بحر مواج کې وایي تذم او تمدح بصدور ماینا سب الذم والمدح من بعضهم مثل بنو فلان قتلوا مع ان القتل صدر من من بعضهم.

تاریخ وایي چې بخت نصر بابلي چې پر بني اسرائیلو حمله وکړه او پر غالب سو، نو د بني اسرائیلو ټوله علماً یې قتل کړه او بیت المدس یې ټوټې ټوټې کړی او د بني اسرائیلو په زرهاؤ ځوانان یې په غلامۍ بو تله. او تورات یې وسوځی، او عزیر ﷺ کوچنی و، نو د کوچنیوالي په سبب یې قتل نه کړی او بابل ته یې د ځان سره بو تلی په سبایاوو کې د بني اسرائیلو، نو عزیر ﷺ چې په بابل کې ځوان سو. نو په یو ډول یې له بابل څخه ځان راویستی پر یوه خره سپور ؤ او کالي وغیره یې په بغل ځولۍ کې وه، او کوچنی ژی د اوبو ورسره ؤ. نو د بیت المقدس پر خوا راروان سو چې د بني اسرائیلو ابائي ټاټوبی ؤ په بیت المقدس کې چې لوټي لوټي پروت ؤ گرځېدی هیڅ انسان یې پکښې ونه لیدی او اکثره مېوه داره درختې یې په مېوو بار وې، نو بعض مېوې یې وخوړلې ځان یې موړ کړی او انگور یې چوختانې کړل او اوبه یې ځندي راوه ایستلي وه څښلې، او یو څه فاکه هر شي چې ؤ په بغل ځولۍ کې یې د ځان سره واخسته او د انگورو اوبه یې خپل ژي ته واچولي، نو عزیر ﷺ چې دې خرابیو ته د بیت المقدس وکتل دا یې وویل "انی یحی هذه الله بعد موتها"

**پوه سه:** چې دا قول د تعجب د لاري ؤ لا انکاراً من قدرة الله تعالی علی احیائها. نو عزیر ﷺ ورغلی یو لېري ځای په بیت المقدس کې خر یې په یوې درختې پورې وتړی او د انگورو د اوبو ډک ژی یې هم کښېښو او پر بغل ځولی یې سر کښېښو د خوب لپاره، نو په خوب کې یې خدای ﷻ روح ځنې واخستی،

او سل کاله په مړینه پر تېر سوه او خر یې هم مړ سو او په مرور د زماني سپین هډوکي پراته وه او د انګورو اوبه خدای پاک په ژي کي تازه وساتلې او یو څو دانې اینځر ورسره وه هغه هم خدای پاک ثابته وساتل، او پر عزیر او دده پر جسد او نور شیان چي دده سره ورسره وه خدای ﷻ د خلګو سترګو باندي ړندي کړي هیڅ چا ونه لیدی، سل کال وروسته خدای پاک ژوندی کړی او خر یې هم خدای پاک ورژوندی کړی کما ورد في القرآن فاماته مائة عام ثم بعثه الی اخیر الآیة.

**درویش وایي:** چي د عزیر ﷺ قصه ډېره اوږد ده چي ددې تفسیر په سورت بقره کي تېره سوې ده دلته دا قدر ذکر غوښت غواړي چي یهودانو بني اسرائیلو ولې دی ابن الله باله، ددې تفصیل دادی چي دمخه حال د عزیر ﷺ نژدې تېر سو نو چونکه دی بیرته بیت المقدس ته راغلی د هیڅ چا سره په دنیا کي تورات نه ؤ او مکتوب د تورات تختې خو بخت نصر بابلي سوځلي وې، نو خدای پاک عزیر نبي وبني اسرائیلو ته راواستوی چي ته ورسه د تورات تجدید وکړه.

**پوښتنه:** د عزیر ﷺ نو تورات په یاد ؤ؟

**ځواب:** یا! تورات خو یې نه ؤ په یاد لکن یو ملکي په امر د خدای ﷻ یو څه اوبه ورته راوړې چي وه یې څیښلې په سینه او په زړه کي یې تورات نقش سو، نو دی بني اسرائیلو ته راغلی وروسته تر سل کاله او دوی ته یې وویل چي زه نبي یم، خلګو یې تکذیب وکړی او ورته وه یې ویل چي که ته عزیر نبي یې موږ ته تورات واوروه، نو عزیر ﷺ املاً د تورات ورته وکړه او کاتب تورات نوشته کړی، بیا دوی ورته وویل چي دا تا چي کتابت او املاً وکړه موږ ته څه معلومه ده چي دا اصلي تورات ؤ چي پر موسی ﷺ نازل سوی ؤ او کله تا له ځانه جوړ کړی په بني اسرائیلو کي یو سړی ناست ؤ هغه وویل چي ماته خپل پلار چي هغه ته خپل پلار ویلي وه چي زما نیکه کېږي داسي بیان کړی دی چي بخت نصر بابلي چي پر موږ حمله وکړه موږ دده له بیرې د تورات نسخه په صندوق کي کېښېښول په فلاني باغ کي مو ښخ کړې ده، سړي وویل پلار وماته او ده ته خپل پلار هغه ځای د ښخېدو د تورات را ښوولی دی، نو هغه باغ ته ورغله او هغه ځای یې

وکندی صندوق پیدا سو چې تورات پکښې پروت و. نو هغه د صندوق اصلي تورات چې یې د عزیر ﷺ د املائي تورات سره وکتی او مقابله کړی سره نو یو حرف هم نه و سره مخالف، نو دوی وویل چې خدای په سنه کې د چا تورات نه وراچوي مګر چې زوی یې وي. فقالوا عزیر ابن الله.

**درویش وایي:** چې د عزیر ﷺ په باره کې کتابو د تفاسیرو مخالف بیانونه اوږده او لنډ کړي دي لکه د سورة البقرة له تفسیره څخه په کتابو کې د تفاسیرو متعددو ونشان دهي د دغو اختلافاتو کړي، والله اعلم بحقیقة الحال.

## وَقَالَتِ النَّصٰرَى الْمَسِيحُ ابْنُ اللّٰهِ

او ویلي دي نصاری وو چې مسیح یعني عیسی ﷺ د خدای زوی دی.

**درویش وایي:** چې مظهري له بغوي څخه یو سبب ددې قول د نصاری وو چې عیسی ابن الله دی رانقل کړی دی چې زه به یې عنقریب درته بیان کړم چې د هغه قول په باره کې علامه بغداد په تفسیر روح المعاني کې ج۱۰ کې داسې وایي ومن الغریب الذي لایکاد یصح ماقیل (له نادرو خبرو څخه دي چې قریب نه ده چې صحیح دي وي هغه دي چې چا ویلي.

**درویش وایي:** چې ددې قول ویونکی بغوي رحمه الله دی او ناقل یې مظهري رحمه الله دی ثم نقل علامة البغداد القول المذکور الذي قال فیه لایکاد یصح.

**درویش وایي:** چې هغه قول چې علامه بغداد راوړی دی چې بغوي په شان نزول کې ددې آیت راوړی دی او مظهري رانقل کړی دی هغه قول دادی "ان السبب في قولهم هذا انهم کانوا علی الدین الحق بعد رفع عیسی الی السما احدی وثمانین سنة" (سبب په دغه قول کې ددوی عیسی ابن الله دی، چې نصاری پر دین حق باندې وه وروسته تر پورته کېدو د عیسی ﷺ و اسمان ته اتلس کاله) "یصلون ویصومون ویوحدون حتی وقع بینهم وبین الیهود حرب" (دوی لمونځونه کول او روژې یې نیولې او خدای ﷻ یې واحد لاشریک باله، حتی چې ددوی یعني د نصاری او یهودو تر منځ جنګ واقع سو) "وکان في الیهود رجل شجاع یقال له بولص قتل جماعة منهم ثم قال الیهود ان کان الحق

مع عیسی فقد کفرنا والنار مصیرنا" (په یهودانو کي یو سړی ډېر دلاوره چي بولص یې باله چي یوه ډله د نصاری وو یې وژلې وه، نو وروسته بولص و یهودانو ته وویل که حق په جانب کي د عیسی ﷺ وي نو موږ خو کافران سوو یعني دده د نبوت انکار مو وکړی. نو زموږ تګ یعني په ورځ د قیامت به و دوږخ ته وي) "ونحن مغبونون ان دخلنا النار ودخلوا الجنة واني ستاحتال علیهم واضلهم حتی یدخلوا النار معنا" (او موږ به ډېر تاوانیان یو که موږ دوږخ ته ورسو او دوی یعني نصاری جنت ته ولاړ سي. لکن زه ژر دی چي یو حیله به دوی ته وکړم حتی چي دوی یعني نصاری زموږ سره دوږخ ته ولاړ سي) "ثم انه عمد الی فرس یقاتل علیه فعقره واظهار الندامة والتوبة ووضع التراب علی رأسه واتی النصاری" (وروسته بولص قصد وکړی و خپل آس ته چي ده به پر هغه د نصاری وو سره جنګ کاوه هغه یې هلاک کړی، بیا بولص ښکاره کړه یعني نفاقاً توبه او پښېماني پر عداوت او جنګ د نصاری وو سره او خاوري یې پر سر باد کړې او نصاری وو ته ورغلی) "فقالوا من انت قال عدوکم بولص قد نودیت من السماء انه لیس لک توبة حتی تعلم الانجیل ثم خرج" (نو نصاری وو دی داخل کړی خپل عبادتګاه ته یعني ګرجا ته او ډېر کومک یې ورسره وکړی، نو بولص په هغه ګرجه کي په یوه خونه ننوتی. نو یو کال نه راووتی له هغې خوني یعني ډوډۍ او نور ضروریات به نصاری وو وروړه تر هغو پوري چي انجیل چي د نصاری وو کتاب دی مکمل یې زده کړی یعني په تعلیم د نصاری وو د یو عالم، نو باره راووتی) "وقال قد نودیت ان الله تعالی قبل توبتک فصدقوه واحبوه وعلا شانه فیهم" (نو بولص وویل چي ماته نعره وکړل سوه یعني له طرفه د اسمان چي خدای پاک ستا توبه قبوله کړه. نو نصاری وو یې تصدیق وکړی او ډېر محبت یې ورسره پیدا سو یعني په دې سبب چي د نصاری وو په خیال دی لوی ولي الله دی چي له اسمان څخه دده سره خبري کېږي او د بولص رتبه په نصاری وو کي ډېره لوړه سوه) "ثم انه عمد الی ثلثة رجال منهم، نسطور، یعقوب و ملکان فعلم نسطور ان الآلهة ثلثة الله و عیسی و مریم "تعالی الله عن ذالک" وعلم



Scanned by CamScanner

يعقوب ان عيسى ليس بانسان لكنه ابن الله سبحانه وتعالى. وعلم ملكان ان عيسى هو الله لم يزل ولايزال" (نو بولص قصد وكړي ودرو كسو ته د نصارى وو يعني چي صاحب قدرت كسان وه، يو نسطور و بل يعقوب ؤ او بل ملكان ؤ يعني دا درې كسان يې خپل مريدان كړل، نو دې شيطان نسطور ته په خلوت كي دا وروښول چي خدايان درې دي الله، عيسى و مريم.

**پوه سه:** چي تعالى الله د كاتب له خوا دى يعني په دې شرط چي چا ته به دا سِر او راز نه وايه آه، يعقوب ته يې دا وروښوول چي عيسى انسان نه دى بلكې د خداى زوى دى يعني بالشروط المذكور. او ملكان ته يې دا وروښوول چي عيسى په خپله خداى دى زوال ئه لري نه درلودى يعني بالشرط المذكور. فلما استمكن ذالك منهم دعا كل واحد منهم في الخلوة وقال له انت خليفتي فادع الناس الى ماعلمتك وامره ان يذهب الى ناحية من البلاد ثم قال لهم اني رئيت عليه الصلوٰة والسلام وقد رضى عنه وانا ذابح نفسي تقرباً اليه ثم ذهب الى المذبح فذبح نفسه وتفرق اولئك الثلثة فذهب واحد منهما الى الروم، و واحد الى بيت المقدس والآخر الى ناحية اخرى واظهر كل مقالته ودعا الناس اليها فتبعه من تبعه" (نو هغه وخت چي بولص خپلي عقيدې په دوى كي محكمه كړې، نو يو يو يې ددوى خلوت ته وروغوښتى يعني جلا جلا او هر يوه ته يې وويل چي ته زما خاص سړى او خليفه يې، نو خلكو ته دعوت كوه د هغه عيسوي دين چي ما تاته درښوولى دى يعني بله لار د عيسى په دين كي نسته كه چا نه منل د هغه سره جنگ كوه، او هر يوه ته يې وويل چي ته ولاړ سه فلاني وطن ته او ته ولاړ سه فلاني وطن ته، بيا بولص ودوى ته وويل چي ما عيسى په خوب وليدى او زما څخه راضي ؤ، او زه خپل ځان ذبح كوم لپاره د تقرب و عيسى ته نو ولاړى و مذبح ته خپل ځان يې ذبح كړى او هغه درې خليفه گان سره متفرق سوه، يو ولاړى روم ته او بل ولاړى بيت المقدس ته، او دريم بلې خوا ته او هر خليفه د بولص وريښوولي طريقه ظاهره كړه او خلكو ته به يې دعوت وركاوه نو هغه چا چي به يې متابعت كاوه متابعت به يې وكړى)

**درویش وایي:** چې هغه قصه پای ته ورسېدل چې بغوي رحمه الله ددې آیت په شان نزول کې راوړې وه او مظهري رانقل کړې وه او علامه بغدادي یې شدیداً رد وکړی والعلم عند الله تعالی.

**درویش وایي:** چې ودغې قصې ته نژدې قصه جلال الدین الرومي قدس سره په مثنوي کې راوړې ده لکن ببخي ورده ده په ډېر شد ومد سره یې راوړې ده والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.

**پوښتنه:** څه سبب ؤ چې نصارى وو عیسى ابن الله باله مع قطع النظر عن تلک القصة؟

**ځواب:** سید محمود آلوسي رحمه الله وایي چې شاید چې سبب ددې وینا به دا وي چې ددوی په عقیده دا محال ؤ چې ولد دې بېله اب وي، نو چونکه عیسى علیه السلام خو ظاهري پلار نه درلودی نو یې ابن الله وباله. لکن آلوسي وایي چې دا د یوې ډلې مسلک دی، او بلې ډلې به د عیسى علیه السلام معجزې په فهم کې نیولې وې، چې احیاً الموتى وه او مورزاده ړوند به دده په دعاً جوړېدی وهکذا پیس مرض والا جوړېدی او دا کارونه بېله خدایه څوک نه سي کولای، نو یې عیسى علیه السلام خدای وباله، او بعضو به خدای منی، او عیسى علیه السلام به یې ابن الله باله، او مریم چونکه اصل د موسى ده یعني مور یې ده نو هغه یې هم خدای وبلل، نو عیسى علیه السلام ثالث ثلاثة الآلهة سو. لکن آلوسي رحمه الله وایي چې زما په عقیده ظاهره داده چې دوی په انجیل کې چې ددوی سره ؤ اطلاق د ابن پر عیسى او داغه رنګه اطلاق د اب یې پر خدای جل جلاله کاوه لکن دوی خطاوتلي وه په مراد کې ولې چې دوی حقیقةً اب او ابن په خیال ورتلی لکن معنا یې مجاز کنایي ده فافهم.

ذَٰلِكَ قَوْلُهُم بِأَفْوَاهِهِمْ

دغه چې دوی وایي عیسى د خدای زوی دی. قول ددوی په خوله ددوی.

**سوال:** قول خو وي په خوله، نو د بافواههم څه فائده؟

**ځواب:** بعض مفسران وایي چې دا قید لپاره د تاکید د قولهم دی او دفع د مجاز ده کما في قولهم کتبته بیدي وبصرته بعیني وسمعته باذني. او بنه ځواب

دادی چي دا هم بعض مفسران ذکر کړی دی چي مراد له قید څخه داده چي دا قول بې حقیقته قول دی لکه مهمل قول.

**درویش وایي:** چي زموږ په پښتو کي هم ورته لفظ سته لکه یو سړی چي یوه خبره وکړي بل سړی ورته ووایي دا نو ستا د خولې خبر دی یعني هیڅ حقیقت نه لري.

يُضَاهِـُٔونَ قَوْلَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَبْلُ ۚ قَاتَلَهُمُ اللَّهُ ۚ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ﴿٣٠﴾

دوی یعني نصاری في قولهم عیسی ابن الله مشابهت کوي په دې قول سره د قول سره د هغه کسانو چي کفر یې کاوه من قبل بحذف المضاف الیه وتعویض الضمة منه ای من قبلهم.

**یوه سه:** چي سدي او قتاده وایي چي مشابه دی قول د نصاری وو چي عیسی ابن الله بولي د قول سره د یهودانو تر دوی دمخه چي عزیر ابن الله دی. او مجاهد وایي چي نصاری مشابهت کوي د قول سره د مشرکانو د مکې تر دوی دمخه چي هغو به ویل چي لات او عزی او منات د خدای لوڼي دي.

**درویش وایي:** چي د مکې د مشرکانو دا قول مشهور نه دی یو روایت شاذه دی فلا یناسب تفسیر القرآن ههنا به فافهم، او حسن بصري رحمه الله وایي شبه الله کفر النصاری بفکر الامم السابقة. وفیه انه تشبیه عام یخالف سیاق الکلام لان سوق الکلام في النصاری الذین یقولون عیسی ابن الله. نو قول د سدي او قتاده علی ذروه التحقیق لانه مناسبة خاصة في اتخاذ الولد في قول المشبه وقول المشبه به

**یوه سه:** چي قاتلهم بېړا ده له جانبه څخه د خدای ودوی ته. بعض وایي چي معنی یې هلاک دی او مشهوره په قاتل چي په قرآن کي راسي هغه معنا ده چي د ابن عباس رضي الله عنهما څخه مروي ده ای لعنهم الله. او تفسیر غریب دی چي څوک وایي معنا یې تعجب دی من شناعة قولهم. څرنګه دوی مصروف سوه له حق څخه و باطل ته بعد قیام الادلة من معجزات الرسول ﷺ علی ماهو الحق.

اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللَّهِ

دوی ګرځولي دي ملایان خپل جمع د حبر ده بالفتح والکسر، او صوفیان خپل لکه بلا تشبیه زموږ پیران. ددوی رهبان په صوامع کي چي ددوی عبادت

ځایونـه دي چـي ددوی رهبـان پکښـي خلوتيـان وي لکـه زمـوږ پيـران چـي پـه مساجدو كي معتكفان وي، رهبان جمع د راهب ده، خدايان يې گرځولي دي دوی يعني نصاری وو، ولي چي حبر يا راهب به يوه خبره ورته وكړه هغه يې منله كه څه هم د خدای ﷻ په نيزد هغه حكم معصيت وای. نو له دې سببه من دون الله خدایﷻ ووايه. ترمذي په خپل صحيح كتاب كي له عدي بن حاتم رضي الله عنه څخه روايت كړی دی چي عليه الصلوٰة والسلام ته ورغلم او زما په غاړه صليب و د سرو زرو عليه الصلوٰة والسلام ماته وويل وغورځوه دا بت له غاړي څخه. عدي وايي نو ما هم له غاړي څخه وكيښی. بل وخت چي زه ورغلم عليه الصلوٰة والسلام دا آيت ووايه "اتخذوا احبارهم ورهبانهم ارباباً من دون الله" ما ورته وويل موږ خو دوی رب نه بولو چي عبادت يې كوو؟ عليه الصلوٰة والسلام وويل چي آيا داسي نه ده چي دوی درته حرام وگرځوي يو شی چي خدای ﷻ حلال بللی وي تاسي هغه حرام گرځوئ او چي دوی درته حلال وبولي يو شی چي خدای ﷻ هغه شی حرام گڼلی وي تاسي يې حلال بولئ. فقلت بلی، هو! موږ خو داسي كوو يعني حرام د احبارو او رهبانو حرام بولو كه څه هم خدای ﷻ حلال كړي وي، او موږ حلال بولو هغه شی چي دوی يې موږ ته حلال وبولي كه څه هم خدای ﷻ حرام گڼلی وي. قال فتلك عبادتهم من دون الله، عبدالله بن المبارك رحمه الله وايي وهل يبدلون الدين الا الملوک واحبار سوء ورهبانها.

وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلَٰهًا وَاحِدًا

او دوی گرځوي رب عيسی بن مريم، ولي چي خدای يې بولي دوی او يا ابن الله اويا ثالث ثلثه يې بولي، او دوی نه دی امر سوي مگر نه په دې سره چي دوی به اطاعت كوي د يوه آله چي هغه الله ﷻ دی او د بل چا عبادت به نه كوي په عصيان كي د خدای ﷻ.

**پوښتنه:** په دې آيت كي خو اطاعت پر خدای ﷻ حصر كړل سو، او سره ددې چي پر موږ اطاعة الرسول ﷺ والخلفاء الراشدين رضي الله عنهم هم لازم دی؟

**ځواب:** دا خو په اطاعت كي د خدای ﷻ داخل دی، ولي خدای پاک موږ امر كړي

یو ددوی په اطاعت سره "وما آتی کم الرسول فخذوه الآیة" او علیه الصلوٰة والسلام
چي مورږ ده په اطاعت سره خدای پاک مامور کړو وایي "علیکم بسنتي وسنة الخلفاً
الراشدین، الحدیث. او بل ځواب دادی چي رسول او خلفاً راشدین خو موږ په
عصیان د خدای ﷻ نه امر کوي لکه د نصاری وو احبار او رهبان کمامر عنقریب.

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ سُبْحٰنَهٗ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝

نسته معبود بالحق بیله خدایه. دا جمله صفت ثانیه دی د الهاً یا استیناف
مقرر د توحید. او پاک دی خدای له هغه شیانو څخه چي دوی یې له خدای سره
شریکان بولي یعني هغه د خدای شریکان نه دي.

**یوه سه:** چي په حدیث صحیح کي راغلي دي ان محرم الحلال کمحلل الحرام"
یعني په تحقیق حرام گرځونکي د حلال شي داسي دي لکه حلال بلونکي د حرام
شي یعني په عقوبت کي او دواړه کفر هم دی. مثلاً که څوک ووایي او عقیده لري
چي شیدې حرامي دي داسي دی لکه یو څوک چي عقیده لري چي شراب حلال دي.

**فائده:** کلمه د ما په عما کي مصدریه ده ای سبحانه عن الشرک او که ما موصوله
سي نو عائد یې محذوف دی ای عما یشرکونه ای معه تعالی کمامر في الترجمة.

يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّطْفِـُٔوْا نُوْرَ اللّٰهِ بِاَفْوَاهِهِمْ وَيَاْبَى اللّٰهُ اِلَّآ اَنْ يُّتِمَّ نُوْرَهٗ
وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ۝

اراده لري کافران چي دوی مړ کړي نور د خدای ﷻ یعني حجت الهیه چي
دلالت پر وحدانیت د خدای کوي او پر پاک والي دده له شریک او ولد څخه. او یا
مراد له نور الله څخه قرآن دی یا نبوة د علیه الصلوٰة والسلام دی. په خولو ددوی
چي دوی به غلطي خبري او درواغ ویله په شان کي د قرآن چي شعر دی یا کهانت
دی او د علیه الصلوٰة والسلام په باره کي به یې ویل ساحر. کاهن. مفتر او
مجنون او خدای ﷻ ابی او منع کوي یعني لایرید مگر نه دا چي خپل نور به
پوره کوي یعني کمال ته به یې رسوي که قرآن دی او که نبوت د علیه الصلوٰة
والسلام دی. که څه هم مشرکانو دا اتمام مکروه وبلي.

**فائده**: په آيت کې اشاره ودې ته ده چې نور ظاهري د اهل الارض چې لمر او سپوږمی. ده که څوک وغواړي چې په پوه کلو به يې زه لپري کړم نو دا خو محاله خبره ده. داغه رنګه اطفاً د نور معنوي چې قرآن دی يا عليه الصلوٰة والسلام دی په کاذبو او ښځايه خبرو محاله ده.

هُوَ الَّذِىٓ اَرۡسَلَ رَسُوۡلَهٗ بِالۡهُدٰى وَدِيۡنِ الۡحَقِّ لِيُظۡهِرَهٗ عَلَى الدِّيۡنِ كُلِّهٖ ۙ

خدای پاک هغه ذات مقتدر دی چې استولی يې دی رسول خپل محمد ﷺ مراد له هدي څخه قرآن دی مبالغةً چې په هغه کې لارښونه ده يعني بيان د حق او باطل په عقائدو او عملياتو او په اقوالو کې كما في قوله تعالى "يا ايها الذين آمنوا لاتقولوا راعنا وقولوا انظرنا" او بيان د حلال او حرام او فرائض او واجبات وسائر الاحكام او له دين الحق څخه اسلام مراد دی.

**درويش وايي**: چې ددې آيت دوه تفسيره دي يو مروي دی له ابن عباس رضي الله عنهما څخه هغه وايي چې ضمير منصوب په ليظهره کې راجع دی الی رسول الله ﷺ. نو يې معنا داده چې خدای جل جلاله مطلع کړی رسول پر دين يعني پر شرائعو د اسلام تولو چې پوشيده به پر پرېدې پر عليه الصلوٰة والسلام هيڅ شی د دين اسلام له احکامو څخه. او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چې ضمير مذکور راجع دی ودين الحق ته. فالمعنى چې غالبه گرځوي دين الحق پر تولو اديانو يعني د اسلام په راتلو سره يې تول اديان منسوخ کړي.

**پوه سه**: چې الف ولام لپاره د جنس دی او کله يې تاکيد دی. او بعض الناس وايي په عبارت کې مضاف محذوف دی ای على اهل الاديان. بغوي او ضحاک له ابو هريره رضي الله عنه څخه وايي چې دا غلبه د اهل د دين حق پر اهل د تولو اديانو هلته ده چې عيسى عليه السلام له اسمانو څخه راکښته سي، نو په هغه وخت کې به د نړی تول خلگ په دين کې د اسلام داخل سي طوعاً وكرهاً. او په حديث مروي کې د ابو هريره رضي الله عنه راغلي دي چې عليه الصلوٰة والسلام وويل چې هلاک به سي په زمانه کې د عيسى عليه السلام تول ملتونه الا الاسلام. او څوک چې مضاف محذوف بولي هغه معنا هم صحيح ده په اعتبار د اغلب اوقاتو. او دا وعده هم خدای پاک پر ځای

کړې ده ولي چي د علیه الصلوٰة والسلام په زمانه کي چي ده مبارک هر ځای غزا کړې ده علیه الصلوٰة والسلام غالب راغلی دی، په بدر کي په درې سوه دیارلس کسه سره غالبه سو پر تخمیناً یو زر کافرانو باندي، او داغه رنګه پر بني نضیر او بني قریضه وو غالب راغلی، او د حنین او هوازن په غزا کي هم غالب سوی دی، او داغه رنګه په فتح کي د مکې، و په غزوة تبوک وغیرها من المشاهد.

**سوال**: په احد کي علیه الصلوٰة والسلام غالب نه سو بلکي اوویا کسه عمده مسلمانان شهیدان سوه؟

**ځواب**: د احد د غزا تفصیل چي تاس مطالعه کړئ کفار د مکې د ابو سفیان په مشر توب شکست وخوړی حتی چي یو صحابي ﷺ وایي چي ما ولیدلې د قریشو ښځي چي ابو سفیان په فوج کي راوستلي وې "یشتددن في الجبل رافعات ازرهن" ځغاستې په غره کي پورته کړي یې وې خپلي پایڅې لکن چونکه مسلمانان پر جمع کولو د غنیمتو سره تول سول او هغه اوویا (۷۰) کسه په مشری د عبدالله بن جبیر ﷺ چي علیه الصلوة والسلام ګمارلي وه او تاکیداً یې ورته ویلي وه چي تاسي به دا مرکز نه پریږدئ که موږ غالب سو او که مغلوب سو تر څو ما سړی نه وي دراستولی، هغو چي د کفارو شکست او د مسلمانانو غلبه یې ولیدل سره ناري یې کړې یا قوم الغنیمة، هر څه چي عبدالله ﷺ دوی منع کوله له پرې ښوولو څخه د مرکز خو دوی نه ومنل، نور ټول راشوه سوه څورلس کسه پاته سوه حتی چي خالد بن الولید چي په هغه وخت کي مسلمان سوی نه ؤ سره د دوو سوو کسو پر هغه دره راغلی او هغه څورلس کسه یې هورې شهیدان کړل او د جنګ اوضاع پر عکس سول.

**درویش وایي**: چي د ډېر پوره تفصیل د احد د غزا دمخه تېر سوی دی په دې تفسیر کي مطالعه یې کړئ، او داغه رنګه په زمانو کي د خلافت د خلفای راشدینو ﷺ خصوصاً په زمانه کي د عمر ﷺ د خلافت همېشه فتح او ظفر په غزواتو کي په برخه د مسلمانانو ؤ کما في کتب التواریخ الاسلامیة، لکن رفته رفته په مرور د زمانو د مسلمانانو صبر پر سختیو د غزواتو او همت او توکل

على الله يې مخ پر کمېدو سو، نو د کفارو که انګريزان دي که مشرکان د هند دي که يهودان د بيت المقدس دي او که امريکايان او که روسان دي غلبه يې شروع کړه چې ډېر دول الاسلاميه يې د مسلمانانو له لاسه وه ايستل چې ژوندي مثالونه يې خلګو ته معلوم دي بيان ته يې ضرورت نسته، او د مسلمانانو د مشرانو زړونه له محبت څخه د چوکۍ او د رياست ډک سوه حتی چې ده ته رياست او چوکی رسېږي که په زرهاؤ بې وزلي او بېچارې نر او ښځې او کوچنيان مري دی باک نه په کوي.

او داغه رنګه د همسايه مملکتو د مسلمانانو په منځ کي هم چشمې او باطني بدنيتي موجوده ده او د بل په مملکت کي لاس وهنه کوي تخريب کاري کوي، او داغه رنګه د مسلمانانو په زړو کي د ډالرو، پونډو او د کالدارو محبت تر ډېره حده پيدا سوی دی حتی چې له عوامو څخه يې وخواصو ته هم تجاوز کړی دی، نو په داسي ماحول کي به چېري مسلمانان د اسلام او يو والي بيرغ پورته کړي او غالبه به سي، او د خدای پاک وعده د نصر او فتح مشروط په شرط د کمال ايمان ده "وانتم الاعلون ان کنتم مؤمنين" ای مؤمنون حق الايمان والتوکل. په حديث شريف کي چې روايت يې مسلم کړی دی راغلي دي چې عائشه رضي الله عنها وايي "سمعت رسول الله ﷺ يقول لايذهب الليل والنهار" شپه او ورځ به نه سي ورکه يعني اسمانونه، لمر او سپوږمۍ به پر ځای پاته وي چې عبادت د لات او عزی به بيرته کېږي. عائشه رضي الله عنها وايي چې ما و عليه الصلوٰة والسلام ته وويل چي زما خو ګمان داؤ چې څه وخت چې دا آيت خدای ﷻ نازل کړی "هو الذي ارسل رسوله بالهدی ودين الحق ليظهره على الدين کله ولو کره المشرکون" چې دين اسلام پايه تکميل ته ورسېدی، نو عليه الصلوٰة والسلام راته وويل چې داغسي به وي ماشآ الله ثم يبعث الله ريحاً طيبة فتوفى من كان في قلبه مثقال خردل من ايمان فيبقى من لا خير فيه فيرجعون الى دين آبائهم يعني الشرک وعبادة اللات والعزی" او حسن بصري رحمه الله د مذکوره آيت داسي ترجمه کوي ليظهره على الدين کله بالحجج الظاهرة.

**درویش وايي:** چې دا کار جاري دی في الحالة الراهنة والله اعلم باحوال اهل الارض الآتية.

وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ۝

که څه هم دا حالت چې دین د علیه الصلوٰة والسلام دی غالب سي پر ټولو ادیانو مکروه بولي مشرکان. یعني ددوی دا غلبه نه ده خوښه لکن علی زعم انفسهم به دا کار کېږي.

**درویش وايي:** چې محمد بن ادریس الشافعي رحمه الله ددې آیت یو ډېر ښایسته او په زړه پوري تفسیر کړی دی. دی وايي لقد اظهر الله رسوله علی الادیان التي حوله ﷺ بان ابان لکل من سمع انه الحق وما خالفه باطل. وقال الشافعي رحمه الله بان جماع الکفر دینان دین اهل الکتاب ودین الامیین فقهر رسول الله ﷺ الامیین حتی دانوبالاسلام طوعاً وقتل اهل الکتاب وسبی حتی دان بعضهم بالاسلام واعطی بعضهم الجزیة صاغرین وجری علیهم حکمه ﷺ فهذا ظهور دینه علی الدین کله وهذه الآیة کالبیان لقوله تعالی ویأبا الله الا ان یتم نوره.

**درویش وايي:** چې پر دې تفسیر هیڅ سوال وجواب ته ضرورت نسته کما في التفسیر السابق کما علمت. وهذا التفسیر للشافعي رحمه الله حاصله ماقال بعض المفسرین لیظهر علی الادیان التي حوله ﷺ من مشرکی مکة ویهود المدینة ومن حولها فیغلبهم وکان کذالک.

د امام شافعي رحمه الله د قول لغات "حوله" یعني د علیه الصلوٰة والسلام شاوخوا من مشرکی مکة ویهود المدینة "ابان" چې خدای جل جلاله ښکاره کړه په دلائلو او معجزاتو سره "جماع الکفر" یعني ټوله کافران او اهل دین دوه قسمه دي "دین اهل الکتاب" یو دین دی د اهل کتابو چې یهود او نصاری دي "ودین الامیین" او بل دین د هغو کسانو چې هغه امیان وه یعني چې خط او کتابت یې نه وُزده وهم قریش مکة "فقهر" علیه الصلوٰة والسلام مغلوبه کړل امیین په فتح سره د مکې "دانوا" چې دوی دین داري مختاره کړه د اسلام په خپله خوښه سره چې د "عوطاً" تفسیر دی.

**پوه سه:** چې هغه بل قسم امیین چې طوعاً ایمان نه کړی قبول محذوف دی

يعني قتلهم هغه يې ووژل لکه ابو جهل سره د اوويا کسانو په بدر کې "وسبی"
يعني ښځې او اولادونه يې په مينځتوب او مريي توب نيولي بو تلل "حتی دان"
چې دين د اسلام مختاره کړي بعض اهل کتابو لکه عبدالله بن سلام او دده
قريبان ﷺ "الجزية" سري غم يعني د سرماليه لکه يهود د خيبر "صاغرين"
معنی ذليلين په ورکړه کې د جزيه "فهذا" دغه دی ظهور د دين د عليه الصلوٰة
والسلام پر ټولو دينو.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلْأَحْبَارِ وَٱلرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَٰلَ ٱلنَّاسِ بِٱلْبَٰطِلِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ۗ

اې هغه کسانو چې ايمان يې راوړی دی، ډېر له ملايانو څخه د اهل کتابو او ډېر
له صوفيانو څخه د نصاری وو، دوی خوړل د خلګو مالونه په باطله طريقه. يا خو
يې د خلګو پر احکامو رشوت غوښتی کقضاة الزمان الحاضر. که د قاضي شرعي
په نوم يادېږي او که جج په انګرېزي يادېږي چې دوی اګرچه صاحب الحق په مدعي
او مدعی کې پېژني لکن بېله رشو ته حق و حقدار ته نه ورکوي "ويصدون آه" او
منع کوي عوام خپل له لاري حق څخه د خدای چې دين حق د محمد ﷺ دی، دا
ورته وايي چې دی نبي موعود في التوراة في اخير الزمان نه دی او دوی و خپلو
عوامو ته هغه ددوی په لاس نوشته خرافات ورښکاره کوي يشترون بآيات الله
ثمناً قليلاً الا ساء مايشترون.

**پوه سه:** چې مذکور که څه هم په آيت کې اکل دی لکن مراد ځنې مطلق نفع ده
که اکل وي او که لبس وي او که رکوب وي الی غير ذالک من انواع النفع وخص
الاکل لانه اعظم منافع الاخذ. د بلاغتو څخه د زمخشري دي دا دوه شعرونه

قضات زماننا صاروا لصوصاً.......... عموماً في القضايا لاخصوصاً
نخاف منهموا لو صافحونا.......... للصوا من خوا ترها فصوصاً

ولهذا ورد في الحديث النبوي، قاضيان في النار وقاض في الجنة کمامر
تفصيله ومثاله، او د يهودانو ملايانو او د نصاری وو صوفيانو کلام التوراة
والانجيل ته تغيير ورکاوه او له خپله ځانه څخه يې شی نوشته کاوه ويقولون

هذا من عند الله، او دغه نعوت د آنحضرت ﷺ چي ددوی په کتابو کي وه دوی تغير ورکاوه خوفاً على ذهاب رياستهم على العوام وما يأخذون من العوام من الصدقات وغيرها لو بينوا حقيقة الامر وهو نبوة رسول الله ﷺ.

## وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ

او هغه کسان چي خزانه او جمع کوي سره زر او سپين زر.

**درويش وايي:** چي مظهري رحمه الله وايي چي ظاهره داده چي مراد په موصول سره احبار او رهبان دي آه، شايد دی په دې سبب دا وايي چي کلام په ذم کي ددوی ؤ نو په دې کي مبالغه په ذم کي ددوی چي سره د ماسبق في ذمهم من اخذ الرشوة وغيرها كمامر عن قريب وصفهم بالحرص على جمع الذهب والفضة آه، او حرص د دنيا د لويو جرائمو څخه دی ځکه پېښتانه وايي حب الدنيا سر د خطا، او يا مسلمانان مراد دي، ولې ذکر د مسلمانانو خو دمخه تېر سوی دی في الآيات السابقة، برسوي رحمه الله وايي چي حمل پر مسلمانانو انسب دی د وروسته آيت سره يعني ولاينفقونها آه، ولې چي متبادر له نفي څخه خو دادی چي دوی اهل د انفاق دي في سبيل الله وهم المسلمون دون الاحبار والرهبنا.

**تفريع:** نو پر دې تقدير د مسلمانانو زكوة خورو لوی ذم دی چي د احبارو او رهبانو سره يې يو ځای ذکر کړل.

**درويش وايي:** چي زما په نېز مختاره داده چي له موصول څخه دي معنا عام مراد وي، احبار او رهبان دي سر فهرست پکښي داخل وي واليه ذهب بعض المحققين.

**فائده:** کنز په لغت کي جمع ته وايي فالمعنى في الآية يجمعون ويحفظون الذهب والفضة خواه په مځکه کي ښخ کړي لکه د پخوا اخلگو به داغسي کول. او يا يې په بانک کي تحويل کړي يا سود پر اخلي يا نه، لکه په اوسني زمانه کي چي قائم مقام د سرو زرو نوټونه د امريکايانو ډالر دي يا نوټونه د کويت دي وغيرهما من الممالک او قائم مقام د سپينو زرو نوټونه د پاکستاني روپو دي يا د افغانستان د افغانيو دي وغيرهما.

**فائده**: ذهب چي ذهب بولي له دې سببه انه يذهب ولا يبقى مع المالك ابداً او سپين زر چي فضه بولي لانها تتفرق ولا تبقى.

**تفريع**: ددې ددو نقودو له نومانو څخه دا معلومه سوه چي دا دوه شيه بې بقا دي سري دي زړه نه پوري پيوندوي.

**وَلَا يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ**

او نه يې مصرف کوي په لاره کي د خدای ﷻ.

**پوښتنه**: ذهب او فضه خو دوه لفظه دي، نو ضمير د تثنيه يعني هما به بنه وای؟

**ځواب**: ضمير د مؤنث ضمير مفرد د مؤنث راجع و لفظ ته د ذهب او فضه نه دی بلکې ومعنا ته ددوی دوو دی يعني الدنانير والدراهم. او يا ضمير راجع دی وکنوز ته چي د کنز له لفظ څخه وفهمېدی.

**درويش وايي**: چي د آيت ظاهر خو دادی مافضل عن حاجة الشخص ينفق جميعاً في سبيل الله، والى هذا ذهب اوبوذر الغفاري رضي الله عنه لكن قوله متروک باجماع الصحابة رضي الله عنهم فلا بد من تقدير كلمة من التبعيضية ای لا ينفقون منها ای لا يؤدون زكاتها هذا ماذهب اليه صاحب روح البيان او دليل يې دادی چي په بل آيت کي داسي راغلي دي "خذ من اموالهم صدقة" ولې چي په دې صدقه سره خو زكات بالاجماع ثابت دی. او بل دليل يې دادی چي په صحيح حديث کي راغلي دي "في مائة دراهم خمسة دراهم. وفي عشرين مثقال من الذهب نصف مثقال" نو که واجب انفاق الکل وای. نو ددې تقدير په پينځه درهم به ۲۰۰ کي او نصف مثقال به په شل مثقال کي نو څه معنی به وای كذا في تفسير الحدادي. او صاحب د روح المعاني يې هم تفسير په زکوة سره کړی دی دليل يې دا ويلی دی چي دا آيت چي نازل سو پر اصحابو د عليه الصلوٰة والسلام سخت پرېوتل په دې سبب چي ظاهر خو يې انفاق الکل دی، نو عمر رضي الله عنه وويل چي ددې مشکل حل به زه درته وکړم، نو عمر رضي الله عنه و عليه الصلوٰة والسلام ته ورغلی فقال يا نبي الله كبر على اصحابک هذه الآية يعني چي ظاهر يې انفاق الکل دی. فقال عليه الصلوٰة والسلام ان الله لم يفرض الزكوة الا ليطيب مابقى من اموالكم روى هذا الحديث ابن عباس رضي الله عنهما او دغه رنګه طبراني

او بيهقي وغيرهما د ابن عمر ﷺ څخه روايت كړی دی قال قال رسول الله ﷺ ما ادی زكوته" هغه مال چي زكوة يې وركړل سي هغه مال كنز نه دی يعني هغه كنز چي وعيد پر راغلی دی يعني قوله تعالی والذين يكنزون آه" ولي وعيد خو پر هغه مال دی چي انفاق په لاره كي د خدای ﷻ نه ځني كېږي فيما امر الله به له دې څخه خو وسو يعني زكوة يې وركړل سو، نو له دې حديث څخه هم دا معلومېږي چي له انفاق في سبيل الله څخه زكوة مراد دی. او بعض علماء وايي چي انفاق الكل هغه واجب ؤ چي زكوة نه ؤ نازل سوی.

**درويش وايي:** چي وهو قول لا يعبأ به ولي چي دا قول خلاف دی له حديث څخه د ابن عباس عن عمر ﷺ الذي مر قريباً.

**سوال:** زكوة خو په نورو اموال ظاهره وو كي هم ؤ لكه عروض د تجارت، نو تحقيق د ذهب او فضه يې ولي وكړی؟

**ځواب:** ذهب او فضه ثمن د نورو شيانو دي ځكه عروض التجارة په ذهب او فضه سره اندازه كېږي، نو د هر يوه نصاب ته چي ورسېدی په هغه اندازه زكوة پكښي سته، او ذهب او فضه په نورو شيانو نه اندازه كېږي ولي چي دوی خپل نصاب لري.

**سوال:** زكوة خو په اوښانو، پسو وغيره كي هم سته او هغه هر يو خپل خپل نصاب لري او په ذهب اوفضه سره هم نه اندازه كېږي، فما وجه عدم ذكر زكوتها؟

**ځواب:** جمع كول او پټول خو د اموال باطنه وو كېږي چي ذهب او فضه دي دون الاموال الظاهرة كالابل والغنم، فلهذا خص كنز الذهب والفضة بالوعيد، او بله دا خبره ده چي اموال په ښارو كي ذهب او فضه دي فلذا ذكر حالهما فافهم.

**مسئله:** كه سړي سره زر او سپين زر دواړه درلوده او هر يو انفرداً خپل نصاب ته نه رسېدی، نو دواړه دي سره جمع كړي د زكوة لپاره لكن په ضم كي اختلاف دی، امام اعظم ﷫ وايي چي په قيمت دي سره ضم سي ياران وايي چي په اجزاؤ دي سره ضم سي، مثلاً يو سړي لس مثقاله سره زر درلوده او سل درهمه زكوة پر واجب دی اجماعاً بين الامام وصاحبيه لانهما بحسب الاجزا كل واحد منهما نصف نصابه فيؤدی نصف زكوة كل واحد منهما وكذا عشرة مثاقيل ذهب اذا قوم بالدراهم يبلغ

الی نصاب الدراهم فیضم مع المائة ویعطی زکوة الکل من الدراهم، او که څېرې یو سړي سل درهمه درلوده او پینځه مثال سره زر یې درلوده چي قیمت یې سل درهمه ؤ یا بالا یعتبر نصاب الفضة ویجب زکوتها عند ابی حنیفة رحمه الله دون صاحبیه رحمهما الله ولهذه المسائل امثال کثیرة في الفقة وهذا لیس موضع بیان تلک المسائل.

**درویش وایي:** چي افضله به دا وي چي انفاق عام دی که زکوة مفروضه وي که صدقه نافله وي او که نفقات واجبه وي لکه نفقه د مور او پلار چي عاجزه وي پر زوی باندي بلکي هر انفاق چي في سبیل الله او في طاعة الله وي لکه انفاق د ابن السبیل وغیره حتی علی زوجته واهل بیته من الاولاد، عن ابن مسعود رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ اذا انفق المسلم علی اهله وهو یحتسبها کانت له صدقة" متفق علیه، وعن ابي هریرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ یو دینار چي ته یې نفقه کړې في سبیل الله یعني یو مسکین ته یې ورکړې، او بل دینار چي نفقه یې کړې في رقبة یعني د یو مکاتب مریي په کتابت کي او بل دینار چي نه یې نفقه کړي پر خپل اهل او عیال باندي اعظمهما اجراً الذي انفقتها علی اهلک" هغه لوی دی له دغو دینارو څخه په ثواب کي د هغه دینار چي پر اهل دي نفقه کړی، مسلم

فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ

زېری ورکړئ ودوی ته په عذاب دردناک سره.

**بوه سه:** چي دا جمله خبر ده د موصول یعني والذین یکنزون آه وذکر البشارة تهکم بهم ودخول الفا لتضمن الموصول معنی الشرط کمامر مراراً.

**بوه سه:** چي مظهري رحمه الله ضمیر هم راجع بولي ودوارو فریقو ته یعني الذین یاکلون اموال الناس بالباطل کالاحبار والرهبان، او والذین یکنزون الذهب آه لکن که څه هم مظهري انفاق عام کړی ؤ فرضي کالزکوة او واجب النفقات او نفلي کالصدقات النفلیة لکن بشارت د عذاب الیم بنا پر ترک د فرضي زکوة دی، نو معنی د لاینفقونها الایة لاینفقونها اصلاً لا الفرضي ولاغیره، ولي چي ورکونکي د زکوة فرضي او د نورو تارک مستحق د بشارت د عذاب الیم نه دی وعلیه انعقد الاجماع ویدل علیه الاحادیث المتواترة المعنی، بغوي رحمه الله وایي

چي ابن عمر رضي الله عنه وايي چي زه په دې پاک نه کوم چي مالره په مثل د احد سره زر او ماته يې حساب معلوم وي او زکوة يې ورکوم يعني دې ته کنز الموعد عليه نه واي، او د علي بن ابي طالب رضي الله عنه څخه روايت دی چي صحيح کتابو هم راوړی دی وايي كل مال زاد علی اربعة الاف درهم فهي كنز اديت فيه الزكوة املا و مادونها نفقة، وقيل ما فضلت عن الحاجة كنز وعمل العلماً من قديم الزمان الى الآن بحديث ابن عمر رضي الله عنه الذي مر قريباً.

## يَوۡمَ يُحۡمٰى عَلَيۡهَا فِيۡ نَارِ جَهَنَّمَ

**يوه سه:** چي "يوم" منصوب دی ظرف د عذاب دی په هغه ورځ چي سخت تود والی راوستل سي پر دغو دراهمو او دنانيرو يا كنوز باندي، په اور کي د دوږخ نو يحمى چي مجهوله صيغه ده مسند ده و جار او مجرور ته يعني عليها في نار جهنم ظرف دی د يحمى، مظهري وايي اى ديخل النار فيوقد النار عليها.

**درويش وايي:** چي ترجمه د عليها د ضمير په دنانير وغيره كول لپاره د مراعات د تانيث او افراد دی کمامر.

## فَتُكۡوٰى بِهَا جِبَاهُهُمۡ وَجُنُوۡبُهُمۡ وَظُهُوۡرُهُمۡ

نو داغ کول په هغو تودو في نار جهنم دراهمو او دنانيرو سره تنديان ددوی او بغلونه ددوی او شاوي ددوی داغ کېږي، والمقصود في ذكر هذه الثلثة شمول الكية لابد انهم من جميع الجهات، بعض مفسرين تخصيص د دغو درو اعضاوو داسي بيان کړی دی چي زکوة خور غني بخيل ته يو فقير لپاره د زکوة راسي اول خو به غني بخيل تندی ورته تريو کړی که هغه فقير په طلب کي د زکوة ورته ټينګ سي چي په عربي يې الحاج بولي، باره بخيل بغل وروګرځوي مخ بلي خوا ته څني اړوي، او که نور هم په طلب د زکوة فقير وغني ته ټينګ سي بخيل څني ولاړ سي شا به وروګرځوي، او يا سبب د تخصيص يې دادی چي دغه درې اعضا اشرف د اعضا ظاهره وو دي چي تر تندي لاندي دماغ دی او تر بغلو لاندي زړه، هينه، سږی وغيرها دي، او تر شا لاندي د ملا لوی هډوکی دی چي حرام پکښي دي، او ددغو درو ځايو سونګ ټوله بدن ته شمول کوي والله اعلم.

## هٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنْفُسِكُمْ

دا هغه مال دی یعني ذهب او فضه چي تاسي جمع کړي او انفاق في سبیل الله مو نه ځني کاوه لپاره د نفع ستاسي د ځانو او هغه مال تاسي ته نن ضرر وګرځېدی حتی چي تکوی آه.

**پوه سه:** چي دا جمله حال ده په تقدیر د قول له ضمیر څخه د هم یعني مقولاً لهم هذا المال ما کنزتم آه مقصود په دې قول کي توبیخ دی ددوی.

## فَذُوقُوا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُونَ ﴿۳۵﴾

ملائکه به ورته وواېي چي اوس نو تاسي برداشتوئ بحذف المضاف یعني عذاب ماکنتم تکنزونه بحذف العائد الی الموصول، له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي مسلم په خپل صحیح کي راوړی دی قال رسول الله ﷺ ما من صاحب ذهب ولا فضة لا يؤدي حقها الا اذا كانت يوم القيامة صفحت له صفائح من النار فاحمي عليها في نار جهنم فتكوى بها جنبه وجبينه وظهره ردت اعيدت له في اليوم الذي كان مقداره خمسين الف سنة حتى يقضى بين العباد فيرى سبيله اما الى الجنة او الى النار

چي په دنیا کي یې حق نه وي ورکړی یعني الزکوة المفروضة والنفقة الواجبة رسول الله ﷺ وویل چي دغه ذهب او فضه به تختې سي د اور او په اور کي د جهنم به تودې سي، نو به داغ کول کېږي په هغو ګرمو تختو بغل دده او تندی دده او شا دده هر وخت چي دا تختې پای ته ورسېږي بیرته به یې د سره پر راوګرځوي په هغه ورځ کي چي مقدار یې پینځوس زره کاله دی، تر هغو پوري چي خدای پاک فیصله کوي په منځ کي د بندګانو، نو بیا به دغه سړیویني لار خپله یا وجنت ته یا و اور ته.

**درویش وایي:** چي دا حدیث ډېر اورېد دی په دې حدیث کي زکوة د اوښانو چي زکوة یې نه وي ورکړی په دنیا کي یې هم عذاب مذکور دی او د غویو او پسو چي زکوة یې په دنیا کي نه وي ورکړی د هغه مالک د عذاب بحث هم مذکور دی اختصاراً، درویش پرېښو له جهته د اکتفاً بما هو الاکثر وهو الذهب والفضة ولنعم ماقیل:

مردمان غافلند از عقبیٰ ........... همه گویا بخفتگان مانند
ضرر غفلتی که می ورزند ........... چون بمیرند آن گهی دانند
یکدرم کان دهی بدرویشی ........... بهتر از گنجهای مد خرائد
زانچه داری تمتعی بردار ........... کآن روزی دگر کسی دانند

**فائده**: پوه سه چي زکوة شکر د نعمت د مال دی. او لمونځ، روژه او حج شکر د نعمت د اعضاؤ د بدن دی، له دې سببه د څاښت لمونځ شکر دی د نعمت د درې سوه شپېته (۳۶۰) بندو د انسان په بدن کي.

**فائده**: د څاښت د لمانځه وخت متصل د لمر ختو سره نه دی، هغه ته صلوة الاشراق وايي، بلکې د څاښت د لمانځه وخت دا دی چي لمر بنه ډېر راپورته سي يعني نژدې د غرمې وخوا ته بالتجربة، مشائخ وايي که څوک د څاښت لمانځه ته دوام ورکړي په دې ډول چي په اول رکعت کي وروسته تر الحمدلله سورة والشمس والضحها ووايي، او په دويم رکعت کي وروسته تر الحمدالله سورة والليل اذا يغشى الخ ووايي وروسته کښېني او تر التحيات وروسته اللهم صل آه ووايي كما هو القانون الشرعي في جملة النوافل الرباعية، وروسته ولاړ سي دريم رکعت ته او سبحان اللهم آه ووايي كما هو الحكم في جميع النوافل الرباعية په دريم رکعت کي وروسته تر فاتحې والضحى آه ووايي، او په څلورم رکعت کي وروسته تر فاتحة الكتاب سورة الم نشرح آه ووايي نو خدای ﷻ به دده درې سوه شپېته مفاصل روغ رمټ وساتي، او که فقير وي خدای ﷻ بې غني کړي، فلا تترک ايها الاخ العزيز هذه الصلوة السهلة الكثيرة الاجرة ومن الله التوفيق.

**مسئله**: د زکوة په ورکړه کي افضل څوک د سړي خپل وروڼه دي چي اغنياً نه وي لانه لايجوز دفع الزكوة الى غني مطلقاً. وروسته افضل اکاګان دي بالشرط المذکور، وروسته بيا ماماګان دي وروسته بيا ذوی الارحام دي. وروسته بيا همسايه ګان دي وروسته بيا د محلې مسکينان دي، اهل ذمه وو ته زکوة نه دی روا، د غني سړي ماينې ته زکوة نه دی روا ولا زکوة للمزکی يعني چي پر سړي پخپله زکوة فرض وي يعني وغني ته د بل چا زکوة نه دی روا. او چي د سړي اولاد

وي كه بالذات وي او كه بالواسطه وي كه نر وي او كه ښځي زكوة نه دی ورته روا. او يوسړي ته چي د سړي مربی نه وي زكوة په دې سبب وركول چي دی به باره زما خدمت كوي دا زكوة لله نه دی ثواب نه لري كه څه هم د زكوة غاړي په خلاصېږي.

**درويش وايي**: چي د زكوة مسئلې او د مصارفو بيان يې بېځي ډېر دی چي ځاى يې د فقهي شريفي كتابونه دي، كه عوام غواړي چي پښتو خط ويلاى سي ځانونه په دې ټولو مسئلو خبر كړي لكه د لمانځه، نكاح، روژې او د حج مسئلې نو دي درې مجلده قدوري چي درويش په پښتو وطني ژبه ترجمه كړې ده او درې جلده نور الايضاح چي هم په پښتو ده او شروط الصلوة چي هم په پښتو دی، او كه د عقائدو په ځانگه كي معلومات غواړي، نو نور الظلم پښتو او ابو المنتهى پښتو چي دا ټوله كتابونه كورني استاذان دي د نر او ښځي لپاره صرف چي پښتو خط ويلاى سي، نو كه څوک غواړي چي بنه ځان پوه كړي نو دغه كتابونه دي مطالعه كړي، او زما ددې ټولو كتابو د رانيولو مركز مكتبة القراءة كاسي روډ د قاري فضل الحق صاحب او د قاري حبيب الحق په نامه او كه د قرآن مبارک ترجمه په پښتو مورني ژبه څوک غواړي هم په نومړې مكتبه كي دستياب كېږي والله الموفق والمعين.

إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِندَ اللَّهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِي كِتَابِ اللَّهِ

په تحقيق شمېر د مياشتو چي په شريعت كي اعتبار لري لكه حج او روژه په نېز د خداى ﷻ دوولس مياشتي دي په كتاب كي د خداى ﷻ، يعني په لوح محفوظ كي او يا په حكم كي د خداى ﷻ "في كتاب الله" د "اثنى عشر" صفت دی.

**درويش وايي**: چي ما د شريعت قيد ووايه سبب يې دادی چي شهر دوه قسمه دی شهر قمري چي سپوږمۍ اول پر اسمان وليدل سوه بيا تر بلې پلا تر ليدلو پوري، نو دوولس دغه مياشتي چي تېري سي هغه ته قمري كال وايي مبنى د شرعي د كارو پر دغو مياشتو ده، او سنه د هجرت نبوي ﷺ ومدينې ته چي هم دا اوس سنه ۱۴۲۸ هـ ده هم دغه قمري كلونه دي، او بل شمسي مياشتي بولي چي منطقة البروج چي پر دوولس متساوي ووېشې هغه ته بروج وايي، نو چي لمر له يوه برج څخه وبل برج ته وزي يوه شمسي مياشت پوره كېږي، د مياشتو نومان

يې حمل، ثور جوزا، سرطان وغيره دي او چې دوولس شمسي مياشتي تېري سي، نو يو شمسي كال پوره كېږي، او تفاوت د شمسي او قمري كال نهه ورځي او يوه ربع يوم دی يعني شمسي كال تر قمري كال بالا دی يعني قمري كال په مذكوره اندازه دمخه تر شمسي كال پوره كېږي والتفصيل في كتب الرياضي.

يَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ

له هغه ورځي خدای ﷻ پيدا كړه اسمانونه او مځكه. والحاصل ان المعتبر عند الله للصوم والحج والزكوة تلك الاشهر الهلالية چي مبلغ يې خدای پاک دوولس وښوول لامزيد عليها. يوه په هغو كي د روژې مياشت ده چي د رمضان د روژې مياشت ورته ويل كېږي او درې مياشتي تخميناً وتقريباً د حج لپاره دي چي شوال او ذوالعقدة او لس ورځي د ذوالحجة دي.

**فائده:** د عربي هلالي مياشتو نومان دادي (۱) محرم يعني حسن حسين مياشت (۲) صفر (۳) ربيع الاول چي د پسرلي اوله مياشت ده (۴) ربيع الثاني (۵) جمادی الاول (۶) جمادی الثاني (۷) رجب (۸) شعبان (۹) رمضان (۱۰) شوال (۱۱) ذوالقعدة (۱۲) ذوالحجة. دوولس مياشتي پوره سوې او په پښتو نومانو يې هر پښتون خبر دی.

**يوه سه:** چي د زكوة لپاره دوولس مياشتي وخت دی په شرع شريفه كي كه څه هم افضله مياشت يې د روژې ده لان لفضيلة الوقت تاثير في فضيلة العبادة ولهذا جعل الله ﷻ عبادة ليلة القدر خير من عبادة الف شهر وهكذا الايام مثل يوم الجمعة سيد الايام.

مِنْهَآ أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ

د دغو دوولسو مياشتو څخه څلور اشهر حرم بولي په دې سبب چي په دې مياشتو كي ابتداً د قتال د كفارو سره حرام دی. د ابتداً قيد يې ددې لپاره ووايه كه چېري كفار په دغو مياشتو كي شروع وكړي مسلمانانو ته يې مدافعت او جنګ روا دی، په دې څلورو مياشتو كي يوه د رجب مياشت ده چي په پښتو يې د خدای تعالی مياشت بولي او عرب ودې ته فرد وايي، او ذوالقعدة چي په پښتو

یې میاشتې بولي، او ذوالحجة چې په پښتو یې د لوی اختر میاشت بولي، او بله محرم چې په پښتو یې د حسن حسین میاشت بولي لشهادتهما رضي الله عنهما فیه، او عرب و دې درو میاشتو ته سرد وایي یعني پرله پسې.

## ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ

یعني دغه اعتبار د اشهر هلالیه وو او دا چې دا میاشتې دوولس دي لا اقل ولا اکثر، دا دین مستقیم دی ملة ابرهیم حنیفاً. یعني په دې کې کمبود او بالابود په عباداتو مقرره وو کې په ددولسو میاشتو کې نه دی روا لکه نصاری وو چې د روژې میاشت چې په دوبې کې راغله دوی شل روژې پر بالا کړې پینځوس یې کړې لکن پسرلي ته یې واړول.

## فَلَا تَظْلِمُوْا فِيْهِنَّ اَنْفُسَكُمْ

تاسي ظلم مه کوئ پر ځانو خپل.

**پوه سه**: چې بعض مفسرین وایي چې ضمیر د "فیهن" راجع دی و ټولو میاشتو ته د کال یعني لاتفعلوا المعصیة في شئ منها فانها ظلم علی نفسه لکن مظهري وایي چې ظاهره داده چې ضمیر د "فیهن" راجع دی واشهر الحرم ته لقربها او کلمه د فا التفریعیة هم تقاضی د تفریع پر قریب کوي فان النهي عن الظلم متفرع علی کونها محرمة. فالمراد بالظلم هتک حرمتها والقتال فیها.

**درویش وایي**: چې د مظهري رحمه الله ددې عبارت څخه دا معلومیږي چې حرمت د اشهر الحرم او منع د قتال فیها اوس پر ځای بولي لکن روح البیان او روح المعاني وایي والجمهور ان حرمة القتال فیهن منسوخة.

**سوال**: نو جمهور ددې آیت ترجمه څرنګه کوي؟

**ځواب**: دوی له ظلم څخه ارتکاب د معاصیو په دې درې څلورو میاشتو مراد بولي.

**سوال**: ارتکاب د معاصیو په ټولو میاشتو کې ظلم دی پر ځان، نو د تخصیص ددې میاشتو څه سبب دی؟

**ځواب**: نعم! لکن ارتکاب د معاصیو په دې څلورو میاشتو کې اعظم دی از روی ګناه تر نورو میاشتو.

**سوال:** ددې مثال چي گناه بعض وخت اعظم وي تر بل وخت په شرع شريفه کي شته؟

**خواب:** هو! ارتکاب د معاصيو په حرم کي يا په حال کي د احرام اعظم وزر دی تر گناه په غير حرم کي يا په غير کي د حال احرام. والحاصل ان هذه الآية مسوقة لبيان ان الظلم فيها اغلظ من غيرها کانه قيل فلا تظلموا فيهن خصوصاً علی انفسکم لان الوزر والمعاصي فيها اعظم خطراً من غيرها کما في الحرم وحالة الاحرام.

**درويش وايي:** والی هذا اشار قتادة رحمه الله بقوله العمل الصالح فيها اعظم اجراً يعني في الاشهر الحرم والظلم فيهن اعظم عقوبة فيما سواهن وان کان الظلم علی کل حال عظيماً انتهی.

**درويش وايي:** چي مظهري رحمه الله قال ماقال بالظلم هتک حرمتها والقتال فيها يعني منسوخ يې نه بولي علی خلاف الجماهير، وروسته يې د قتاده رحمه الله قول هم راوړی دی چي دال پر دې دی چي له ظلم څخه نفس گناه مراد ده. فجمع المظهري بين الضب والنون يعني سمساره او ماهی چي ددې جمع محاله ده والله سبحانه تعالی اعلم بمراده في کتابه.

**پوښتنه:** ستا شخصي رايه په دې اختلافي تفسير کي د آيت مذکوره څه ده؟

**خواب:** ستا سوال خو پر ځای دی لکن درويش نه ځان مجتهد په مسائلو کي بولي او نه ځان له اصحاب الترجيح څخه گڼي. بيا هم تفسير د روح البيان په زړه پوري او زيبا دی، او روح المعاني ورسره شريک دي په دې تفسير کي په څو وجهو

(۱) په تفسير کي د روح البيان ددې آيت لپاره هيڅ تعارض نشته او په تفسير کي د مظهري تعارض شته کمامر آنفاً.

(۲) صاحب د روح البيان مولنا ومولی الروم الشيخ اسماعيل حقي بروسوي اعلی کعباً دی او اغرز علماً دی تر مظهري المرحوم ثنا الله پاني پتي رحمه الله کما يظهر من مطالعة تفسيريهما.

(۳) صاحب د روح البيان پابند د مذهب حنيفي دی من اوله الی اخيره بخلاف المظهري فانه قد يميل الی مذهب الشافعي رحمه الله فيما يقتضيه الاحاديث المروية بظنه.

(۴) روح البیان د امام اعظم رحمه الله د مذهب د دلائلو جواب نه ورکوي بخلاف المظهري فانه قد يجيب عن دلائل المذهب الحنيفي في الأحاديث الشريفة.

**سوال:** په روح البیان کې ګاهي داسي غرائب راځي چې د منلو وړ نه وي؟

**جواب:** هغه غرائب چې روح البیان يې ذکر کوي هغه پر سبيله د فرض دي او صرف لپاره د تمثيل دي او بل دا چې ورته غرائب خو په تفسير مظهري کې هم ستهٔ کمامر چې يوه قصه چې مظهري رحمه الله کړې وه او روح المعاني په شدت سره رد کړې وه.

(۵) روح البيان که په خط د تفسير مظهري د کتاب نوشته سي تخميناً د پرش جلده لکه مجلدات د تفسير مظهري به څندي جوړ سي، وما هذا الا لمزيد التحقيقات العلمية الفقهية والتدقيقات التصوفية في روح البيان.

**وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً كَمَا يُقَاتِلُونَكُمْ كَافَّةً ۚ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ ۝**

او جنګ يعني جهاد کوئ اې مؤمنانو د مشرکانو سره ټول يعني له يوه مخه لکه دوی چې جنګ کوي ستاسي سره له يوه مخه، او پوه سئ چې خدای پاک معاون دی د متقينو، نو معنا د معية معاونت دی او يا معيت بلا کيف دی، نو پر دې تقدير زيري دی د مسلمانانو په کمال قرب سره د باري عزوجل او ضمانت د کومک په سبب د تقوی قاله البيضاوي رحمه الله.

**درويش وايي:** چې مظهري له بغوي رحمه الله څخه نقل کړی دی چې د علماؤ اختلاف دی په حرمت کې د قتال په اشهر الحرم کې، بعض وايي چې ګناه ده په اشهر حرم کې ګناه کبيره وه او بيا يې حرمت منسوخ سو په دې آيت "وقاتلوا المشركين ۞" فالمعنى عند هؤلاء قاتلوا المشركين په اشهر حرمو کې او په نورو مياشتو وهو قول قتادة وعطاء الخراساني والزهري والسفيان الثوري والجمهور كما نقلنا عن روح البيان وروح المعاني رحمهما الله قبل هذا. دليل يې دا دی چې نبي کريم ﷺ د هوازنو غزا وکړه په حنين کې او د ثقيف غزا يې وکړه په طائف کې وحاصرهم في شوال من اشهر الحرم. وبعض ذی القعدة وهو ايضاً من الشهر الحرم انتهى قول البغوي رحمه الله. مظهري رحمه الله وايي وانت خبير بان قاتلوا

المشركين اه لايصلح ناسخاً لقوله تعالى منها اربعة حرم الآية لانه متصل به ولا بد في النسخ من التراخي.

**درویش وایي:** چي دا دوه آیت که څه هم په نظم کي د کلام سره متصل دي لکن په نزول کي به وقاتلوا آه وروسته وي عند هؤلاء الجماهير والمذكورين من العلماء المتبحرين والمفسرين المعتبرين كيف والاتصال في النظم لا يقتضي الاتصال في النزول كيف وفي قوله تعالى كك "وكلوا واشربوا حتى تبين لكم الخيط الابيض من الخيط الاسود من الفجر" فان قوله من الفجر متصل بما قبله في نظم القرآن ومتراخ عنه في النزول لکه دده قصه چي بخاري وغیره په تفصیل سره بیان کړي ده، چي صحابه کرامو ﷺ به روژه نیوله نو چا به سپین تار چا به تور تار تر پښه غوټه کړی او چا به تر بالښت لاندي کړی، او تر هغو به یې خوراک او څښاک کاوه چي د دغو دوو تارو تمیز په ورته کېدی، لکن چونکه دېره رڼا به سوه، نو خلګو په دې باره کي علیه الصلوٰة والسلام ته شکایت وکړی، نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي د خیط الابیض او خیط الاسود څخه مراد هغه نه دی چي تاسي فهمولی ؤ، بلکې بیضا الصبح مع غبش الليل فنزل قوله تعالى بعده من الفجر بياناً للخيط الابيض واكتفاً به من بيان الخيط الاسود، او بل دلیل مظهري رحمه الله دا ویلی دی ولانه في قوله قاتلوا المشركين كافة "لا عموم له من حيث الزمان حتى يصلح ناسخاً للحرمة الزمانية.

**درویش وایي:** چي که څه هم په آیت مذکوره کي لفظ د في اي زمان نسته لكنه مفهوم منها عرفاً ومتبادر عنها كما لا يخفى والحمل على المتعارف المتبادر لازم عند كافة العلماء، او بیا مظهري رحمه الله والتقدير بقوله فيهن وفي غيرهن لا دليل عليه.

**درویش وایي:** چي مقصود د هغو کسانو چي وایي فیهن وغیرهن تقدير عبارة القرآن نه دی كما فهمه المظهري رحمه الله بل بيان مفهومه المتبادر كما قلنا سابقاً، بیا مظهري رحمه الله ویلي دي لو صح حديث القتال في ذی القعدة فحديث الآحاد لايصلح ناسخاً للكتاب آه.

**درویش وایي:** چي جمهور او نوموړي علماء رحمهم الله دعوه دده نه کوي چي ناسخ

د حرمت د اشهر حرم دا حدیث دی، بلکې د دوی په نیز ناسخ قوله تعالی دی "وقاتلوا الخ" او حدیث مذکوره صرف د تائید لپاره دی، وروسته مظهري رحمه الله دا پر تفریع کړې ده فالصحیح ماقال الآخرون انه غیر منسوخ. او ده ویلي دي چې ابن جریج رحمه الله وایي چې قسم بالله واخستې عطا بن ابي رباح رحمه الله پر دې "مایحل للناس ان یغزوا في الحرم ولا في الاشهر الحرم الحدیث" درویش وایي دا خو هم خبر واحد دی، نو رافع د عموم د قوله تعالی "وقاتلوا المشرکین کافة" څرنګه کېدای سي، دا وه دلائل د مظهري رحمه الله پر قول د بعض چې حرمت د اشهر حرم منسوخ نه بولي. او دا وه جوابات د عبد عاصي له جانبه د جمهورو او محققینو رحمهم الله له خوا وما توفیقي الا بالله، حرره هذه الاسطر في وقت الضحی من یوم السبت اخیر الیوم من شر رمضان سنه۱۴۲۸ھ ق.

## اِنَّمَا النَّسِیٓءُ

دا مصدر دی د نساه ای اخره کالسعیر والحریق، وفي روح المعاني او النسیٔ کالنهي والنسئ کالبدء والنسا کالندا هم راغلی دی، او تهوله مصدرونه دي کالنسیٔ، او بعض مفسرین وایي چې نسیٔ صفت دی لکه قتیل او جریح. لکن مصدر یې په مختاره دی لانه لایحتاج الی تقدیر بخلاف ما اذا کان صفة، ولې چې اخبار په زیادت سره نه دی پر روا الا بتقدیر مضاف ای انما نسا النسیٔ زیادة، روح المعاني وایي چې مذکورة الاوزان سره قرائت په قرآن کي ثابت دی.

**پوه سه**: چې حسین کاشفي رحمه الله په تفسیر حسیني کي وایي. که طباع اهل جاهلیت بقتل وغارت مستانس شده بود، ودر ماههای حرام قتال وغارت نمیکردند وچون سه ماه حرام متصل بود به تنگ می آمدند پس میگفتند که ما سه ماه پی درپی بې تاراج وغارت تحمل نداریم پس قلمش نامی کنانی صورتی بر انگیخت ودرموسم حج ندا کرد واستاده شد وخطبه خواند یامعشر العرب خدای جل جلاله شما را درین محرم حلال گردانید وحرمت اورا تاخیر کرد به ماه صفر مردمان قول اورا قبول کردند پس درین محرم بغارت گری مشغول شدند ودر ماه صفر او غارت گری امتناع ورزیدند، باز سال دیگر میگفت وندا از هرسال چهار ماه

حرام می دانستند، اما اختصاص اشهر حرم فرو گذرشته ای صرف مراعات عدد اختیار گردندی، واین عمل را نسیئ گفتندی حق تعالی فرمود انما النسئ آه.

حاصل دادی چي عرب د جاهلیت په قول د قلمش صرف د څلورو میاشتو په حرمت په کال کي قائل وه لکن په خصوص د اشهر حرم یعني ذوالقعدة، ذوالحجة، محرم او رجب نه وه قائل. مطلب یې په دې کي دا ؤ چي په هره میاشت کي ددې څلورو میاشو چي ددوی به پر غارت او تاړاک او قتال چم جوړ سو د هغې میاشتي حرمت به یې وبلي میاشتیته واړاوه او په هغه میاشت کي به یې خپله غارت گري کوله.

**پوه سه:** چي بغوي په نقل د مظهري رحمهما الله تعالی وایي چي عربو په وخت کي د جاهلیت عقیده د تحریم د اشهر حرم درلوده، دوی دا د ابراهیم ﷺ ملت باله، نو دوې درې میاشتي پرله پسې تحریم سخت واقع کېدی، نو دوی به تحریم د یوې میاشتي څخه وبلي میاشتي ته اړاوه مثلاً له محرم څخه به یې وصفري ته اړاوه، نو په محرم کي به یې خپله غارت گري کوله، او که به یې بیا ضرورت غارت گری ته پیدا سو، له صفري څخه به یې ربیع الاول ته اړاوه، وهکذا شهر بعد شهر حتی استدار التحریم علی السنة کلها، نو وروسته چي اسلام او دین د علیه الصلوة والسلام منځ ته راغلی، نو تحریم بیرته ومحرم ته ورسېدی یعني کما وضعه الله ﷻ وذالک الرجوع بعد دهر طویل فخطب النبي ﷺ في حجة الوداع کما روی البخاري ومسلم عن ابی بکر ﷺ چي علیه الصلوة والسلام خطبه وویل د لوی اختر په ورځ وقال ان الزمان قد استدار کهیئة یوم خلق السموات والارض السنة اثنا عشر شهراً، منها اربعة حرم ثلث متوالیات ذوالقعدة وذوالحجة والمحرم، ورجب مضر الذي بین الجمادي (یعني جمادی الثاني) وشعبان الی اخیر الحدیث الطویل.

**پوه سه:** چي د رجب اضافت یې مضر ته وکړی چي د یو قوم نوم دی لغایة تعظیمهم لذالک الشهر یعني رجب.

## زِيَادَةٌ فِي الْكُفْرِ

یعني دا زیادت په کفر کي، ولي دوی خو کافران وه نسیئ یې بل کفر ورضم کړی، ولي چي تحریم د ما احل الله او یا تحلیل د ماحرمه الله کفر اخر زائد علی کفرهم.

يُضَلُّ بِهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُحِلُّوْنَهٗ عَامًا وَّيُحَرِّمُوْنَهٗ عَامًا لِّيُوَاطِـُٔوْا

دوی گمراه کوي په دغه نسیئ سره کسان چې کافران دي یعنې کفر یې نور ورزیاتوي، ورته حلالوي دوی یوه میاشت لکه محرم یو کال چې تحریم یې وصفري ته نقل کوي لاجل الغارات في المحرم او حرام بولي دوی یوه میاشت لکه مثلاً ربیع الاول او یا بیر ته صفره للغرض المذکور.

**پوه سه**: چې ضمیر د یحلونه وتحرمونه راجع دی وشهر ته چې له نسیئ څخه وفهمېده لان النسیئ لم یکن الا في الشهر، او جمله د "یحلونه آه" تفسیر د ضلال دی "لیواطئوا" متعلق دی په "یحرمونه" پوري یا په دواړو فعلینو سره یعنې دا کار چې دوی کوي فقط غرض یې دادی چې موافقت وکړي المواطات الموافقة.

عِدَّةَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ فَيُحِلُّوْا مَا حَرَّمَ اللّٰهُ

د عدت او حساب سره د ماحرم الله چې څلور میاشتې حرم دي، یعنې صرف دوی حساب د څلورو میاشتو پوره کوی من غیر خصوصیة الاشهر المحرمة. نو دوی حلالوي هغه میاشت چې خدای ﷻ حرام کړې ده کالمحرم بنقل حرمتها الی صفر، ولې چې زیات نه سي عدد د اشهر الحرم پر څلور.

زُيِّنَ لَهُمْ سُوْٓءُ اَعْمَالِهِمْ

ښائسته کړل سوي ودوی ته بد د عملو چې تحلیل الحرام دی وبالعکس، ابن عباس رضی الله عنه وایي چې مراد دادی چې شیطان ودوی ته دا بد عمل ښه ښکاره کوي فحسبوا انهم یحسنون صنعاً.

**درویش وایي**: چې موږ مسلمانانو ته شیطان یوه عقیده یا فعل ښائسته کوي لکه معتزله وو ته اعتزال وسائر فرق الضلال یا شرب الخمر وبعض مسلمانانو ته وغیره.

وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ

او خدای ﷻ هدایت نه کوي و هغه قوم ته چې کافران وي یعنې هدایة موصلة الی المطلوب لاختیارهم العمي عن الهدی.

**درویش وایي**: چې دا خو د جاهلیت د زمانې د مشرکانو حال ؤ، راسئ چې اوس

د امت مرحومه د مسلمانانو پر حال رنا واچوو، د رمضان المبارک فضیلت چي مخصوص په دې امت پوري دی لیلاً ونهاراً ددې میاشتي مبارکي په شپه کي عوام څه کوي او د ورځي عوام څه کوي، عوام خو د ورځي د هیڅ منهي عنه له غیبت او پوچ وفحش څخه پرهېز نه کوي حتی چي داسي کلمات یې شیطان تر خوله باسي چي موجب د کفر وي، خیر ورځ خو تېره سي چي ماښام سي روژه مات وکړي او د ماخستن د لمانځه او د تراویح وخت داخل سي، بعض عوام خو له تراویحو سره هیڅ علاقه نه لري، حتی زموږ د محل یو پر مخ ګرځېدلی سړی ځما پوښتنه ځندي وکړه چي د ختم تراویح کوې (چي په اکثره مساجدو کي اداً کېږي) او که د الم ترکیف تراویح کوې؟ ده راته وویل چي والله که یو قسم لا کوم، اوبعض مسلمانان چي د تراویح سره محبت او علاقه لري پوښتنه کوي چي په کوم مسجد یا جامع مسجد کي د الم ترکیف تراویح کېږي او هغه په ډېره چټکۍ سره هلته تراویح وکړي، د لمانځه وروسته د کور ژوندی سینما یعني تي وي ته کښېني یا تر هغه افحش سینما چي دش یې بولي، یا پټي کوي د پېشلمي تر وخته پوري، پېشلمی چي وکړي بعض عوام سمدستي بیده سي او د سهار لمونځ قضا کړي پوخ ځاښت راکښېني مخ پرې مینځي بازار ته روان سي، او چي لږ له خدایه بېرېږي هغه لږ انتظار د سهار د آذان وکړي چي اذان وسي د سهار لمونځ وکړي او بیده سي یعني د سهار جماعت ځني فوت سي. دا خو د عوامو حال ؤ، اوس به د بعض ملایانو او د جامع مسجد د امامانو د مدرسانو پر حال رنا واچوو، په روژه کي بعض ملایان دا عادت درلودی چي پېشلمی به یې وکړی، د سهار اذان ته به په انتظار ؤ چي څرنګه به د سهار اذان وسو، نو بالفور تر سنتو وروسته په غلس کي به یې د سهار لمونځ وکړی او په حجره به ننوتی او بیده به سو تر پاخه ځاښته پوري، دې ملا صاحب د درو امورو څخه د شریعت مخالفت وکړی، یو له مذهب حنیفي څخه چي اسفار بالفجر مندوب بولي، او بل له حدیث نبوي څخه "اسفروا بالفجر فانه اعظم للاجر" والحدیث صحیح علی شرط الشیخین البخاري والمسلم او بل متصل د سهار د لمانځه سره خوب کول

چې نه د علیه الصلوٰة والسلام او نه د صحابه کرامو ﷺ او نه د ائمة اربعه رحمهم الله څخه منقول دی بلکې په حدیث صحیح کې ثابته ده علیه الصلوٰة والسلام وایي چې که چاه سهار لمونځ وکړی او هورې کېښېنستی په تسبیح او ذکر یې ځان اخسته کړی الی ان طلع الشمس قدر رمح او رمحین ثم صلی رکعتین یعني صلوة الاشراق کان له اجرة عمرة. وفي روایة اجر حجة عمرة تامة تامة او کما قال رسول الله ﷺ. او دا متصل خوب مکروه بالاجماع دی. ومواضع العذر مستثناً کالمریض وغیره.

**سوال:** په صحیح حدیث کې راغلي دي چې علیه الصلوٰة والسلام د سهار لمونځ په غلس کې کاوه؟

فقیه ابو جعفر الطحاوي رحمه الله چې هم لوی محدث دی بالاجماع او هم اعلم الناس بمذهب ابی حنیفة رحمه الله مثل سوی دی په شرح کې د معاني الآثار په جمع کې د حدیث قولي د علیه الصلوٰة والسلام اعني کمامر أسفروا بالفجر فانه اعظم للاجر. او د حدیث فعلي د علیه الصلوٰة والسلام یعني چې د سهار لمونځ یې په غلس کې کاوه داسې وایي چې علیه الصلوٰة والسلام د سهار لمونځ په غلس کې شروع کاوه او په تطویل او ترتیل د قرائت یې اسفار ته رارساوه. او دا مذکور ملایان خو یې په غلس کې شروع کوي او په غلس کې یې تماموي.

**درویش وایي:** چې مع قطع النظر عن جمع الطحاوي دا ملایان صاحبان بیله روژې د میاشتې ولې د سهار لمونځ په غلس کې نه کوي.

د وروسته آیتو شان نزول: درویش وایي چې د دې آیتو په شان نزول کې اختلاف دی. لکن صحیح شان نزول دادی چې هغه آیت چې نازل سو یا ایها الذین آمنوا قاتلوا الذین یلونکم من الکفار ولیجدوا فیکم غلظة. نو علیه الصلوٰة والسلام قصد وکړی د رومیانو د قتال لانهم اقرب الناس الیه و اولی بالدعوة الی الاسلام لقربهم الی الاسلام "لتجدن اقربهم مودة للاسلام الذین قالوا انا نصاری الخ" نو بغوي رحمه الله وایي چې علیه الصلوٰة والسلام چې د طائف له غزا څخه راستون سو امر بالجهاد والغزو مع الروم چې دې ته د تبوک غزا وایي. لکن دا غزا په

داسي زمانه کي وه چي مسلمانان په ډېري سختی کي وه د نفقې له خوا، او سختي ګرمي او دوبی ؤ او په ټولو ښارو کي قحط د باران مسلط ؤ، او په عین دغه وخت کي د مدینې میوې یعني خورما هم رسېدلې وه او د مدینې په باغو کي ښې سایې او راحت ؤ، او مسلمانانو ته په داسي وخت کي د ګرمی قتال ګران پرېوتی، او علیه الصلوٰة والسلام چي په نورو غزاؤ ته تلی ځان به یې پټ ساتی او توریه به یې کوله له هغې غزا څخه په بلې غزا مګر نه په غزوه کي د تبوک، ولي علیه الصلوٰة والسلام صراحةً خلګو ته وویل چي زه د تبوک جنګ ته ځم تاسي مسلمانان ودې سختي غزا ته ځانونه اراسته کړئ، ولي یو خو د تبوک سفر بېخي ډېر لېري ؤ، او بل زمانه د سختی وه کمامر، او بل په مقابل کي یې لوی دښمن ؤ د رومیانو، چي په یوه روایت کي راغلي دي چي یو لک شاکی السلاح فوج د رومیانو وو تاچي مسلمانان په کامله وجه او نفقه او سلاح ددوی وجنګ ته تیار سي، او علیه الصلوٰة والسلام دعوت ورکړی ومن حوله من احیآ العرب للخروج الی تلک الغزوة فجمع بشر کثیر او مکې ته یې هم د تیارسئ پېغام واستاوه لکن له خروج څخه د جنګ د رومیانو یې ډډه وکړه ټولو منافقانو، او له بعضو صادق مسلمانانو څخه هم تقصیر وسو او له خروج څخه یې تکاسل مختار کړی کما سیأتي تفصیله ان شآ الله تعالی فانزل الله فیهم هذه الآیات.

## یٰۤاَیُّهَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا

اې هغه کسانو چي ایمان یې راوړی، بعض مفسرین وایي چي دا خطاب دی و مقصرین ته یعني صادق مسلمانان چي ځانونه یې اچولي وه، او بعض مفسرین وایي چي منافقینو ته هم دی لانهم آمنوا بافواههم وان لم تؤمنوا بقلوبهم.

**درویش وایي**: چي روح البیان ددې آیتو په شان نزول کي داسي وایي دا شروع په بیان کي د غزوه تبوک، او تبوک د یو ځای نوم دی په منځ کي د شام او د مدینې، او دې غزا ته العسرة هم وایي لـامر انها وقعت في غایة عسرة للمومنین، او فاضحه یې هم بولي ولي د ډېرو پټو منافقانو حال یې رسوا کړی، راوي وایي چي علیه الصلوٰة والسلام چي فتح مکه وکړه او د هوازنو او د ثقیف

فتح یې په حنین او اوطاس کې وکړه او طائف یې محاصره کړی او فتح یې کړی او جعرانه ته راغلی او د عمرې احرام یې وتاړه او عمره یې وکړه بیرته مدینې منورې ته راغلی فامر بالخروج الی غزوة الروم قبل الشام یعنی تبوک وذالک في شهر رجب سنه۹ هـ او دا خبر هم علیه الصلوٰة والسلام ته ورسېدی چې رومیانو ډېر لوی لښکرونه جمع کړي دي په شام کې او نور بیان یې دمخه تېر سو انتهی.

## مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ

څه سبب دی تاسې لره، استفهام لپاره د توبیخ دی، چې وویل سي تاسې ته یعني قال لکم رسول الله ﷺ، راووځئ له کوره څخه په لار کې د خدای ﷻ یعنی جهاد ته لپاره د اعلاً د کلمة الله العلیاٰ او لپاره د نصرت د دین.

## اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ

اصل د اثاقلتم تثاقلتم و تا یې په ثا واړول او په ثا کې یې مدغمه کړه، او همزه د وصل یې لپاره د ضرورت د ابتدأ بالساکن ورته راجلب کړی، والمعنی لزمتم ارضکم ومساکنکم په پښو ځان وځروئ ومځکې ته لپاره د میل ودنیا ته وشهواتها الفانیة عن قریب. او بعض مفسران وایي تاسې میل وکړئ و اقامت ته په خپل مځکه او کور کې والمال واحد.

## أَرَضِيتُم بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ

آیا تاسې راضي سواست په شهواتو د ژوند ناقص او معرضین له نعیم څخه د اخیرت چې په جهاد في سبیل الله پورې مربوط دی، او شهوات د دنیا په اقامت پورې د کور وابسطه دي.

## فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ ۝

نه دي تمتعات، لذائذ، او شهوات د حیوة الدنیا في الآخرة ای في جنب نعیم الآخرة وبالنسبة الیها مګر نه لږ دي یعني حقیر دي بې قدره دي او سریع الزوال دي او نعیم د اخیرت ما ورد في الحدیث الصحیح اعد الله للمؤمنین في الجنة ما لاعین رئت ولا اذن سمعت ای بالتفصیل ولو سمعت بالاجماع ولا خطر علی قلب بشر او کما قال رسول الله ﷺ، او بل دا چې نعیم د اخیرت ابدي او دائم دي

"خالدین فیها ابدا" او بل دا چي د نعمتو سره د دنیا افتونه غمونه مرضونه ملګري دي او نعیم د اخرت في دار الکرامة له دې ټولو څخه پاک دي.

**درویش وایي:** چي په راتلونکي آیت کي وعید ښکاره کوي پر ترک د جهاد.

**اِلَّا تَنۡفِرُوۡا يُعَذِّبۡكُمۡ عَذَابًا اَلِيۡمًا ۙ**

که تاسي نه ورسره وځئ جهاد ته خدای پاک به تاسي ته عذاب الیم درکړي په دنیا او اخیرت کي، د دنیا عذاب دا ؤ چي خدای پاک بارانونه پر بند کړه او د اخیرت عذاب خو معلوم دی.

**بوه سه:** چي اصل د الا په دواړو ځایو کي ان لا ؤ فادغم نون ان الشرطية في اللام.

**وَّيَسۡتَبۡدِلۡ قَوۡمًا غَيۡرَكُمۡ وَلَا تَضُرُّوۡهُ شَيۡـئًا ؕ**

او خدای ﷻ به په بدل کي ستاسي بل قوم راولي یعني هغه قوم به مطمئن وي بعض وایي هغه اهل یمن دي، او سعید ﷻ وایي چي ابنا فارس دي، او تاسي ضرر نه سئ رسولای وخدای پاک ته په هیڅ شي سره په ترک کي د نصرت د دین د خدای ﷻ فان الله غني عن کل شئ في کل امر، او بعض مفسرین وایي چي ضمير و الرسول ته راجع دی ای لاتضروا الرسول شیئاً، ولي چي خدای ﷻ دده سره د عصمت او د نصرت وعده کړې ده او خلاف د وعدې کول پر خدای ﷻ محال ده.

**وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ‏**

او خدای ﷻ پر هر شي قادر دی فیقد علی تبدیلکم وتغییر الاسباب والنصرة بلا مدد.

**بوه سه:** چي په دې آیت کي سخت او لوی دباؤ دی پر متشاقلینو باندي، ولي چي وعید د عذاب الیم یې مطلق ورته واوراوه چي عذاب ته د دنیا او اخرت دواړو ته شامل دی، او استبدال د قوم اخرین او اظهار د خپل غنٰی یې ورته وکړي.

**اِلَّا تَنۡصُرُوۡهُ فَقَدۡ نَصَرَهُ اللّٰهُ اِذۡ اَخۡرَجَهُ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا**

**بوه سه:** چي د "ان لا تنصروه" جواب محذوف دی او دلیل د جواب یې په ځای کي ولاړ دی والتقدیر الا تنصروه فلاضیر علی الرسول.

ولي خدای ﷻ دده سره نصرت کړی دی چي دی یې وه ایستی یعني له مکې

څخه هغو کسانو چي کفر يې کاوه يعني مشرکی مکة معنا دا چي مجبور يې کړی و خروج ته د مکې، وانما قلنا ذالک لان کفار مکة لم يقولوا اخرج عنا بلکې د عليه الصلوة والسلام د ديارلس کاله مسلسل ازار د کفارو د مکې له خوا څخه پېمانه د صبر يې ورډکه کړه، نو د خدای ﷻ په اجازه دی له مکې څخه ووتی.

**درويش وايي**: چي وتل له وطنه په جبر او د ناچارۍ له کبله د هر زور غواړي زه پخپله هم مهاجر يم او د هجرت جبري کړاونه راباندي راغلي دي په هغه وخت کي روسانو پر افغانستان يرغل وکړی او ټوله افغانستان يې په خپله قبضه کي واخستی، او د مخورو کسانو او د علماؤ کشت وخون او حبس بامشقت جاري سو، زه سره د خپل عياله د فاقې په حال کي همسايه ملک پاکستان ته مهاجر سوم چي د هجرت نهه ويشت کاله ته قريب يو، ځکه په حديث نبوي کي راغلي دي "السفر قطعة من السقر" معنا دا چي سفر او هجرت يو ټوټه ده د سقر دوږخ، حجاج بن يوسف ظالم مشهور وخون کار معروف ميگفت اگر نه شادی آمدن بخانه وکاشانه بودی که مسافر چون بخانه رسد همه رنج سفر فراموش ميکند من مردمان را نه کشتمی بلکه به سفر عذاب دادمی، د سفر د عذاب له سببه. څوک چي د دين په لار کي له کوره ووځي لکه غزوه، دومره ثواب خدای ﷻ ورکوي چي په حديث صحيح کي راغلي دي "الغدوة في سبيل الله او روحة" د اول د ورځي تګ د الله په لار کي او په اخير کي د ورځ تګ "خير من الدنيا وما فيها" يعني غدوة او روحة د دنيا تر نعمتو بالا ده لان نعيم الدنيا زائل وثواب الغدوة والروحة في سبيل الله باق.

**پوښتنه**: علت د اجازې د خدای پاک و عليه الصلوة والسلام ته د هجرت له مکې څخه څه ؤ؟

**ځواب**: علت يې هغه دی چي د سورت انفال په تفسير کي تېر سو چي کفارو په دار الندوة کي مشوره سره وکړه، چي چا وويل چي عليه الصلوة والسلام په بندي کړو په يو سرای کي. گوله ډوډۍ به ورکوو اخير به مړ سي او له غمه به يې خلاص سوو، چا به ويل چي ورته وه به وايو چي زموږ له ښار مکې څخه ووځه. اخير الامر فيصله پر دې سوه چي په ډلييزه توگه به يې مړ کړو چي د شيخ نجدي چي په

حقیقت کي ابلیس ؤ هم دا مشوره تصویب سوه او خدای ﷻ علیه الصلوة والسلام
له جریانه څخه ددې مشورې خبر کړی او امر د هجرت يې مدینې ته ورکړی.

## ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ

دوهم د دوو چي دوی وه په غاره کي.

**پوه سه:** چي ثاني منصوب دی حال دی له ضمیر منصوب څخه د اخرجه، والمعنی قد نصره الله حال کونه بحیث لم یکن معه الا رجل واحد وهو ابوبکر ﵁.

**پوه سه:** چي دا غار په لوړه حصه کي ؤ د جبل ثور او دا غر په رسته جانب کي د مکې دی چي بعض راویان وایي چي د مکې او ددغه غره تر منځ د یوه ساعت لار ده، او په تبیان کي وایي چي دا غره تقریباً دوه فرسخه لېري ؤ، په قاموس کي وایي چي ددې غره اصل نوم اطحل ؤ لکن چونکه ثور بن عبد مناة په دې غره کي ځای ونیوی، نو په جبل ثور مسمی سو.

**درویش وایي:** چي د هجرت نبوي د قصې تفصیل قد مر في تفسیر سورة الانفال وقد مر ذکره قریباً، چونکه مسلمانان د مکې والو تر شدت اذیت لاندي راغله، نو علیه الصلوة والسلام مسلمانانو ته اجازه د هجرت ورکړه او دا یې هم ورته وویل چي ما په خوب کي ستاسي دار الهجرة ولیدی چي د خورما باغونه پکښې وه په منځ کي د لاتبین یعني دوې شېلې چي کوچني کوچني ډبري پکښې وې فهاجر من هاجر الی المدینة، او دا یې هم وویل، زه هم امید لرم چي ماته به هم د اهجرت اجازه وسي، ابوبکر ﵁ ترجوا ذالک بابی انت (یعني ته هم امید لرې ددغه ځای د هجرت زما پلار دي تر تا قربان سي) علیه الصلوة والسلام ورته وویل نعم، نو ابوبکر ﵁ ورته وویل الصحبة یعني ما هم ملګری کوې؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل الصحبة، نو په مکه کي د علیه الصلوة والسلام ملګري نه وه بېله دغو کسانو ابوبکر، علي، صهیب ومن کان محبوساً او مریضاً او عاجزاً عن الخروج ﷺ، راوي وایي چي ابوبکر ﵁ د هجرت د مصاحبت زېری تر لاسه کړی، نو یې دوې اوښې په اته سوه درهمه رانیولې د هجرت لپاره، نو په سرای کي یې ودرولې او خبط یې ورکول، خبط په دوه حرکته د ځنګلي درختي

بلګونه دي په عربستان کې چې خلګ يې په لکړو راشوه کوي بيا يې وچ کړي او بيا يې ميده کړي يا اوړه يا اوربشي په ګډې کړي او په اوبو يې خیشته کړي او اوښانو ته يې ورکوي چې اوښان ډېر تياروي. نو دا دوې اوښې د ابوبکر ﷺ پر کور وې تقريباً درې مياشتي ولاړې وې، نفس هجرت خو په ذوالحجة کي شروع سو، او هجرت د عليه الصلوة والسلام په ربيع الاول کي منځ ته راغلی، د هجرت د قصې راويان وايي چې څه وخت چې عليه الصلوة والسلام د شپې د وتلو له کوره عزم مصمم سو، نو علي ﷺ يې راوغوښتی او ورته وه يې ويل چې ته نن شپه زما پر ځای پر بوزه او د عليه الصلوة والسلام يو پټو ؤ چې حضرمي يې بالنه چې په حضر موت ورته کالي جوړېدله. دا يې حضرت علي ته ورکړی چې پر ځای يې واچوه او دا اطمنان يې ورکړی چې تاته د کفارو له خوا هيڅ ضرر او مکروه نه سي رسېدلای، او عليه الصلوة والسلام دا ردا يا پټو په اخترو کي پر اوړو کاوه چې طول يې څلور شرعي ګزه ؤ او عرض يې دوه ګزه ؤ، او په رنګ په بعضو رواياتو کي راغلي دي چې شين ؤ، او په بعضو رواياتو کي راغلي دي چې سور ؤ لکه حافظ دمياطي رحمه الله چې ويلي دي.

**درويش وايي:** چې جمع ددې دوو رواياتو امکان لري چې پټو دي کشميري ؤ چې سرې او شنې ليکې يې درلودې، او عليه الصلوة والسلام چې په بيد بدی هم دغه پټو به يې پر ځان اچاوه، سبب د علي ﷺ د پرې ايستلو پر خپل بستر باندي داؤ چې کفارو چې د عليه الصلوة والسلام د قتل لپاره راجمع سوي وه، نو د علي ﷺ شخص به د دروازو تر چولو ويني دوی چې وايي عليه الصلوة والسلام بيده دی. نو د بيدېدلو انتظار به يې کوي چې حمله پر وکړي، او علي ﷺ خو بيده نه ؤ صرف پټو يې پر ځان اچولی ؤ، نو به عليه الصلوة والسلام او ابوبکر ﷺ تر خپل مقصده پوري ورسېږي، راوي وايي چې ثلث اول د شپې چې تېر سو سل کسه ځوانان له مختلفو قومو څخه د عليه الصلوة والسلام د قتل لپاره راجمع سوه چې د هر يوه سره توره وه تاچي په اجتماعي توګه عليه الصلوة والسلام قتل کړي تاچي د بدي د بني هاشمو چې د عليه الصلوة والسلام

مخصوص قوم ؤ وخاص قوم ته د قريشو متوجه نه سي اخير الامر به بني هاشم په ديت راضي سي چي سل اوښان وه، او دا سل اوښان قريشو ته يو يو ور رسېدی، او دا جمع سوو سلو کسانو به د دروازې تر چولو ورته کتل چي کله به عليه الصلوة والسلام ددوی په گمان بيده سي چي په حقيقت کي علي ﷺ ؤ چي موږ اجتماعي حمله پر وکړو، او علي ﷺ د عليه الصلوة والسلام پتو پر ځان اچولی ؤ او ويښ ؤ، نو عليه الصلوة والسلام له کوره پر راووتی او کافران په دروازه کي ولاړ وه او "يٰسٓ والقرآن الحكيم" يې تر "فاغشيناهم فهو لايبصرون" پوري ووايه، نو خدای پاک په خپل قدرت تامه سره د مشرکينو سترگي پټي کړې حتی چي عليه الصلوة والسلام ددوی په منځ کي تېر سو، او عليه الصلوة والسلام په وخت کي د راوتلو يو موټ خاوري را اخستي وې او د هر يوه پر سر يې نوکي نوکي خاوري هم اېښي وې وهم لايشعرون ولايبصرون، وهذا من عجائب قدرته تعالى ومن غرائب معجزاته ﷺ.

**فائده:** په فضائلو کي د سورة يٰسٓ راغلي دي په حديث شريف کي چي عليه الصلوة والسلام وايي چي که سورة يٰسٓ خائف ووايي په امن کي به سي، او که يې وږی ووايي موړ به سي او که يې لڅ سړی ووايي خدای ﷻ به کالي ورکړي، او که يې تږی سړی ووايي خدای ﷻ به يې اوبه کړي، او که يې مريض ووايي خدای ﷻ به شفا ورکړي.

**درويش وايي:** چي دا ټوله کارونه په اعتقاد او يقين سره د سړي پر قول د عليه الصلوة والسلام مربوط دي. نو وروسته د کافرانو يو سړی و هغو سلو کسانو ته راغلی او ورته وه يې ويل ما تنتظرون؟ تاسي وځه شي ته په انتظار ياست؟ هغو ورته وويل محمد ته په انتظار يو چي قتل يې کړو، هغه سړي ورته وويل قد خيبكم الله، والله قد خرج عليكم محمد ﷺ، ثم ماترک رجلاً منكم الا وضع على رأسه التراب، او محمد پر خپل مخ ولاړی، هر يوه چي په خپل سر ته لاس وروړی پر سر به يې خاوري پرتي وې، نو دوی کور ته ورننوتل که څه گوري د عليه الصلوة والسلام په ځای کي علي ﷺ پروت

دی، نو ده ته یې وویل این صاحبک؟ علي ﷺ ورته وویل خبر نه یم چې چېرې
ولاړی له کور څخه خو درووتی، علیه الصلوة والسلام په اشاره د جبرئیل د
ابوبکر ﷺ کور ته ولاړی، هغه ته یې وویل قد اذن لي في الخروج فقال
ابوبکر ﷺ الصحبة یا رسول الله بابی انت وامي یعني اسئلک الصحبة علیه
الصلوة والسلام ورته وویل نعم. فبکی ابوبکر سروراً، نو ابوبکر ﷺ وژړل
له ډېرې خوشالی څخه. یو شاعر ډېر ښه وایي:

ورد الکتاب من الحبیب بانه ......... سیزورني فانستعبرت اجفاني

هجم السرور علی حتی انه ......... من فرط ماقد سرني ابکاني

یا عین صار الدمع عندک عادة ......... تبکین من فرح و احزان

نو ابوبکر ﷺ و علیه الصلوة والسلام ته وویل چې ددې دوو اوښانو چې ما د
سفر لپاره اراسته کړي وې یوه ته واخله. علیه الصلوة والسلام ورته وویل نعم
بالثمن، دا ددې لپاره چې د علیه الصلوة والسلام هجرت الی الله بنفسه وبماله
سي، که دا سبب نه وای نو ابوبکر ﷺ خو اکثره حصه د خپل مال د علیه الصلوة
والسلام په حاجاتو کې صرف کړي وه، عائشه ﷺ وایي چې شلو ښت زره درهمه
زما پلار د علیه الصلوة والسلام په حاجاتو کې صرف کړي وه. او ده چې هجرت
کاوه فقط پینځه زره روپۍ ورسره وې، وفي روایة اربعین الف دینار، نو هغه
اوښه چې علیه الصلوة والسلام خوښه کړه ناقة قصوی یا جدعا یې بلل چې په
خلافت کې د ابوبکر ﷺ مړه سوه، راوي وایي چې علیه الصلوة والسلام او
ابوبکر ﷺ وروسته یوه سړي چې د بني الدیل د قبیلې و په پینځه سوه درهمه
مزدور کړی چې نوم یې عبد الله بن اریقط و تاجي تر مدینې پورې یې پر سمه لار
بوزي، ولي دا لار نه علیه الصلوة والسلام سمه لیدلې وه او نه هم ابوبکر ﷺ او
دا لار په سختو ربګو کې او د غرو په درو کې تېره سوې وه، که څه هم عبد الله بن
اریقط پر دین د قریشو و یعني هغه وخت وروسته بیا مسلمان سوی دی لکن د
خپلې مزدورۍ په سبب یې حال چاته نه وایه. اوښاني یې په لاس ورکړي او ورته
وه یې ویل چې د دریمې ورځې په سهار به یې د جبل ثور هغې معروفې درې ته

راولې، نو علیه الصلوٰة والسلام داغه شپه په کور کې د ابوبکر ﷛ تېره کړه دا بل شپه د جبل ثور پر خوا روان سوه، راویان د تاریخ وایي چي ګاهي به ابوبکر ﷛ د علیه الصلوٰة والسلام ترمخه روان ؤ او ګاهي به وروسته، علیه الصلوٰة والسلام دده څخه د تقدم او تأخر پوښتنه وکړه، ابوبکر ﷛ ورته وویل چي د تقدم سبب خو دادی چي ګاهي مي په خیال کي راګرځي چي که چېري قریشو موږ ته لار نیولې وه نو ما به تر تا دمخه قتل کړي، او د تأخر سبب دادی که په موږ پسي وروسته خلګ راپسي وه نو به هم ما تر تا دمخه قتل کړي، درویش وایي چي دا دی صدیق اکبر، ابوبکر ﷛ سر او مال قربانول تر علیه الصلوٰة والسلام، راویان دده درد افزون قصې په بیان کي وایي چي علیه الصلوٰة والسلام پر اطرافو د ګوتو تګ کاوه تاچي پښه یې پر مځکه ونه لګېږي چي بل څوک په ما پسي پل را نه وړي، ابوبکر ﷛ چي ورته وکتل علیه الصلوٰة والسلام لڅي پښې روان ؤ او د ګوتو تر سرو یې وینې تویېدلې، نو یې علیه الصلوٰة والسلام په شا کړی او په ځغاسته یې تر غاري د جبل ثور ورساوه او هورې یې له شا څخه کښته کړی، راوي وایي چي دا وینې په سبب د ډېرو د لاري وې ورنه مسافت له مکې څخه تر ثور پورې پر صحیح روایت د یوه ساعت لار وه په یوه ساعت مزل سره ګوتې وینې نه کوي، البته د تفسیر تبیان پر روایت چي تخمیناً دوه فرسخه لار وه، نو احتمال د ګوتو په وینو کي قریب ګڼل کېږي، نو د جبل ثور غاري ته چي ورسېدل علیه الصلوٰة والسلام چي اراده د ننوتلو وکړه، نو ابوبکر ﷛ ورته وویل چي زه به یوار د غاري صفایي وکړم، چي دا غاره په حشراتو سره مشهوره وه، نو ابوبکر ﷛ چي ورننوتی ډېري او شیګې یې یوه طرف ته کړې او د غاري غارو ته به یې خپل کالي ځیري کړل او بندول به یې چي نباید دده غار څخه یو لړم یا بل خزنده راوه نه وځي چي علیه الصلوٰة والسلام په ازار کي، یوه غاره پاته سوه چي په هغې کي مار ؤ ابوبکر ﷛ خپل پښه په چخ کړه، نو وروسته علیه الصلوٰة والسلام ور داخل سو، نو مار به دی پر پنده په غانباوه له ډېره درده به د ابوبکر ﷛ اوښکې پر مخ رواني وې، علیه الصلوٰة

والسلام چي سبب د اوښکو څنې وپوښتي، ده ورته وویل چي په دې غار کي یو شی دی چي ما پر پنده په غابتوي او زهر پکښې اچوي، علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي پنده اراسته کړه، ده چي اراسته کړه مار سر راوه ایستی، علیه الصلوة والسلام ورته وویل ولې ظالمه چي نه بېګانه پرېږدې او نه صدیق مار ولاړې په خپل غار کي غلی سو. او د ابوبکر رضي الله عنه پژ پنده علیه الصلوة والسلام ناړې مبارکي تو کړې چي هیڅ اثر د درد نه سو پاته، راویان وایي چي خدای پاک امر کړه درختنه د قتاد یا د ام الغیلان چي ورسه د غارې پر خوله ودرېږه او زما پر دوست باندې یې خوله بنده کړه چي څوک یې ونه ویني، بعض راویان وایي چي علیه الصلوة والسلام و ابوبکر رضي الله عنه ته وویل چي دا درختنه له غارې څخه ګوښه ولاړه وه ورسه ورته ووایه چي رسول د خدای دې بولي راسه پر موږ د غارې خوله بنده کړه، په هر صورت درخته په غره کي سره د خپلو ریښو را روانه سوه د غارې په خوله کي یې ریښې بیرته په غره کي واچولې.

**درویش وایي**: چي په هر حال دا قدرت باهره د خدای جل جلاله دی او معجزه ظاهره د علیه الصلوة والسلام ده، نادره، معجزه او قدرت باهره، ابو نعیم له عائشة بنت قدامة رضي الله عنها څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام وایي چي زه او ابوبکر رضي الله عنه دده د کور تر دربچې راووتلو، یعني پر دروازه نه راووتلو چي څوک مو وه نه ویني، زموږ په مخ چي اول څوک راغلی هغه ابوجهل ؤ لکن خدای جل جلاله پر موږ روند کړی نه یې ولیدلو، موږ یې ومخ ته تېر سو.

**پوه سه**: چي آنحضرت صلی الله علیه وسلم او ابوبکر رضي الله عنه چي په غار کي ساکن سوه او درخته د قتاد د غارې خولې ته ودرېدله، نو عنکبوت چي په پښتو یې جولاګی بولي خدای پاک امر ورکړی چي د درختي د ښاخو په منځ کي پر خالي ځایو تانسته جار کړئ، دوی هم په دېرې چټکۍ سره یو پر بل سربېره تانستې جار کړې لکه د څلورو کالو تانستې کما في العقیدة البردة:

ظنوا الحمام وظنوا العنکبوت علی ...... خیر البریة لم تسنج ولم تحم

یعني بې دین خلګ ګمان لري چي کوترو ځالګی نه ده جوړه کړې او نه یې

هګی پکښې اچولي دي پر دروازه د غار، ښه غار چي په هغه کي خیر الخلقﷺ قرار درلودی، یعني دا ګمان غلط دی، او دغه بې دینه خلګ ګمان لري چي عنکبوت د هغې غاري پر خولې تانسته نه ده جار کړې، او عنکبوت د غاري پر شاوخوا طواف نه دی کړی "تحم" مشتق دی د حام یحوم حوله ای طاف یعني عنکبوت خپل تانسته په ډېره چټکۍ سره جار ایستله.

**درویش وایي:** چي عنکبوت اسم جنس دی پر یوه او پر ډېرو یې اطلاق کېږي، نو له دې سببه ما دا خبره وکړه چي خلګ دا ګمان ونه کړي چي یو دانه عنکبوت چي دا خدمت یې کاوه بلکې والله اعلم چي څو دانې په دې خدمت مشغول وه، ولي چي یوه دانه دومره تانسته نه سي جار ایستلای چي د ټولي غار خوله پټه کړي، او هغه په دومره مقدار لکه د څلورو کالو پنډه تانسته فافهم فانه سانح عزیز وتل من نبه علی هذا.

**یوه سه:** چي عنکبوت فقط دا یو خدمت د اهل الله نه دی کړی بلکې د تاریخ په پاڼو کي راغلي دي چي عنکبوت پر نبي الله داودﷺ ځالګۍ جوړه کړې ه چي په یوه غار کي پټ ؤ چي جالوت پسي ګرځېدی. لکن درویش وایي چي دا تاریخي خبره ده د قرآن له نص څخه مخالفه ده "وقتل داود جالوت وآتاه الملک" او بل دا چي عنکبوت پر عورت د سیدنا زید بن علي بن الحسین بن علي بن ابی طالب چي د امام باقر ورور دی او اکا دی د جعفر صادقﷺ هم ځاله جوړه کړېده، یوسف بن عمر الثقفي امیر العراقین له جانبه د هشام بن عبد الملک ؤ دی یعني زید یې لغړ په دار کړی ؤ په سبب ددې چي زید پر هشام تېری وکړی او جنګ یې ورسره شروع کړی وذالک في سنه۱۲۲ هـ ق او دوی چي دی د دار پر لرګي واچاوه مخ یې له قبلې څخه ورچپ کړی، نو لرګی وګرځېدی او دده مخ یې وقبلې ته کړی، او عنکبوت دده عورت غلیظه په تانستو ورپټ کړی، اخیر یې دده جسد مبارک او لرګی دواړه په اور وسوځل کذا في روح البیان.

**درویش وایي:** چي د عنکبوت دغه شرف کافي دی چي پر غار د جبل ثور الذي فیه سید المرسلینﷺ او دده صاحب خصوصي ابوبکر ؓ ؤ، ده پهره

داري وکړه او فرجې د درختي یې په خپلو تانستو بندي کړې ولهذا نهی النبي ﷺ من قتل العنکبوت وقال انه جند من جند الله.

جمله ذرات زمین وآسمان ......... لشکر حقند گاه امتحان

**پوښتنه:** له علي ﷺ څخه روایت دی طهر البیوت عن نسج العنکبوت فانه یورث الفقر؟

**ځواب:** دا حدیث پر تقدیر د صحت د شرافت وعنکبوت منافي نه دی. او بیا خدای پاک امر کړې دوې کوترې چې په هغه درختنه کې چې د غاري پر خوله ولاړه وه ځالګی جوړه کړي او سمدلاسه هګی پکښې واچوي. ولهذه الخدمة قد شرف الله تعالی جنس الحمامة بالسکونة في الحرم الشریف.

**درویش وایي:** چې دا تول کار روایي ددې لپاره وه چې کفار د مکې چې خبر سوه چې علیه الصلوة والسلام او ابوبکر ﷺ د شپې له مخه له خپلو کورو څخه وتلی دی. نو ماهر پلزن یې راوغوښتی چې ته پل ددې دوو کسانو ووهه چې چېرې پټ سوي دي. پل زن چې د علیه الصلوة والسلام له کوره پل راواخستی د ابوبکر ﷺ کور ته یې راورساوه. له هغه ځایه بیا دوه پلونه سوي وه پل زن دا دوه پلونه پسې راواخستل برابر یې د غاري تر خولې پورې راورسول. نو پل زن وویل چې تر دې ځایه خو پلونه راغلي دي بالا نه پوهېږم چې اسمان ته ختلي دي او که په مځکه ننوتلي دي. بعض کافرانو وویل چې په دغه غار کې خو به ننه وي. نو ځینو منت پر وکړی ته انسان نه یې دا تانستې د عنکبوت نه ویني او دا کوترې ته نه وینې چې ځالګی یې جوړه کړېده او هګی یې پکښې اچولي دي. ددې کافر مطلب دا ؤ چې که په غاره دوی ننوتلي وای، نو خو د عنکبوت تانسته به خراب سوې وای او د کوترو ځالګی به خراب سوې وای. او دې کافر و هغه بل کافر ته وویل چې ستا پلار لا والله که زو کړی ؤ چې په غار څوک نه دی ننوتلی. ابوبکر ﷺ وایي چې موږ اقدام د کفارو لیدل لکن سرونه ددوی تر غار لوړ وه، نو ما و علیه الصلوة والسلام ته وویل چې که یو کافر سر کښته کړي او غاري ته وګوري خو موږ ویني، نو علیه الصلوة والسلام و ابوبکر ﷺ ته کرار وویل

ماظنک باثنین الله ثالثهما ای بالعون والنصرة لا بالتمکن.

اِذْ يَقُوْلُ لِصَاحِبِهٖ لَا تَحْزَنْ اِنَّ اللّٰهَ مَعَنَا

چې وويل رسول الله ﷺ و خپل ملګري ته چې ابوبکر ﷺ ؤ ته غم مه کوه په تحقيق خدای ﷻ زمونږ سره راسره دی، ومظهري وايي معيةً غير متکيفة، غرض يې دادی چې دا آيت له متشابهاتو څخه دی.

**درویش وايي**: چې ولا ضرورة الى کونها من المتشابهات، ولهذا فسره علامة البغداد محمود الآلوسي في روح المعاني بالعصمة والمعونة فهي معية مخصوصة والا فهو تعالى مع کل واحد من خلقه بالقدرة، بغوي رحمه الله له ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چې عليه الصلوة والسلام وابوبکر رضي الله عنه ته وويل انت صاحبی في الغار وصاحب على الحوض.

**مسئله**: حسن بن الفضل رحمه الله وايي که چا وويل چې ان ابا بکر لم يکن صاحب رسول الله ﷺ فهو کافر لانکاره نص القرآن وفي سائر الصحابة ﷺ لو قال ذالک يکون مبتدعاً لا کافراً. روايت دی چې ابوبکر رضي الله عنه و عليه الصلوة والسلام ته وويل که چېرې يو سړی له راغلو کافرانو څخه وفم الغار ته د خپلو پښتو وکتل خو مونږ ويني، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې که دوی يعني کافران د غاري له خوا راغله ماوتا به دورې ولاړ سو يعني د غار وړاندې ته يې اشاره وکړه، ابوبکر رضي الله عنه وايي ما چې د غاري وړاندې ته وکتل غاره دومره اوږده وه چې پر درياب تمامه سوې وه او په درياب کې کښتۍ ولاړه وه ملاحان چمتو ولاړ وه، علامه ابن کثير رحمه الله په خپل تفسير کې وايي وهذا ليس ببعيد من حيث القدرة العظيمة انتهی.

**درویش وايي**: چې په دې آيت کې دلالت دی د ابوبکر رضي الله عنه د رتبې پر بلندی عند الله وسابقية صحبته، او علماً وايي چې ابوبکر ثاني رسول الله في العالم الارواح حين خرج من العدم، وثانيه حيث خرج ﷺ مهاجراً وثانيه في دخول الجنة. وفي الحديث "اما انک يا ابابکر اول من يدخل الجنة من امتي، وفي حديث آخر قال عليه الصلوة والسلام لابی بکر رضي الله عنه الا ابشرک قال بلی بابی انت

وامي قال ان الله يتجلى للخلائق يوم القيامة ويتجلى لک خاصةً.

په يوه روايت کي راغلي دي چي ابوبکر ﷺ په غار کي تږی سو، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي د غاري خولې ته ورسه ځان اوبه کړه، ابوبکر ﷺ چي ورغلی هلته تر عسلو خوږې، تر شيدو سپيني او تر مشکو خوش بويه اوبه دي، نو يې ښه ځان په اوبه کړی، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي خدای پاک ملک موکل پر انهارو باندي د جنت امر کړه چي له جنت الفردوس څخه اوبه يوسه د غار خولې ته چي ابوبکر تږی دی. ابوبکر ﷺ وويل يا رسول الله ﷺ مالره دومره درجه سته په دربار کي د خدای ﷻ؟ قال نعم وافضل والذي بعثني بالحق نبياً چي ستا سره بغض کونکي په هرګز جنت ته داخل نه سي وان عمل ای عمل.

**درويش وايي**: چي افسوس دی پر حال د روافضو او شيعه ګانو چي د دغسي ذات محترم عند الله وعند رسوله بغض ساتي او نا لائقه ښکنځل او پوچ فحش ورته وايي.

**درويش وايي**: چي اخير الامر کفار مکه سره د پلټن نا اميده ولاړه له غاري څخه د جبل ثور څه يې په لاس نه ورغله.

**پوښتنه**: درې ورځي او شپې عليه الصلوة والسلام او ابوبکر ﷺ په غار کي څه شی غوړله؟

**ځواب**: په حديث کي راغلي دي چي عامر بن فهيرة چي د ابوبکر د مېږو او پسو يو شپانه وُ د شپې به يې رمه د غاري خولې ته وروستل او شيدې به يې ولوشلې عليه الصلوة والسلام او ابوبکر ﷺ به يې په مړول او په سپېدو کي به يې لا رمه له هغه ځای رمول. او عبد الرحمن بن ابوبکر چي ښه هوښيار ځوان وُ او په مکه شريفه کي وُ، نو د شپې چي به خلګ بيده سوه دی به جبل ثور ته ورتلی او د کفارو ټوله اقوال او افعال به يې رسول الله ﷺ ته بيانول، او تر سپېدو دمخه به مکې ته راتلی چي مکې وال شک وانه خلي چي عبد الرحمن به شايد د عليه الصلوة والسلام او د پلار ملاقات ته ځي، او له ابو اسحاق څخه روايت دی چي اسماءً بنت ابی بکر ﷺ به يو څه ډوډۍ وغيره سره برابره کړه او چي شپه به

تاریکه سوه دا طعام به یې علیه الصلوة والسلام او پلار ته رساوه.

## فَأَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَيْهِ

نو خدای ﷻ نازل کړه آرام د زړه پر ده باندي، بعض مفسران وایي چي ضمیر د علیه و رسول اللهﷺ ته راجع دی حیث قال لا تحزن ان الله معنا. کذا قال البلادري وفیه ان سکینة القلب کانت حاصلة لرسول اللهﷺ من قبل هذا فالاولی ان یرجع الضمیر ابی بکرؓ. ولي چي د ابو بکرؓ په زړه کي سکینه هلته پیدا سوه چي علیه الصلوة والسلام ورته وویل لا تحزن ان الله معنا او صحیح هم داغه ده ولي چي مضطرب خو د ابوبکرؓ زړه ؤ چي علیه الصلوة والسلام ته یې وویل چي که یو سړی و خپلو پښتو ته وګوري ماوتا په ووینې کمامر من قبل. خواجه فرید الدین عطار رحمه الله وایي:

خواجه اول که اول یار اوست ...... ثاني اثنین اذهما في الغار اوست

چون سکینه شدزحق منزل براو ...... گشت مشکلهای عالم حل برو

## وَأَيَّدَهُ بِجُنُودٍ لَّمْ تَرَوْهَا

او خدای ﷻ تائید او نصرت وکړی د علیه الصلوة والسلام په داسي لښکرو سره یعني د ملکو چي تاسي نه لیدی چي ددې ملکو وظیفه داوه چي د کفارو مخان او سترګي بې له لیدلو څخه د علیه الصلوة والسلام اړولې، له اسماً بنت ابي بکرؓ څخه ابو نعیمؓ روایت کړی دی چي ابوبکرؓ یو سړی ولیدی چي غاري ته مخامخ راروان ؤ فقال یا رسول الله انه یرانا. دغه سړی موږ ویني یعني مخامخ راروان دی، علیه الصلوة والسلام ورته وویل کلا ان الملائکة یستره الآن باجنحتها. ملکي په خپلو وزرونو رد کړی، نو هغه بې درنګه مخامخ ودوی ته پر بولو کښېنستی، نو علیه الصلوة والسلام و ابوبکرؓ ته وویل که یې ته لیدلي نو مخامخ پر بولو به نه کښېنستی، په روح البیان کي وایي چي ددغې ملکي دا اول وار ؤ چي نازل سوې وه او د علیه الصلوة والسلام څخه یې دښمنان دفع کړه، یعني کفار قریش، او هم دغه ملکي

په بدر کې او په غزوة الاحزاب کې او په غزوه حنین کې نازله سوې وي.
**پوښتنه:** علیه الصلوة والسلام د هجرت په سفر کې د ځانه سره یو خوراک اخستی ؤ؟
**ځواب:** هو! ابن سعد رحمه الله وایي چې یو سترخوان ؤچې په هغه کې د پسه پخې غوښې وې او یوه د ابو مشکولا وه، نو اسماء بنت ابوبکر رضي الله عنها وایي چې ما خپل کمر بند (د عربو د ښځو دا عادت ؤ چې ملا به یې په یوې مراندي تړله) دوه ځایه کړی په یوه حصه مې د ژي خوله وتړله او بل بل خوا مې سترخوان وتاړه، نو اسماء رضي الله عنها ته په دې سبب ذات الناطقین ویل کېدل.
معجزه باهرة في سفر المدینة: طبراني، حاکم، ابو نعیم وغیرهما رحمهم الله وایي چې په اوږدو کې د سفر د علیه الصلوة والسلام ذی مبارک، ابوبکر، عامر بن ابو فهیرة او ددوی هادي عبد الله بن ارقیط ورغله پر خېمه د ام معبد چې یوه ښځه وه قریباً سپینې سرې او تکړه چې د نرو سره به کېښېنستله بې حجابه او په عین حال کې پاکه ښځه وه، نو دا د خپلې خېمې دباندې ناسته وه مسافر چې به راغله دې به ډوډۍ او اوبه ورکولې، نو علیه الصلوة والسلام او ملګري چې پر قبه تېرېدله ورته وه یې ویل چې موږ ته غوښې او خورما راکړه چې درځخه را یې نسو په قیمت، نو ددې سره هیڅ شی نه ؤ چې په دغه کال خلګ ډېر مسکینان وه، نو دې ورته وویل که زما سره شي وای تعني د خوراکي شیانو څخه، نو ستاسي څخه مې نه ګرځاوه، نو علیه الصلوة والسلام د خېمې په غوږي کې یو بزه ولیدله. فقال ما هذه الشاة یا ام معبد یعني دغه راولوشه شیدې یې موږ ته راکړه؟ هغې ورته وویل چې دا یو داسي بزه ده چې په سبب د ډنګروالي او ضعف له رمې څخه پاته سوې ده. قال هل بها لبن شدې لري؟ ام معبد ورته وویل چې شیدې چېرې لري. علیه الصلوة والسلام ورته وویل چې ماته اجازه راکوې چې زه یې ولوشم؟ قالت بابی انت وامي سره ددې چې ام معبد نه پېژندی چې رسول الله ﷺ دی لکن د عربو عادت دادی چې په وخت کې د اظهار د رضابابی انت وامي وایي، که یې ته لوشې ستا خوښه ده لکن دا تر اوسه مینده هم نه ده شړلې.

فشانک بها، نو علیه الصلوة والسلام بزه تر غاړي ونیوله او غولانځه یې له لاس مبارک سره مسحه کړه او پر شا یې هم لاس ورتیر کړی او بسم الله یې وکړه، او خدای ﷻ ته یې خواست وکړی په باره کي د شیدو، نو د بزې غولانځه د شیدو ډکه سوه او پښې یې سره پراخه کړې د لوشولو لپاره، علیه الصلوة والسلام ام معبد ته وویل چي یو لوښی راوړه، هغې ډکې ورته راواخستل علیه الصلوة والسلام لوشله چي د ډکې پر خوله ځګ راغلی یعني ډکه سوه دومره شیدې یې ځني ولوشلې چي د پوره راهط بس وې. ام معبد وایي چي اول یې ماته شیدې راکړې ما ځان ښه په اوبه کړی، وروسته علیه الصلوة والسلام خپلو ملګرو ته ورکړې هغو ځانونه ښه په اوبه کړل، اخیر علیه الصلوة والسلام پخپله وڅښلې او دا یې وویل "ساقي القوم اخیرهم" بیا ولوشل ډکې یې ډکه ام معبد ته پرې ښول، او علیه الصلوة والسلام ځني ولاړی، او ابو نعیم او ابن سعد له ام معبد څخه روایت کړی دی چي دغه بزه دې تر اتلس کاله پورې د هجرت یعني تر زماني پورې د خلافت د عمر ﷺ وساتل، او ام معبد وایي چي سهار او ماښام به مو یوه یوه ډکې ډکه ځني لوشله.

**درویش وایي:** چي دا قصه چي معتبرو راویانو یې روایت کړی دی د علیه الصلوة والسلام لویه معجزه ده، او د خدای ﷻ د عظیم قدرت دلیل ده، دغه حدیث په یو بل روایت کي راغلي دي قال ابوبکر ﷺ فلبثنا لیلتین ثم انطلقنا. ام معبد د علیه الصلوة والسلام څخه تعبیر په مبارک سره کاوه، او د ام معبد بوزې او مېږې او مواشي بیخي ډېرې سوې حتی یو کال یې رمې مدینې ته راوستې او زوی ورسره و، فمر ابوبکر ﷺ نو د ام معبد زوی یې وپېژندی او و مورته یې وویل یا امة ان هذا الرجل الذي کان مع المبارک، مور یې یعني ام معبد ورولاړه سوه فقالت یا عبدالله من الرجل الذي کان معک قال ابوبکر ﷺ هو نبي الله، دې ورته وویل چي ته ما وروله د ملاقات لپاره، نو علیه الصلوة والسلام ته ابوبکر سیده وروستله، نو علیه الصلوة والسلام ډوډۍ ورکړه او کالي یې ورکړه او ام معبد اسلام راوړی، تمت قصة ام معبد ﷺ.

**فائده:** په روح المعاني کي وايي چي يوه ورځ رسول الله ﷺ وحسان بن ثابت ته وويل چي نوموړی شاعر ؤ د عصر نبوي چي تا د ابوبکر په باره کي يو شعر نه دی جوړ کړی قال نعم، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ته يې ووايه زه به غوږ ورته ونسم. فقال حسان ﷺ.

و ثانيَ اثنين في الغار وقد ......... طاف العدو به اذ صاعدا الجبلاً
وكان احب رسول الله قد علموا .......... من البرية لم يعدل به رجلاً

فضحک رسول الله ﷺ حتى بدت نواجذه وقال صدقت يا حسان هو كماقلت.

**درويش وايي:** چي مظهري دغه دوه بيته په نورو الفاظو راوړي دی والله اعلم

**تنبيه:** له اسماً بنت ابی بکر ﷺ څخه روايت دی چي عليه الصلوة والسلام او ابوبکر ﷺ چي له کفارو څخه د مکې لادرکه سوه يعني په غار کي د جبل ثور، نو زموږ کور ته بعض کفار مکه راغله چي په هغو کي ابو جهل هم ؤ فقال اين ابوک پلار دي يعني ابوبکر چيري دی، اسماً ﷺ وايي ماورته وويل لاادري والله اين ابي، نو ابو جهل چپلاخه پورته کړه وکان خبيثاً زه يې پر مخ ووهلم چي زما غوږوالی له غوږو څخه ولوېدی، وروسته دوی ولاړه، دا وه تنبيه پر جهالت او غلظت او پر خباثت د ابوجهل، اسماً ﷺ وايي چي درې ورځي موږ ته هم هيڅ خبر نه ؤ چي عليه الصلوة والسلام او ابوبکر ﷺ چيري دي خو دوی په جبل ثور کي وه، دريمه ورځ عبد الله بن ابي اريقط حسب الميعاد اوښان جبل ثور ته وروستل او عليه الصلوة والسلام او ابوبکر ﷺ له غار څخه پر را ووتل. عليه الصلوة والسلام چي مکې مکرمې ته وکتل وه يې ژړل او وه يې ويل اني لاخرج منک واني لا علم انک احب بلاد الله واکرمها على الله ولو لا ان اهلک اخرجوني ماخرجت (زه له تا څخه وزم او زه په دې پوهېږم چي ته اې مکې احب يعني محبوب ترين د ښارو د خدای ﷻ يې او په دربار کي د خدای ﷻ هم ډېر شرافت لرې او که ستا اهل يعني کفار قريش ستا څخه نه وای ايستلی يعني وتلو ته يې نه وای مجبوره کړی زه به ستا څخه نه وای وتلی.

**درويش وايي:** چي دا حديث پر دې دلالت کوي چي مکه مکرمه اشرف ده.

عند الله تر ټولو ځایو د مځکې، وفي الحديث الصحيح من صبر على حر مكة ساعة من نهار تباعدت عنه جهنم مسيرة مائة عام والحسنة فيها بمائة الف حسنة (كه څا صبر وکړي پر ګرمۍ د مکې يو ساعت د ورځې، دوږخ به له هغه څخه لېرې سي د سلو کلو په مسافت سره او يوه نېکي په مکه مکرمه کي په يوه لک نېکيو ده يعني د بل ځای)

**يوه سه:** چي د امت اجماع ده چي هغه مځکه چي پر جسد شريف د عليه الصلوة والسلام راګرځېدلې ده هغه تر ټولو بقاع د مځکي مشرف ده حتى تر عرش او کرسۍ هم مشرفه ده.

**درويش وايي:** چي له دې ځای څخه سفر باسعادت د عليه الصلوة والسلام د هجرت شروع سو. ملګري په دې سفر کي دده مبارک ابوبکر، عامر بن فهيرة چي د ابوبکر د پسو شپانه و او عبدالله بن ابي اريقط ﷺ چي ددوی د لاري هادي و چي مجموع څلور کسان وه.

**يوه سه:** چي ابن ابي اريقط ﷺ له عليه الصلوة والسلام څخه مشوره وغوښتل چي يوه لار مدينې ته په دښتو او ريګو او بې اوبو مځکه ده چي مدينې ته تللې ده چي لنډه ده لکن بامشقت ده او بله لار د درياب پر غاړه تېره سوې ده چي څه اوږده ده لکن په راحت ده پر کومه دي ورسوم؟ عليه الصلوة والسلام د درياب د غاړي لار مختاره کړه.

**درويش وايي:** چي کفار مکه چي د عليه الصلوة والسلام او د ابوبکر ﷺ د نيولو څخه ناامېده سوه، نو يې اعلان کونکي واستول و اطرافو ته د مکې چي که هر څا دغه دوه کسه يعنون محمد ﷺ و ابوبکر ﷺ ژوندي ونيول مونږ ته يې په لاس راکړه او يا يې قتل کړه د هر يوه پر سر سل اوښان ورکول کېږي (قصة سراقة بن مالک بن جعشم) په بخاري، مسلم او نورو کتابو کي چي سراقه وايي ماته راغله را استول سوي کسان د قريشو چي هر څوک چي محمد او ابوبکر دواړه يا يې مړه کړي يا يې ژوندي ګرفتار کړي پر هر يوه ديت د يوه سړي يعني سل اوښان ورکول کېږي. دی وايي چي زه په مجلس کي د خپل قوم بني مدلج

ناست وم چې يو سړي راغلي او ودرېدى يا سراقه ما د درياب پر غاړه يو څو كسه سپاره وليدل زما خيال دادى چې دغه محمد او اصحاب دده وه، سراقه وايي زه پوه سوم چې دغه ليدل سوي كسان هم دوي دي لكن هغه قائل مي د سترګو په اشاره پوه كړى چې ږغ مه لره. نو كورته ولاړم او مينځي ته مي وويل چې دا زما آس شېلي ته وباسه، او سلاح مي راواخستل د سراى د شا له خوا ووتلم او نېزه مي هم راواخستل د وسپني طرف مي كښته كړى او د لرګي خوا مي پورته ونيول.

**درويش وايي**: چې په دې ټوله كي د سراقه غرض دا ؤ چې له قومه څخه څوك را پسي را نه سي تاچي دا دوه سوه اوښاني يوازي زه تر لاسه كړم، سراقه وايي چې آس ته راغلم او پر سپور سوم او واګي د آس مي راپورته كړې يعني په تاخت مي ځغلاوه چې عليه الصلوة والسلام او ملګرو ته ورنژدې سوم آس مي نوك وواهه. زه ځني غوځار سوم بيرته ولاړ سوم، او له بغل ځولۍ څخه مي د فال غشي راوكښل چې پر يوه نوشته وه افعل او پر بل نوشته وه لاتفعل. نو هغه غشى راوختى چې پر نوشته وه لاتفعل دا كار مه كوه يعني ضرر و عليه الصلوة والسلام او ملګرو ته مه رسوه. لكن د فال نافرماني مي وكړه لپاره د اوښانو د محبت. بيا چې ورنژدې سوم دومره قدر چې قرائت د عليه الصلوة والسلام مي واورېدى. او عليه الصلوة والسلام تر شا نه كتل او ابوبكر ﷺ هر ګړى تر شا كتل، بيا مي د آس پښي تر زنګنو په سخته مځكه كي ننوتلې زه ځني وغورځېدم او پر آس مي ږغ وكړى. آس وغورځېدى دومره دوړي يې وكړې لكه دود د اسمان پر خوا. بيا مي په غشو فال وكړى بيا غشى راووتى لاتفعل. دى وايي چې زه پوه سوم چې زه ددې له ضرره څخه منع سوم. نو مي ورناري كړې په بالامان سره، او ورته وه مي ويل چې تاسي ماته ودرېږئ فو الله دې زما قسم وي چې تاسي ته ازاروم او نه ضرر دررسوم. نو عليه الصلوة والسلام و ابوبكر ﷺ ته وويل چې ته ورته ووايه چې ته څه غواړې ما ورته وويل چې ستا قوم ستاسي د هر يوه پر سر سل اوښي ديت انعام ايښى دى او پوره حال د قريشو مي ورته ووايه، سراقه وايي چې ما عليه الصلوة والسلام ته زاد السفر او نور

متاع پېش کړه خو علیه الصلوة والسلام نه کړه قبول مګر دا یې راته وویل چې موږ پټ ساته، او پر دغه خوا پهره کوه هر څوک چې په موږ پسې راتلی مې پر بېرده، سراقه وایي چې دا وعده ما ورسره وکړه لکن دا مې ورته وویل چې ماته ته د امن یو خط راکړه چې په ما به څوک ستا له متابعانو څخه کار نه لري، نو عامر بن فهیرة چې د هغه خط یې زده وُ پر څرمن باندې یې د امن خط نوشته کړی ثم مضی رسول الله ﷺ.

**درویش وایي:** چې سراقه رښتیا داغسې وکړه چې تمامه ورځ پر دا لار ګرځېدی چې هر څوک چې په طلب کې د رسول الله ﷺ پر دغه لار راتله سراقه به ورته ویل چې ما دا خوا ټوله غوښتې ده دوی یعني علیه الصلوة والسلام نسته.

**درویش وایي:** چې څه وخت چې علیه الصلوة والسلام مکه مکرمه فتح کړه او د حنین له غزا څخه هم فارغ سوه، سراقه وایي چې زه علیه الصلوة والسلام ته ورراهي سوم چې ملاقات ورسره وکړم او د امن مکتوب هم راسره وُ، نو باره زه په جماعت کې د جماعاتو د انصارو ورګډ سوم، نو دوی زه په نېزو وهلم او راته ویل ګوښه سه حتی چې علیه الصلوة والسلام ته ورنږدې سوم او دی پر اوښه سپرېدی ما یې پنډۍ ته کتله په رکیب کې د اوښې وه ما په لاس کې مکتوب د امان پورته کړی او ورته وه مې ویل یا رسول الله هذا کتابک وانا سراقة بن مالک فقال رسول الله ﷺ یوم وفا وبرا، نو زه ورنږدې سوم او ایمان مې راوړی.

**بوه سه:** چې حاکم له عروه څخه او عروه له خپل پلار څخه داسې روایت کړی دی چې علیه الصلوة والسلام په سفر کې د مدینې د جماعت سره د تجارو چې مسلمانان وه چې له شام څخه راروان وه چې زبیر بن عوام ﷺ هم پکښې وُ ملاقي سوه، نو زبیر و علیه الصلوة والسلام او ابوبکر ﷺ ته سپین کالي ورکړه. او بیهقي د موسی بن عقبه څخه روایت کوي چې علیه الصلوة والسلام چې مدینې ته ورنږدې سو طلحة بن عبید الله چې له شامه راروان وُ او مکې ته تلی، نو د علیه الصلوة والسلام سره چې ملاقي سو او ابوبکر ﷺ کالي ورکړه.

**درویش وایي:** چې بیهقي له ابو هریره ﷺ څخه روایت کړی دی چې علیه

الصلوة والسلام چي مديني منورې ته ورنږدې سو ابوبرده اسلمي سره د اوویا کسانو د خپل قوم بني سهم په مخه ورغله. علیه الصلوة والسلام ورته وویل من انت؟ فقال بریدة، نو علیه الصلوة والسلام ابوبکر ﷺ وویل برد امرنا زموږ کار خنک سو یعني گرمي د هجرت تېره سوه. بیا علیه الصلوة والسلام ورته وویل له کومي قبیلې څخه یې؟ بریده ورته وویل من اسلم قال لابی بکر سلمنا. موږ سالم سوو له غمو څخه. بیا علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي وروسته لویه قبیله دي څه شی ده. هغه ورته وویل من سهم. قال لابی بکر خرج سهمک برخه دي تر لاسه کړه.

**فائده**: په حدیث کي د بخاري او مسلم راغلي دي چي د علیه الصلوة والسلام فال یې خوښ ؤ او بد فالي یې مکروه بلل. د فال دغه حدیث په زړه پوري مثال دی په درې ځایه کي فافهم.

**بهانه فائده**: تاریخ اسلامي وایي چي علیه الصلوة والسلام په دو شنبه زوکړی دی، او په دوشنبه نبي سوی دی، او په دوشنبه له مکې څخه وتلی دی، او په دوشنبه مدینې ته داخل سوی دی، او په دوشنبه معراج ته تللی دی، او په دوشنبه یې له دنیا فاني څخه سترگي پټي کړي دي. شاه عبدالعزیز دهلوي رحمه الله وایي چي ددې ټولو دوو شنبو معنا داده بعد از خدا بزرگ توئی قصه مختصر.

وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِينَ كَفَرُوا السُّفْلَىٰ

او خدای پاک وگرځول کلمه د هغو کسانو چي کفر یې کاوه یعني کلمة الشرک ودعوتهم الی الکفر "السفلی" یعني کښته چي علیه الصلوة والسلام یې له ازاره د مشرکانو او کافرانو د مکې خلاص کړی او صحیح سالم مدینې منورې ته ورسېدی او په ځایو کي تائید دده په ملکو سره چي دا یې اول وارؤ کمامر في الآیة السابقة وایده بجنود آه.

وَكَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ

یعني کلمة التوحید لا اله الا الله او کلمه د دعوت و اسلام ته. لوړ یې وگرځول. او خدای پاک په تدبیر کي د کارو غالب او پر هر کار کي حکمت لري.

## اِنۡفِرُوۡا خِفَافًا وَّثِقَالًا

ای اخرجوا وځئ اې مومنانو که سپک یاست او که درانه سره د علیه الصلوة والسلام وغزاته د تبوک چي ډېره سخت غزاوه. یو خو سخته ګرمي وه او بل سفر بعید وه. او بل ډېر لوی لښکر د کافرانو په مقابل کي ددوی و. په تاج المصادر کي وایي چي النفیر والنفور بسفر بیرون شدن.

**درویش وایي:** چي ترجمه کونکو د قرآن کریم مختلف تفسرونه د قرآن کریم کړي دي یعني د خفافاً او ثقالاً. نو بیان د ټولو تفسیرو بېله نسبته وقائل لحال الطول في بیان القائلین.

**پوه سه:** چي خفافاً جمع د خفیف ده او ثقالاً جمع د ثقیل ده او دا دواړه لفظه منصوب دي حال دي له فاعل څخه د اخرجوا.

تفاسیر: (۱) ځوانان او سپین ږیري (۲) فقراً او اغنیاً (۳) پیاده او سپاره (۴) په بدن جوړ او ناجوړه (۵) بې اولاده او اولاد لرونکي (۶) مسرعین خارجین ساعة سماع النفیر. او یا ثقالاً چي فکر په تللو کي وهي او ځان ورته اراسته کول (۷) او سلاح یا لرو وي او یا ډېره (۸) په خوشالي وزي او که په خوابدتیا (۹) که وتل ورته اسانه وي او که نه (۱۰) ږنګر یاست او که چاغ (۱۱) قوي یاست او که ضعیف. له ابن ابو مکتوم ﷺ څخه روایت دی چي په دواړو سترګو ړوند و علیه الصلوة والسلام ته یې وویل چي پر ما هم نفیر لازم دی قال نعم. نو ابن ام مکتوم کورته ولاړی توره او زغره یې راواخستله راغلی و علیه الصلوة والسلام ته ودرېدی فنزل قوله تعالی لیس علی الاعمی حرج" پر ړانده باندي ګناه نسته په نه وتلو کي. وایضاً نزل لیس علی الضعفا ولا علی المرضی الآیة. نو دا آیت تخصیص دی د عموم د آیت اولی فافهم. له زهري رحمه الله څخه روایت دی چي سعید بن المسیب ﷺ چي په یوه سترګه ړوند و هم په لښکر کي ووتی یو چا ورته وویل چي ته خو ناجوړی یې او په یوه سترګه ړوند هم یې ته ولي غزا ته ځې. ده ورته وویل استغفر الله زه که څه هم جنګ نه سم کولای لکن د لښکر سواد خو په ما سره ډېرېږي او متاع د غازیانو خو ورساتلای سم.

وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ

او جهاد کوئ په مالو سره خپل او په ځانو سره خپل په لار کې د خدای ﷻ یعني لاعلاء کلمة الله. دا جهاد مذکور خیر دی ستاسي لپاره که تاسي په خپل خیر او شر پوهېږئ. نو د "تعلمون" مفعول محذوف دی، او ان کنتم من اهل العلم نو تعلمون منزل منزلة اللازم دی. له محمد بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي علیه الصلوة والسلام مسلمانان باعث کړل پر صدقه باندي لپاره د تجهیز د جیش العسرة في غزوة تبوک. اول سړی چي کومک یې راوړی ابوبکر صدیق رضي الله عنه وُ چي څلور زره درهمه یې راوړه، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي کور ته دي څه شی پرېښو؟ ابقیت لهم الله ورسوله. او عمر رضي الله عنه نیمی د ابوبکر رضي الله عنه د مال راوړی. نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل هل ابقیت لاهلک شیئاً. ده ورته وویل نعم دومره لکه چي رامي وړه کور ته مي پرېښول، حضرت عباس، طلحة بن عبید الله، سعد بن عبادة او عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنهم هر یوه دوه سوه وقیه د سپینو زرو و علیه الصلوة والسلام ته راوړه.

**یوه سه:** چي یوه وقیه څلوېښت درهمه ده چي مجموع اته زره څلور سوه څلوېښت (۸۴۴۰) درهمه کېږي. او عاصم بن عدي رضي الله عنه نوي وسقه خورما راوړه چي یو وسق شپېته کاسې کېږي، او حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه دریمه حصه د تولو لښکر پر ذمه واخستله. محمد یوسف الصالحي رحمه الله وایي چي مجموع لښکر د غزوه تبوک دیرش زره (۳۰۰۰۰) کسه وُ، نو عثمان رضي الله عنه د لسو زرو کسو تجهیز پر ذمه واخستی. محمد بن اسحاق صاحب المغازي وایي انفق عثمان رضي الله عنه نفقة عظیمة لم ینفق احد مثلها، او بیهقي له عبدالرحمن بن سمرة څخه روایت کړی دی چي عثمان رضي الله عنه علاوه پر مذکور کومک څلور زره طلاوي د علیه الصلوة والسلام په لمن کي ورواچولې او علیه الصلوة والسلام لاس په دي دینارو کي وواهه او داسي یې دوه واره وویل ماضر عثمان ماعمل بعد الیوم.

له ابن عقبة رضي الله عنه څخه روایت دی چي منافقان په دې غزا کي د تبوک نه سوه شامل او دوی ته دا یقین وُ چي علیه الصلوة والسلام دوی به ژوندي له دې غزا

څخه نه سي راستانه، او بعض منافقان چي تر اتيا څه بالا وه راغله وعليه الصلوة والسلام ته يې د درواغو عذرونه پېش کړل چي موږ ته اجازه راکړه د قعود عن غزوة تبوک او عليه الصلوة والسلام چي دوی صادق په عذر کي وبلل اجازه د قعود يې ورکړه، فانزل الله فيهم.

**لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا**

**پوه سه:** چي اسم د کان محذوف دی ای لو کان مادعوا اليه که وای هغه شی چي دوی وربلل سوي وه هغه ته يعني المنافقين عرضاً يعني متاع الدنيا او يا غنيمت وای نژدې او اسان وای حصول د هغه.

**وَسَفَرًا قَاصِدًا لَّاتَّبَعُوكَ وَلَٰكِن بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ**

او سفر ميانه دومره لري نه وای له تبوک، دوی يعني منافقينو به ستا متابعت کړی وای او درسره وتلي به وای لپاره د ترلاسه کولو د غنيمت نه لپاره د رضا الهي، لکن لېري سو پر دوی مسافت د سفر د غزوة تبوک.

**وَسَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَوِ اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ يُهْلِكُونَ أَنفُسَهُمْ**

ژر دی چي دوی يعني منافقان به قسم واخلي په خدای ﷻ سره يعني ستا د راضي کولو لپاره او لپاره د دفع د تهمت د نفاق له خپل ځانو څخه، والمعنى چي ته رجوع وکړه له تبوک څخه په خير او عافيت سره، نو دوی اظهار العذر لپاره به وای والله، که زموږ په طاقت پوره وای يعني عذر مو نه درلودای موږ به وتلي وای ستاسي سره و تبوک ته لکن معذور و.

**فائده:** د "لخرجنا منکم" جمله په ځای کي د جواب ده قسم او د جواب د شرط دواړو راغلې ده.

**پوه سه:** چي دا آيت د عليه الصلوة والسلام معجزه ده ولي چي قبل الوقوع خدای ﷻ عليه الصلوة والسلام خبر کړی په ما سيقع من اعذارهم وحلفهم.

**پوه سه:** چي "يهلکون انفسهم" بدل دی له "سيحلفون" څخه يعني دوی خپل ځانونه په هلاک کي د عذاب الآخرة اچوي په سبب ددې چي دوی اول امتثال د

امر نبوي ﷺ په خروج کي د تبوک ته وکړي او بیا دروغ وایي چي معذوره وو او بیا د دروغو قسمونه اخلي وکل واحد من هذه الذنوب الثلثة کاف في هلاکهم انفسهم، لتعریضها الغضب الالهي والعذاب الاخروي.

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۴۲﴾

او خدای پاک علم لري پر دوی چي دوی دروغ وایي، په دې معنا چي دوی پوره طاقت د خروج درلودی.

عَفَا اللّٰهُ عَنْكَ

خدای پاک دي تاته اې محمد ﷺ عفوه وکړي.

**پوه سه:** چي سفیان بن عیینه رحمه الله وایي چي خدای ﷻ دمخه تر ګناه لفظ د عفو راوړی دی د اکرام او تعظیم لپاره د علیه الصلوة والسلام. او بعض مفسرین رحمهم الله وایي چي لفظ د عفو چي دمخه تېر سو ددې لپاره چي علیه الصلوة والسلام تر اندازه بالا مغموم نه سي لکمال خوفه وخشیته من الله تعالی، مثال یې دادی لکه د یو کریم سړي سره چي چا د ملاقات وعده کړې وي او د هغه خلاف وکړي، نو هغه داسي ورته وایي عفاالله عنک لم لاتزرني. او یا یو کریم سړی و یو ګران سړي ده ته د یو کار ویلي وي چي دا کار وکړه او هغه یې نه وکړي، نو دی ورته ووایي عفاالله عنک ماصنعت في حاجتي.

لِمَ اَذِنْتَ لَهُمْ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا وَتَعْلَمَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿۴۳﴾

تا ولي اجازه ورکوله په ترک د وتلو وتبوک ته هغه وخت چي دوی ستا څخه اجازه د قعود وغوښتل. تا ولې توقف نه کاوه په اجازه ورکولو کي، تر هغه وخته پوري چي تاته معلومېدای هغه کسان چي صادق دي په عذر کي لکه مریض، روند او نه درلونکی د نفقې د سفر او یا د نفقې د عیال، او ته پوهېدای په هغو کسانو چي په عذر کي دروغ وایي کالمنافقین. ابن عباس رضي الله عنهما وایي چي علیه الصلوة والسلام منافقان د تبوک تر غزا دمخه نه پېژندل. ولي چي علیه الصلوة والسلام په ظاهره اسلام سره عمل کاوه او د چا د باطن تجسس یې نه کاوه.

**فائده:** دا عتاب الهي ددې سببه نه دی چې علیه الصلوٰة والسلام ګناه وکړه حاش لله بلکې پر ترک د اولی چې علیه الصلوٰة والسلام تلوار وکړی په اذن ورکولو ددوی او ددوی حقیقت حال د عذر یې نه وپلټی فهو من قبیل حسنات الابرار سیئات المقربین کذا قال نجم الدین في التاویلات.

**فائده مهمه:** پوه سه! چې په اخیري آیت د خدای ﷻ له خوا څخه دا حکم فائده کېږي چې سړی یو کار یا خبري ته اراده وکړي باید اولاً فکر پکښې ووهي چې دا کار یا ګفتار به خیر وي او که به شر تلوار دي نه کوي. په حدیث شریف کې چې روایت یې انس ﷺ کړی دی یو سړي و علیه الصلوٰة والسلام ته وویل "اوصني" نو نبي علیه الصلوٰة والسلام داسي ورته وویل خذ الامر بالتدبر فان رئیت في عاقبته خیراً فامضه وان خفت غیاً فامسک.

**زباړه:** هر کار چې کوې فکر پکښې وهه که ستا په رایه عاقبت یې ښه درغلی نو یې وکړه او که یې عاقبت ستا په فکر "غی" یعني خراب ؤ نو یې پرېږده، علماً ﷺ په یوه خوله وایي چې عجلت او تلوار کار د شیطان دی، ولې ده چې د آدم ﷺ جسد ولیدی چې روح لا نه ؤ پکښې پوه کل سوی ده وویل تلوار وکړئ او وه یې ویل وعزة ربي ان جعل هذا خیرا وفضله علي فلا اطیعه وان جعلني خیرا منه لاهلکنه. چې وروسته چې آدم ﷺ ذي روح سو او خدای ﷻ ملکي او شیطان چې قبل الانکار یې نوم عزازیل ؤ په سجده ورته امر کړه، ابلیس منع وکړه له سجدې څخه او په امر الهي کې یې فکر ونه واهه.

**درویش وایي:** چې تفصیل هذه القصة في تفسیر سورة البقرة، او تاني یعني په مهلت کار کول له صفاتو څخه د رحمان دي ولهذا خلق السموات والارض في ستة ایام وان کان قادراً علی ان یخلقها في مقدار طرفة العین.

لَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالْمُتَّقِينَ ﴿٤٤﴾

ستا څخه اجازه د تخلف نه غواړي هغه کسان چې ایمان لري پر خدای ﷻ او پر ورځ د آخرت په تخلف او پاته کېدو کې له دې څخه چې جهاد وکړي په خپلو

مالو سره يعني د سفر خرڅ يا د سلاح د رانيولو لپاره او خپلو ځانو سره د سر بندني او ويني تويولو في سبيل الله. بلکي دوی د غزا د اعلان سره سمدلاسه په خپل کار سازي بخت کېږي او اذن ته د تلو هم حاجت نه لري فضلاً عن التخلف. او خدای پاک خبر دی د هر بنه په حالاتو د هغو کسانو چي له خدای ﷻ څخه بېرېږي.

إِنَّمَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَارْتَابَتْ قُلُوبُهُمْ فَهُمْ فِي رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُونَ ﴿٤٥﴾

**پوه سه:** چي کلمه د "انما" لپاره د حصر ده يعني ستا څخه اجازه د تخلف د غزا نه غواړي مگر هغه کسان يې غواړي چي دوی ايمان نه لري پر خدای ﷻ او پر ورځ د آخرت يعني پر ثواب د اخرت پر جهاد في سبيل الله باندي.

**درويش وايي:** چي مراد له دغو کسانو څخه منافقين دي، ولي دوی که څه هم اظهار د ايمان کاوه په خوله لکن دا اظهار د ايمان سره د نفاق د زړه فائده نه لري او د دوی زړونه شکي وه په صحت د دين اسلام لکن د خولې اظهار يې لپاره د حفظ الدم والاموال والاولاد کاوه، نو دوی په خپل دغه شک کي متحير وه، گاهي به يې په زړو کي دا ورگرځېدله چي بايد ورسره ولاړ سو و غزا ته د تبوک، ولي که مسلمانان له دې غزا څخه سالم راغله نو موږ که نه سو ولاړ موږ ته به درد سر وگرځي او مسلمانان به موږ ته لوی ضرر ورسوي او گاهي به يې په زړو کي دا ورگرځېدله چي نه ورسره ځو، ولي چي له دې غزا څخه دوی سالم نه سي راتلای.

**فائده:** خدای ﷻ په دواړو ډلو ايمان بالله واليوم الآخر ذکر کړی ددې لپاره چي ايمان بالله واليوم الآخر باعث د خروج په لښکر کي دی رجاءً لثواب الله في اليوم الاخر وعدم الايمان يقتضي عدم الخروج في الغزا لعدم رجا الثواب.

وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ لَأَعَدُّوا لَهُ عُدَّةً وَلَٰكِن كَرِهَ اللَّهُ انبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيلَ اقْعُدُوا مَعَ الْقَاعِدِينَ ﴿٤٦﴾

که دوی يعني منافقانو اراده د خروج وغزوة تبوک ته ستا سره درلودلای، نو دوی به اراسته کړی وای لپاره د خروج الی الجهاد يو کار سازي د خروج او جهاد

لپاره من السلاح والمتاع والمركوب، خدای پاک مکروه بولي وتل ددوی، ولي ددوی په وتلو کي خطره وه د شيطانت په مسلمانانو کي لکه وروسته چي به راسي، او تفرقه اچول په منځ کي ددوی، نو دوی یې منع کړه له خروج څخه بالجبن والکسل، او دوی ته وويل سوه چي کښېنئ د هغو کسانو سره چي هغه له غزا ؤ څخه ناست دي چي ناجوړيان دي يا شلان دي او يا ړنديان دي او يا ښځي دي او کوچنيان دي.

**سوال:** دوی ته خو چا نه وه ويلي چي کښېنئ سره د قاعدينو.

**ځواب:** هو! لکن دا آيت تمثيل دی ددوی د کراهة الخروج في قلوبهم او له وسوسة الشيطان لهم بالامر بالقعود، او يا اذن ته رسول الله ﷺ ددوی ته امر په اقعدوا وبالی.

**درويش وايي:** چي قصه د خروج د عليه الصلوة والسلام وه غزا ته د تبوک او تخلف د اکثرو منافقانو کما في التواريخ الاسلامية والآحاديث الصحيحة والتفاسير المعتبرة چي عليه الصلوة والسلام د رجب په مياشتي کي په سنه ۹ هـ نو لښکر يې سره غونډ کړی په ثنية الوداع کي چي د يو مشهور ځای نوم دی، محمد بن اسحاق، او محمد بن عمر او ابن سعد رحمهم الله وايي چي د لښکر تعداد تر دېرش زره يو څه زيات ؤ، او حاکم له ابو زرعه څخه په روايت وايي چي په تبوک کي اوويا زره کسه جمع وه، ددې دوو روايتو جمع کېدای سي چي د لښکر سره په لار کي نور مسلمانان ملګري سوي وي، او په لښکر کي لس زره آسان وه او د پنج شنبې په ورځ عليه الصلوة والسلام له مديني منورې څخه ووتی، ابن هشام وايي چي پر مدينه منوره يې محمد بن مسلمة الانصاري رضي الله عنه حاکم مقرر کړی، او بعض وايي چي سباع بن عرفطة رضي الله عنه يې مقرر کړی او بعض وايي چي ابن ام مکتوم چي نوم يې عبدالله بن شريح رضي الله عنه ؤ چي په سترګو ړوند ؤ مقرر کړی، والراجح محمد بن مسلمة رضي الله عنه، او عبدالرزاق د ابن وقاص رضي الله عنه په روايت وايي چي عليه الصلوة والسلام خو اولاً علي بن ابي طالب رضي الله عنه خليفه وګرځاوه لکن منافقانو به ويل چي علي يې د استثقال د ده مقرر کړی يعني علي رضي الله عنه ځان وځراوه، نو د منافقانو دا خبره چي علي رضي الله عنه

واورېدله پر اس سپور سو او خپل سلاح یې ورسره واخستله، علیه الصلوة والسلام سره د فوجه په جرف کې اړولې وه چې علي رضي الله عنه ورورسېدی. نو د منافقانو هغه خبره چې دده په شان کې یې کړې وه علیه الصلوة والسلام ته یې بیان کړه علیه الصلوة والسلام علي رضي الله عنه ته وویل چې دوی درواغ وایي، لکن ما چې ته وروسته پرېښولې ددې لپاره چې زما اهل او ستا اهل په مدینه کې دي فارجع واخلفني في اهلي واهلک. فلا ترضی یا علي ان تکون مني بمنزلة هارون من موسی علیه السلام یعني لکه موسی علیه السلام چې کوه طور ته تلی د تورات د راوړلو لپاره خلیفه یې هارون وګرځاوه الا انه لانبي بعدي فرجع علي الی المدینة وهذا الحدیث رواه البخاري ومسلم. تاریخ اسلامي او د احادیثو راویان وایي چې عبدالله بن ابی رئیس المنافقین جلا فوج یې جوړ کړی او د علیه الصلوة والسلام د وتلو سره دی هم د خپله فوج سره ووتی له مدینې څخه و طرف ته د ذباب چې یو غر دی مدینې ته نژدې، نو دی تر هغو هلته و تر څو چې علیه الصلوة والسلام تبوک ته روانېدی، نو څه وخت چې علیه الصلوة والسلام د تبوک پر خوا حرکت وکړی ابن ابي بېرته مدینې ته راغلی او متخلفینو منافقانو ته به یې ویل یغزو محمد بني الاصفر چې رومیانو ته وایي مع جهد الحال چې دده حال ډېر د تکلیف دی او ډېره ګرمي ده او مسافت د تبوک هم ډېر لېرې دی چې محمد د بني الاصفر د جنګ طاقت او توان نه لري یحسب محمد ان قتال بني الاصفر معه اللعب چې جنګ د بني الاصفر سره یو ساتېری دی والله لکاني انظر الی اصحابه مقرنین في الحبال وفي روایة متفرقین في الحبال لکه چې ورته ګورم چې دده اصحاب به د بل په رسیو تړلي وي او یا به په غرو کې سره متفرق وي. فانزل الله تعالی في ابن ابی واصحابه قوله تعالی.

**لَوْ خَرَجُوا فِيكُم مَّا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا**

که منافقین له تاسي سره وتلي وای وجنګ ته د تبوک دوی به تاسي ته نه وای زیات په خروج کې هیڅ شی مګر شر او فساد او فتنه چې په زړو کې د مسلمانانو جبن بزدلي اچولای چې د بني اصفرو فتح اسان کار نه دی او په عین حال کې به کومک د کفارو سره کوي ستاسي په جاسوسي سره او په غفلت کې ستاسي ونحو ذالک.

وَّلَاۡاَوۡضَعُوۡا خِلٰلَكُمۡ يَبۡغُوۡنَكُمُ الۡفِتۡنَةَ‌ۚ

او دوی به چابک کوي شیطانت او د شکست غلطي اوازې ستاسي په منځ کي، دوی غواړي چي ستاسي مسلمانانو په منځ کي اختلاف پیداسي او د کفارو رعب او بیره ستاسي په زړو کي پیدا کړي.

وَفِيۡكُمۡ سَمّٰعُوۡنَ لَهُمۡ‌ؕ وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌۢ بِالظّٰلِمِيۡنَ‏

او په تاسي کي داسي ضعیف العقیدة مسلمانان سته چي ددوی خبره اوري او ددوی پیروي کوي، او خدای ﷻ بنه خبر دی د ظالمانو په حال، نو خدای پاک به دوی ته جزا ورکړي.

لَـقَدِ ابۡتَغَوُا الۡفِتۡنَةَ مِنۡ قَبۡلُ

دوی طلب د فتنې کړی دی په تفرق کي د اصحابو ستا او په فراګنده والي د کار ستا دمخه تر دې ورځي د تبوک لکه په غزوة کي د احد چي ابن ابی سره د درې سوه اتباعو دده له لښکر څخه ووتل، او دا یې خیال وُ چي په مسلمانانو کي به تفرق او ترک النصرة پیداسي.

وَقَلَّبُوۡا لَكَ الۡاُمُوۡرَ حَتّٰى جَآءَ الۡحَـقُّ وَظَهَرَ اَمۡرُ اللّٰهِ وَهُمۡ كٰرِهُوۡنَ‏

او دوی ډېر فکرونه وهلي دي او ډېري حیلې یې کړي دي په ابطال کي ستا د دین، حتی چي راغلی حق چي نصرت د خدای ﷻ دی ستا د دین. او ښکاره سو امر د خدای ﷻ چي روز افزون ستا د دین اعلاً ده پر خلاف ددوی د حیلو في الابطال، او ددوی له ظهوره د دین ستا کاره او دښمنان او بد یې راتله.

**درویش وایي:** چي د منافقانو دغه فتنې وې (۱) د احد په غزا کي چي درې سوه کسان له لښکره ووتل او علیه الصلوة والسلام ته فقط اووه سوه کسه پاته سوه (۲) له لښکره ووتل په غزا کي د تبوک کمامر تفصیله (۳) په غزا کي د خندق چي دوی وویل یا اهل یثرب لامقام لکم فارجعوا (۴) په شپه کي د عقبه چي د علیه الصلوة والسلام اوښه پر لوره راپورته سوه او لاندي یوه ژوره شپله وه، نو دوی په د اوښي په پښو کي یو شی وروغورځاوه چي وترپېږي او علیه

الصلوة والسلام وشپلې ته وغورځوي (۵) داغه رنګه په ليلة العقبه کې دوولس کسه منافقان پر ثنية الوداع چې نابيره يې پر عليه الصلوة والسلام حمله وکړي، او خداى ﷻ ددوی ددغي نابيري حملې څخه دی مبارک خبر کړی او دوی ناکام سوه او عليه الصلوة والسلام سالم پاته سو (٦) دا خبره ابن ابي وکړه لئن رجعنا الى المدينة ليخرجن الاعز منها الاذل کما حکى الله في القرآن في موضع اخر يعني في سورة المنافقين الى غير ذالک من قبائحهم وحيلهم في ابطال دين الاسلام ومحوه عن وجه الارض، ولنعم ماقيل.

چون ترا اندر حريم قرب خود ره داده شاه
از نفير پرده دار و طعن دربان غم مخور

**درویش وايي:** چې په مذکوره آيتو تقبيح د حال د منافقانو او تسلي د عليه الصلوة والسلام او مؤمنانو ده، وبيان كون العاقبة للمتقين، وان الله معهم بالعون والنصر الى يوم الدين.

وَمِنْهُم مَّن يَقُولُ ائْذَن لِّي وَلَا تَفْتِنِّي ۚ

او بعض له منافقانو څخه هغه څوک دي چې وايي ماته اجازه د تخلف راکړه او ما په فتنه کې مه اچوه.

**پوه سه:** چې دا منافق سړی جد بن قيس نومېدی. دا منافق و عليه الصلوة والسلام ته راغلی چې ماته اجازه د خلف وکړه چې زه عذر لرم عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې ته د غزا تياري وکړه ته خو غني يې او شايد چې له غزا څخه چې راځې له ښځو څخه د بني الاصفر به دې تر شا سپره وي، جد په ډېره بې حيايي سره ورته وويل چې زما قوم په ما خبر دی چې هيڅ څوک تر ما د ښځو شوقي نسته. نو زه پر ځان بېرېږم که ما د بني الاصفر ښځي يعني روميانې چې ډېرې ښائستې دي که مې وليدلې زما به صبر نه ځندي وسي او په فتنه به اخته سم، عليه الصلوة والسلام مخ ځندي وا ړاوه، وقال قد اذناک يعني زما اجازه ده پاته سه. نو د جد منافق زوی چې نوم يې عبدالله ؓ او د بدر په غزا کې هم شامل و خپل پلار جد ته يې وويل چې ولې دې د عليه الصلوة والسلام خبره رد کړه، قسم په

خدای ﷺ دی که په بني سلمة کي تر تا مالداره سړی سته، نو ولي غزأ ته نه ځې؟ جد مذکور ورته وویل مالي وللخروج چي ډېره ګرمي ده او سخت ګرم بادونه هم چلېږي او سختي هم ده. نو زه څرنګه و غزأ ته د بني الاصفر ولاړ سم. او جد مذکور ورته وویل چي زه په کور کي له بني الاصفر څخه بېرېږم زه به هلته ددوی غزأ ته ځم! او ورته زياته یې کړه چي زه په حوادثو د زماني ډېر ښه پوهېږم يعني چي عليه الصلوة والسلام او مسلمانان به په جنګ کي د بني الاصفر مغلوبه کېږي. او زوی ته یې دا ښکاره کړه چي ما و عليه الصلوة والسلام ته وویل "لاتفتني" هغه صرف بهانه وه اصلي سبب دادی چي زه له بني الاصفر څخه بېرېږم. عبدالله ﷺ خپل پلار ته ډېر سخت الفاظ وويل لا والله ولكنه النفاق. هغه خبري نه دي په خدای ﷺ دي مي قسم وي چي نفاق دي مانع د خروج دی. جد مذکور چو ته پور ته کړی خپل زوی یې پر دا مخ په ووهه زوی یې څه ورته و نه ويل ځندي ولاړ سو فانزل الله تعالى هذه الاية "ومنهم من يقول آه" بعضو مفسرينو په مختصر عبارت سره داسي شان نزول بيان کړی دی لاتفتني بسبب ضياع المال والعيال اذ لاكافل لهم بعدي والله اعلم بالصواب وعنده العلم بالكتاب.

أَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوا وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ ۝

آګاه اوسه چي په فتنه کي د کفر او نفاق ظاهر دوی واقع سوي دي او په تحقيق سره جهنم محيط دی پر کافرانو.

إِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ وَإِنْ تُصِبْكَ مُصِيبَةٌ

که تا ته ورسېږي په بعضو غزواتو کي نېکي يعني ظفر او غنيمت لکه په بدر کي. دوی يعني منافقان خوابدي کېږي لفرط عداوتهم لک وللمؤمنين. او که تا ته ورسېږي يوه سختي لکه په غزأ کي د احد. نو دوی خوشاله سي په تخلف سره يعني وايي چي ښه سوه موږ نه وو ورسره موږ ته به هم قتل رسېدلی وای.

يَقُولُوا قَدْ أَخَذْنَا أَمْرَنَا مِنْ قَبْلُ وَيَتَوَلَّوْا وَهُمْ فَرِحُونَ ۝

دوی وای چي موږ خو خپل کار دمخه لا سم کړی چي له غزأ څخه د احد په کور کي کښېنستو. او دوی له مجلس څخه چي دوی خپل په منځ کي سره کاوه



Scanned by CamScanner

خوشاله وي په مصيبت د مسلمانانو چي اوويا كسه شهيدان يې په غزا كي د احد له لاسه وركړله. ونحن المؤمنون نقول انا لله وانا اليه راجعون.

قُل لَّن يُصِيبَنَآ إِلَّا مَا كَتَبَ ٱللَّهُ لَنَا هُوَ مَوْلَىٰنَا ۚ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُؤْمِنُونَ ۝

ته ورته ووايه يعني منافقانو ته چي هرګز موږ ته نه رسېږي مګر هغه شی چي ليکلی دی خدای پاک زموږ لپاره يعني په لوح محفوظ کي. او خاص پر خدای ﷻ دي توکل وکړي مؤمنان.

**پوه سه:** چي مراد د "ماکتب الله" څخه شهداء د احد دي.

قُلْ هَلْ تَرَبَّصُونَ بِنَآ إِلَّآ إِحْدَى ٱلْحُسْنَيَيْنِ ۖ

ته ورته ووايه يا محمد ﷺ چي تاسي ايها الکافرون والمنافقون انتظار نه لرئ وموږ ته مګر يو د دوو ښو خصلتو څخه چي عاقبت يې زموږ لپاره ښه دی يا قتل او شهادت في سبيل الله. دا قتل که څه هم په نظر بد دی لکن زموږ په اسلام کي يو عاقبت حسنه دی لانها مورثة للجنة طول الحيوة المؤبدة او دويم عاقبت حسنه نصر او غنيمت دی.

**پوه سه:** چي اصل د "تربصون" تتربصون ؤ حذف احدی التائين والمخاطب رسول الله ﷺ. او استفهام انکار دی يدل علی النفي والا استثنآ له نفي څخه.

عن ابي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ انتدب الله لمن يخرج في سبيل الله (خدای ﷻ ضمانت او وعده کړې ده د هغه چا لپاره چي ووزي په لار کي د خدای يعني لاعلآ کلمة الله) لايخرجه الا ايمان بي وتصديق برسولي (دی نه وي ايستلی مګر ايمان پر ما او تصديق د رسولانو زما يعني ريآ او د غنيمت قصد يې نه وي) ان ارجعه بما نال من اجر او غنيمة (ددې وعده چي زه به دی خپل کور ته راستانه کوم سره د هغه چي ده پيدا کړی يا ثواب او يا غنيمت.

**پوه سه:** چي دا کلمه د "او" لپاره د منع الخلود ده. ولي چي جمع يې روا ده چي هم دي ثواب د خروج في سبيل الله خدای پاک ورکړي او هم غنيمت او که غنيمت نه وي ثواب خو لازمي دی دا پر تقدير ددې چي دی ژوندی پاته سي وادخله الجنة که دی شهيد سي. متفق عليه.

وَنَحْنُ نَتَرَبَّصُ بِكُمْ أَنْ يُصِيبَكُمُ اللهُ بِعَذَابٍ مِّنْ عِنْدِهِ أَوْ بِأَيْدِينَا فَتَرَبَّصُوا إِنَّا مَعَكُمْ مُّتَرَبِّصُونَ

او موږ انتظار کوو وتاسي ته که توبه له کفره او نفاقه ونه کړئ یو د دوو بدو حالاتو، چي تاسي ته دي ورسوي خدای پاک عذاب له خپل جانبه یعني په ورځ د قیامت یعني که تاسي پر موږ غالبه سئ په دنیا کي، او یا به زموږ په لاسو تاسي ته عذاب درکړي وهو القتل على الكفر المفضي الى عذاب النار، نو تاسي انتظار کوئ زموږ و عاقبت ته موږ ستاسي سره په انتظار کي یو ستاسي د عاقبت وهي القتل او الموت على الكفر.

قصه عاد و ثمود از بهر چیست....... تابدانی کانبیاً را ناز کیست
این شان خسف وقذف وصاعقه....... شد بیان عز نفس ناطقه

له نفس ناطقه څخه انبیاً علیهم السلام مراد دي

قُلْ أَنْفِقُوا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا

ته ورته ووایه چي تاسي انفاق وکړی په خپله خوښه او یا په زوره "قل" دا جواب د جد بن قیس دی من المنافقین چي ده د تخلف اجازه له علیه الصلوة والسلام څخه وغوښتل او ورته وه یې ویل چي زه مالي مرسته درسره کوم یعني په غزا کي د تبوک او له غزا څخه معذور یم کمامر من عذره الكاذب.

**پوه سه:** چي "طوعا وکرها" حال دی له ضمیر څخه د "انفقوا" ای حال کونکم طائعین او حال کونکم کارهین.

**فائده:** "طوع" داده چي د خدای ﷻ له خوا او د علیه الصلوة والسلام له خوا پر دوی باندي الزام او امر د انفاق نه وي بلکي د خپل زړه په خوښه چي طیب النفس یې بولي انفاق کوي کالمؤمنین المخلصین في غزوة تبوک على مامر تفصیله. او "کره" داده چي د خدای او د رسول له خوا پر الزام وي لکه منافقین ولي چي ددوی خو په دې انفاق کي سترګي او طمع د ثواب نه درلوده، نو انفاق ددوی صرف اجبار او اکراه وه.

**درویش وایي:** چي مظهري وایي چي دا "انفقوا" امر بمعنى الخبر ده انتهى

او وجه یې نه ده بیان کړې چې ولي والله درصاحب روح البیان حیث بین وجهه وقال في معنی انفقوا ای "انفقتم" ولې امر که پر خپله سي فلاوجه لان یؤمر بشئ ثم یخبر انه عبث لایجدي بوجه مابقوله لن یتقبل منکم.

لَّن يُتَقَبَّلَ مِنكُمْ

ستاسي څخه نه قبلېږي. ددې نه قبلېدلو دوه احتماله دي یا دا معنا ده چې علیه الصلوة والسلام یې نه قبلوي بلکې ودوی ته یې برته ردوي او یا یې خدای پاک نه قبلوي یعني دوی ته پر دغه انفاق که طوعاً وي او که کرهاً وي ثواب نه ورکوي ولې چې شرط د ثواب پر انفاق ایمان بالقلب واللسان دی وهم منافقون لیس لهم ایمان بالقلب بل باللسان فقط لپاره د حفاظت د خپلو وینو او د ما او د عیال چې دې ته ایمان للسیف وایي.

**پوه سه:** چې ائمه الدین رحمهم الله وروسته تر رحلت د علیه الصلوة والسلام د هغه چا چې دوی به په پوهېدله چې منافق دی صدقه به یې نه څندي قبلوله.

إِنَّكُمْ كُنتُمْ قَوْمًا فَاسِقِينَ

په تحقیق تاسي واست یو قوم چې خارج له ډلي څخه د مسلمانانو یاست، دا جمله علت دی د عدم قبول د انفاق ددوی چې داسي جملې ته په عربي استیناف بیاني وایي کما تقرر في علم البیان.

**درویش وایي:** چې په مذکوره آیاتو کې خدای پاک افعال ذمیمه د منافقینو په تفصیل سره بیان کړه او ددوی اقوال شنیعه یې هم بیان کړه او بده د کافرانو هم همدغه ډله ده او اسفل السافلین چې د دوږخ ډېره سخته طبقه ده هم ددوی ځای دی. په صحیح حدیث کې راغلي دي "من شر الناس ذوا الوجهین (له بدو خلګو څخه دوه مخی سړی یعني به المنافقین) یاتي هولاً بوجه وهولاً بوجه آخر (چې راتګ کوي یوې ډلي ته په یوه مخ او بلې ډلي ته په بل مخ لکه منافقان چې په مسلمانانو ته راتله په مخ د اسلام لساني او کافرانو ته به ورتله په مخ د کفر قلبي لکن چونکه حقیقت د ایمان تصدیق قلبي نه و، نو ځکه د کافرانو په ډله کې حساب سوه بلکې اخبث الکفرة، او چونکه په دوی کې ایمان لساني و، نو د اسلام

احکام من عدم قتلهم ونهب اموالهم وغیرها پر جاري وه) وکان له یوم القیامة لسانان من نار، کذا في ابکار الافکار (او ده لره به وي په ورځ د قیامت دوې ژبې د اور، او دا حدیث په ابکار الافکار کي چي د یوه کتاب نوم دی راغلی دی)

وفي الحدیث الصحیح آخر لا یستقیم ایمان حتی یستقیم قلبه ولا یستقیم قلبه حتی یستقیم لسانه (په بل صحیح حدیث کي راغلي دي چي نه سي برابر بدلای یعني پر نهج شرعي د بنده ایمان تر هغو پوري چي زړه یې برابر نه سي په تصدیق قلبي سره، او زړه یې نه سي برابر بدلای پر لار چي ژبه یې برابره نه سي یعني چي په ژبه غیبت بهتان دروا غ او کلمات د کفر نه کوي او نه یې وایي.

وَمَا مَنَعَهُمْ أَنْ تُقْبَلَ مِنْهُمْ نَفَقَاتُهُمْ إِلَّا أَنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَبِرَسُولِهِ

او نه دي منع کړي دوی چي قبول دي کړه سي له دوی څخه نفقات ددوی.

**یوه سه:** چي تقبل صیغه مجهول ده مفعول مالم یسم فاعل نفقاتهم دی چي هغه مؤنث غیر حقیقي دی نو تذکیر او تانینت د فعل مسند دواړه یې روا دی له دې کبله بعض قرأ تقبل په تانیث وایي او بعض قاریان یې په تذکیر وایي یعني یقبل، او فاعل د منع انهم آه دی. یعني دمخه یې کفر کړی ؤ په خدای ﷻ او په رسول د خدای ﷺ حاصل دا چي کفر ددوی مانع دی له قبول څخه د صدقاتو ددوی.

وَلَا يَأْتُونَ الصَّلَاةَ إِلَّا وَهُمْ كُسَالَىٰ وَلَا يُنْفِقُونَ إِلَّا وَهُمْ كَارِهُونَ ﴿٥٤﴾

او دوی نه ورځي لمانځه ته د مسجد نبوي مګر په داسي ډول چي ځانونه سست اچوي، ولي چي ددوی لمونځ خو د زړه له شوقه نه دی بلکي له بېرې دی، او نه کوي انفاق یعني في سبیل الله مګر نه دوی کړه او بد یې ګڼي، ولي چي دوی په ورکړه د نفقه في سبیل الله د ثواب عقیده نه لري لکفرهم، او که یې انفاق ونه کړی له عذابه نه بېرېږي دوی زکوة ورکول مغرم باله یعني صرف تاوان او نه ورکول یې غنیمت باله.

**پوښتنه:** په دمخه آیت کي خدای پاک وویل "انفقوا طوعاً وکرهاً" او دلته یې سلب کلي ښندي وکړی یعني في قوله تعالی "ولا ینفقون الاوهم کارهون آه" نو ددې آیت او دمخه آیت به تنافي نه وي؟

**جواب:** مراد لـه طوع څخـه كمـامر انفاق دى من غير الزام من الله ورسوله وذالك الطوع لم يكن الاء ريا وخوفاً فليس ذالك الانفاق الا عن كراهة واضطرار نه له رغبت او محبت څخه فلا منافات بين الطوع والكراهة فافهم.

**فائده:** كسالى جمع د كسلان ده لكه سكارى جمع د سكران ده، او استثناً په الاوهم كسالى او په الاوهم كارهون كي اشتثناً مفرغ ده من اعم الاحوال. والمعنى لا يأتون الصلوة في حال من الاحوال الا وهم كسالى ولا ينفقون في حال من الاحوال الا وهم كارهون. ابوبكر خوارزمي رحمه الله وايي:

لا تصحب الكسلان في حالاته ......... كم صالح بفساد آخر يفسد
عدوى البليد الى الجليد سريعة ......... والجمر يوضع في الرماد فيخمد

يعني سكروتي چي په هيرو كي كنبنږدي مري يعني تجاوز د مرض د بې عقل سري وعاقل سړي ته رسيږي، والمصراع الثاني دليل للمصراع الاول فافهم

فَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ وَلَآ أَوْلَادُهُمْ

**پوه سه:** چي مخاطب يا عليه الصلوة والسلام دى يا هر مؤمن چي صالح د خطاب وي، د اعجاب معنى سرور دى بما يستحسن، والمعنى ته مستحسن مه بوله ما انعمنا على المنافقين من الاموال والاولاد، ولي دا مال او عيال استدراج دى دوى لره.

إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُم بِهَا فِي الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا

په وركولو سره د اموالو او اولادو ودوى ته.

**پوه سه:** چي دا جمله دليل ده لقوله تعالى فلا تعجبک آه، په قرار د قانون نحوي وروسته تر لام جاره ان ناصبه مقدر دى لعدم جواز دخول حرف الجر على الفعل، نو يعذب منصوب په هغه ان دى والمعنى اراده لري خداى جل جلاله په وركولو د اموالو او اولادو تعذيبهم په هغو سره ددې دنيا په ژوند كي. ولي چي دوى د جمع الاموال په باره كي ځومره كړاونه. سختى او سرگرداني پر سر اخستي دي، او په انفاق في سبيل الله كي ځومره درانه د غم او حسرت بارونه ددوى پر زړو واقع كيږي او هم د اولادو له لاسه، حتى چي د اموال او اولاد لپاره يې د خداى جل جلاله او د رسول صلى الله عليه وسلم دښمنى ته غاړه ايښې ده يعني بالنفاق.

وَتَزۡهَقَ أَنفُسُهُمۡ وَهُمۡ كَٰفِرُونَ ۝٥٥

**پوه سه:** چي زهوق وتل دي په تکليف سره يعني روحان د منافقينو به ددوی له جسدو څخه په سختي سره وځي او دوی به کافران وي، او د مرګ په وخت کي به غم او تاسف وسره ملګری وي.

**درويش وايي:** چي سردار دوعالم به په وخت کي د زکندن لاس په اوبو چنخ کړي او پر مخ به يې تېر کړی او دا به يې ويل اللهم للموت سکرات کذا رواه البخاري وغيره، فما کان حال المنافقين وقت قبض ارواحهم من اجسادهم فصدق قوله تعالی وتزهق۔

وَيَحۡلِفُونَ بِٱللَّهِ إِنَّهُمۡ لَمِنكُمۡ وَمَا هُم مِّنكُمۡ وَلَٰكِنَّهُمۡ قَوۡمٞ يَفۡرَقُونَ ۝٥٦

او دوی قسم بالله اخلي چي موږ بېله شکه ستاسي د مسلمانانو له ډلي څخه يو خدای پاک دا خبره ددوی رد کړه او وايي چي دوی ستاسي څخه نه دي، ولي چي په زړو کي کافران دي ولکن حقيقت دادی چي دا خبره چي دوی کوي دوی داسي قوم دی يعني منافقين چي له تاسي څخه بېرېږي چي زموږ سره به مسلمانان داسي کار وکړي لکه د مشرکانو سره چي يې کوي؛ يعني موږ به مړه کړي مالونه به مو غنيمت کړي او عيالونه به مو سبي کړي۔

لَوۡ يَجِدُونَ مَلۡجَـًٔا أَوۡ مَغَٰرَٰتٍ أَوۡ مُدَّخَلٗا لَّوَلَّوۡاْ إِلَيۡهِ وَهُمۡ يَجۡمَحُونَ ۝٥٧

که دوی پيدا کړي يو ځای د پناه يعني محکمه قلعه او يا يو قوم چي دوی ته پناه ورکړي، او يا يو داسي ځايونه چي دوی په هغو کي ځانونه پټ کړي لکه په غرو کي محفوظ ځايونه او يا په ځمکه کي زېر خانې، او ځای د دخول چي په تکليف ورننوځي د "مدخلاً" اصل مد تخلاً ؤ تا يې په دال بدله کړه او په دال کي يې مدغمه کړه، نو چونکه د تفعل باب د تکلف لپاره راځي نحو تزهد فلان نو ځکه يې ما ترجمه په تکلف وکړه "لولوا آه" دوی به وتښتي ستاسي له بېرې وه يوه له دغو ځايو، او دوی به چابک او بالفور ودغو ځايو ته ولاړ سي حاصل د آيت دادی چي ددغو منافقينو ستاسي سره يو ځای والی نه دی خوښ که ستاسي د

مصاحبت ځای د خلاصون پیدا کړي، نو د تاسي یوه دقیقه مصاحبت ونه کړئ لکه د مجبوریه ستاسي راشه درشه کوي.

**درویش وایي:** چي چونکه عطف د دغو مواضعو او ځایو په کلمه د او وه، نو ځکه ضمیر مفرد په الیه کي ورته راجع کړی کماهو القانون النحوي.

**وَمِنۡهُم مَّن يَلۡمِزُكَ فِى ٱلصَّدَقَٰتِ**

او بعض د منافقانو عیب وایي پر تا یعني رسول الله ﷺ، په باره کي د تقسیم د صدقاتو یعني یا غنیمتونه او یا زکوتونه.

**پوه سه:** چي همز او لمز په یوه معنی دي یعني عیب ویل او هماز او لماز دواړه په معنی د عیب ویونکي دي. ففي سورة ویل لکل همزة لمزة المعنی واحد. او بعض مفسرین رحمهم الله وایي چي لامز هغه سړي ته وایي چي مخامخ پر بل باندي عیب وایي، او هامز هغه چاته وایي چي په غیاب کي پر چا عیب وایي.

**پوښتنه:** دغه لامز غیر معین په آیت کي څوک و؟

**ځواب:** په دې کي اختلاف دی روح البیان وایي چي دا سړی ابو الحواظ منافق و، او محمد بن عمر رحمه الله وایي چي دا منافق معتب بن قشیر و او ابن عمر او ابو سید وایي چي دا سړی د بني تمیم له قومه څخه و چي ذوی الخویصرة یې باله چي اصلي نوم یې خرقوس بن زهیر و چي هم دی د خوارجو د فرقو اصلي باني دی. په هر صورت د حدیثو مبارکه وو ته به نظر وکړو، بخاري، مسلم او بیهقي رحمهم الله له عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوٰة والسلام چي د هوازن غنیمتونه د حنین په ورځ وېشل، بعض مؤلفة القلوب و اشرافو ته د عربو یې برخه ورکړه یو سړی له انصارو څخه یعني من قومهم.

**درویش وایي:** چي د من قومهم د قید فائده داده چي په قوم خو د انصارو و لکن دی منافق و. چي دا قسمت دی چي عدالت نه دی پکښې او یا یې داسي وویل ما ارید فیها وجه الله، ابن مسعود رضي الله عنه وویل زه والله دا خبره به و علیه الصلوٰة والسلام ته رسوم فاخبرته. نو د علیه الصلوٰة والسلام مخ مبارک سور سو او وه یې ویل "فمن یعدل اذا لم یعدل الله ورسوله" وروسته یې وویل چي

خدای ﷻ دي رحم وکړي پر موسی ﷺ چي دی د یهودو له لاسه تر ما ډېر ازار سوی دی، او داغه رنګه بخاري، مسلم او بیهقي رحمهم الله له ابي سعید الخدري ﷛ څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام په دوران کي د قسمت د هوازنو د غنیمت یو سړی چي د بني تمیم له قوم څخه و یقال له ذوالخویرة چي اصلي نوم يې دمخه تېر سو، نو علیه الصلوة والسلام ته ودرېدی فقال یا رسول الله اعدل فغضب رسول الله ﷺ وقال ویلک فمن یعدل اذا لم اعدل قد خبت وخسرت اذا لم اعدل، نو عمر بن الخطاب ﷛ علیه الصلوة والسلام ته وویل چي ماته اجازه راکړه چي ددې منافق سر ورپرې کړم. نو رسول الله ﷺ و عمر ﷛ ته وویل معاذ الله ان یتحدث الناس اقتل اصحابي (پناه په خدای ﷻ ده چي خلګ به وايي چي زه خپل اصحاب وژنم یعني په حقیقت حال خو خلګ نه دي خبر چي دا سړی منافق و لکن دا به ضرور وايي چي دی یعني نفسه المبارک خپل اصحاب وژني، ولي چي ظاهر خو دا سړي اظهار د اسلام کړی دی که څه منافق دی.

**درویش وايي:** چي امام مظهري رحمه الله سره ددې چي دا ټولـه روایات يې نقل کړي دي په اخیر کي وايي وعندي نزلت في قسمة صدقات جآبها المسلمون لتجهیز جیش العسرة والله اعلم انتهی.

**درویش وايي:** چي دا قول د مظهري په مقابل کي د روایت د بخاري، مسلم او بیهقي یو عجیب قول دی، ولي دا ائمة الحدیث رحمهم الله په تاریخ د واقعه او په شان نزول ددې آیت بنه خبر وه او که مظهري رحمه الله؟ او بغوي رحمه الله وايي چي د مظهري اکثر اقوال له ده څخه منقول دي هغه هم رايه د ائمة مذکوره رحمهم الله بیان کړي ده فالانصاف موکول الی العلمآ.

فَإِنْ أُعْطُوا مِنْهَا رَضُوا وَإِن لَّمْ يُعْطَوْا مِنْهَا إِذَا هُمْ يَسْخَطُونَ ۝

**پوه سه:** چي کلمه د اذا مفاجات په ځای کي د کلمه د فان جزائیه ولاړه ده.

**پوه سه:** چي ددې آیت ترجمه په قرینه د وروسته آیت داسي ده فان اعطوا کثیراً رضوا وفرحوا وان اعطوا قلیلاً سخطوا، نو ددې آیت معنا داده چي که دوی ته ډېره لویه برخه ورکړل سي، نو دوی راضي او خوشحاله وي. او که دوی

ته لږ برخه ورکړل سي، نو دوی ناراضه او په غصه کي ډوب وي، هغه قرينه چي ما ذکر کړه دا آيت دی.

وَلَوْ أَنَّهُمْ رَضُوا مَا آتَاهُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَقَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ سَيُؤْتِينَا اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَرَسُولُهُ إِنَّا إِلَى اللَّهِ رَاغِبُونَ ﴿٥٩﴾

که دا ثابته سي چي دوی راضي سوي وايي په هغه مال او برخه سره چي خدای ﷻ او رسول د خدای ﷻ په امر د خدای ﷻ ودوی ته ورکړي وه، او دوی ويلي وای چي کافي برخه راکړه خدای ﷻ او ژر دی چي رابه کړي موږ ته خدای له رزق څخه او رسول د خدای يعني له بله درکه څخه يا په نورو غنائمو کي موږ و خدای ﷻ يعني د خدای وفضل ته راغب او اميدواره يو.

**درويش وايي:** چي "لو" شرطي فعل غواړي نو ځکه مفسرين رحمهم الله وروسته تر لو ثبت محذوف بولي.

**درويش وايي:** چي موږ دغه آيت قرينه د ورکړي د لږ برخي وباله دغه عبارت دی "ما اتاهم الله ورسوله" ولي چي ددې عبارت څخه صراحة دا معلوميږي چي عليه الصلوة والسلام ودوی ته لږ برخه ورکړې وه، مفسرين رحمهم الله وايي چي دا تول آيت په ځای کي د شرط دی او جزا يې محذوفه ده يعني لکان خيراً لهم.

**فائده:** ابيات متعلقه بآيات مذکوره:

نکند دوست زينهار از دوست.......... دل نهادم برانچه خاطر اوست
گر بلطفم بنزد خود خواند .......... ور بقهرم براند خاطر اوست

ايضاً درين معنا آمده

رضا بداده بده وزجبين گرهبکشای ... که برمن وتو دراختيار نه کشاده است

معنی دا چي خدای پاک فاعل مختار دی ما او تاته يې اختيار د رزق نه دی راکړی، قال العلماء رحمهم الله اذا کان القدر حقاً کان السخط حمقاً يعني چي تقدير د رزق وغيره په قدرت کي د خدای ﷻ دی نو سخط وعدم الرضا بالقضا في السعة والضيق خرگري ده.

**درویش وايي:** چي رضا بالقضا الالهي داسي ده لکه چي راغلي ده، له سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه څخه په حکايت راغلي دي چي دی په اخيره کي د عمر په سترګو ړوند سو، نو دی چي مکې ته راغلی يو چا ورته وويل چي ستا دعا خدای ﷻ قبلوي يعني ته مستجاب الدعوات يې، نو ولې د رد البصر په باره کي خدای ﷻ ته خواست نه کوې؟ ده ورته وويل قضا الله احب الي من بصري، زما د خدای ﷻ قضا خوښه ده د سترګو تر ديد.

**نکته:** له يو حيکم څخه يو چا پوښتنه وکړه چي کوچنی چي له موره پيدا سي لاسونه يې موټ وي، او چي مري لاسونه يې خلاص وي؟ حکيم داسي يو معقول په زړه پوري جواب ورکړی:

وَمَقْبُوضُ كَفُّ الْمَرْءِ عِنْدَ وِلَادَةٍ ...... دَلِيْلٌ عَلَى الْحِرْصِ الْمُرَكَّبُ فِيْ الْحَيِّ

موټ نيول د لاس د سړي په وخت د ولادت، دليل دی پر حرص د دنيا چي په ژوندي کي طبعاً مرکب دی.

وَمَبْسُوْطُ الْكَفِّ لِلْمَرْءِ عِنْدَ وَفَاتِهِ ...... يَقُوْلُ اُنْظُرُوْا اِنِّيْ خَرَجْتُ بِلَا شَيْئٍ

او خلاص نيول د لاس د سړي په نېز د وفات دده دی وايي په زبان حال سره وحاضرينو ته چي وګورئ زه له دنيا څخه ووتم بلا شيئ.

إِنَّمَا الصَّدَقَٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسَٰكِينِ

**درویش وايي:** چي مراد له صدقاتو څخه مفروضه صدقات دي چي زکوة يې بولي چي په انواع مختلفه وو کي فرض دی چي نصاب ته ورسېږي او کال هم پر تېر سي او فارغ له دين او پوره څخه وي سواء کانت تلک من النقدين ای الذهب والفضة او الغنم او البقر او الابل.

**پوه سه:** چي زکوة ته صدقه وايي لدلالته على صدق العبد في العبودية لله او زکوة چي يې بولي زکوة پاکوالي ته وايي چي صاحب المال المزکي له خبث څخه له بخل څخه پاک وي او مال له خبث څخه پاک وي.

**پوه سه:** چي اول سړی چي عليه الصلوة والسلام پر جمع کولو د صدقاتو عامل

کړځولی دی یو سړی ؤ له بني صدق څخه او دا قوم د کنده قبیلې ؤ، او نسبت وبني صدق ته صدقي راځي فاشتقت الصدقة من اسمهم، والمراد في الآية ان ما الله اعني الصدقة انما يقسم على من اتصف باحدى هذه الصفات دون غيره. ولې غرض د ورکړې د صدقې اصلاح لحال هؤلآء المذكورين والمنافقون ليس فيهم الا الفساد. نو دوی يې مستحق نه دي، نو ځکه خدای پاک په اول کې د کلام کلمه د انما راوړه چې لپاره د حصر ده لقطع اطماعهم ای المنافقين ورد مقالتهم الباطلة.

**تنبیه:** خدای ﷻ تقسیم د صدقاتو پر خپله ذمه واخستی تاچي د منافقینو د بې ځایه خبرو څخه دا تقسیم خلاص سي. ولې که خدای پاک امر د تقسیم د صدقاتو و علیه الصلوة والسلام ته سپارلی وایي که څه هم علیه الصلوة والسلام په وحي خفي سره پر دغو طوائفو ویشلای لکن د منافقینو د باطلو خبرو څخه نه خلاصېدی کما في تقسيم المغانم على مامر قريباً. وايضاً الخلفاً الراشدين ابوبكر، عمر، عثمان و علي ﷺ که څه هم د علیه الصلوة والسلام لار د تقسیم خپله کړې وای یعني چې خدای پاک په خپله تقسیم نه وای کړی خلفاً راشدين ﷺ له اعتراضاتو څخه د منافقانو نه خلاصیدل. ولې چې ددوی په عصر کې هم صفایا د منافقانو نه وه کړل سوې. او بل حکمت الهي په تقسیم کې د صدقاتو چې په خپل کتاب قران عظیم الشان کې وکړی داده چې وروسته تر خلافت راشده قسم قسم خلفاً د اسلام راتلونکي وه چې تقسیم د صدقاتو پر قومیت او قرابت کاوه او مستحق کسان به محروم پاته کېدای.

**پوه سه:** چې موږ په اول کلام په صدقاتو مفروضه وو مقید کړی. ولې صدقات نافله وغنی بلکې وکافر ته روا دی.

**پوه سه:** چې فقیر کما روی عن الامام ابو حنیفه رحمه الله من له ادنی شیئ وهو ادنی من النصاب او قدر نصاب چې کال نه وي پر تېر سوی یا مستغرق بالحاجة الاصلية وي، نو فقیر ته سوال حرام دی ولې چې سوال و هغه چا ته حرام دی چې قوة اليوم لري.

**درویش وایي:** چې زموږ د زمانې فقرا که څه هم قوة الشهر بلکې قوة العام

لري بیا هم په مساجدو کي سوال کوي انا لله وانا الیه راجعون، او مسکین هغه څوک دی چي هیڅ شی نه لري، نو دی سوال ته محتاج وي لقوته ولما یواري بدنه بقدر ما یجوز به الصلوٰة، په روح البیان کي وایي چي تفسیر د فقیر او مسکین بالعکس دی عند بعض والاول اولی لنقله عن صاحب المذهب.

## وَالْعٰمِلِيْنَ عَلَيْهَا

او هغه کسانو ته دي صدقات ورکوي چي دوی په تحصیل د صدقاتو عمل کوي یعني د امیر المؤمنین له خوا څخه پر جمع د صدقاتو په باندو او صحراؤ کي گمارل سوي وي، نو عامل ته دي ورکوي مما في یده من مال الزکوٰة بقدر عمله فقیراً کان او غنیاً او هاشمیاً، نو که له عامل څخه هغه مال د زکوٰة چي ده جمع کړی ؤ بلا اختیار منه ضائع سوی ؤ، نو هیڅ شی حق نه لري.

**مسئله:** که مالک المال په خپله بې توسطه د عامل زکوٰة د خپل مال و امیر المؤمنین ته سپارلی ؤ، نو عامل حق د تنخواه نه لري، په تبین کي وایي که د عامل تنخواه هغه ټوله مال چي د جمع کړی په بره کي نیوی لایزاد علی النصف لان التنصیف هو الانصاف.

## وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ

او صدقات دي ورکوي وهغو کسانو ته چي الفت ددوی د زړو د اسلام سره مطلوب وي، بغوي رحمه الله وایي چي دا ډله دوه قسمه وه، یو قسم مسلمانان وه او بل قسم یې کافران وه، مسلمانان دوه قسمه وه، یو قسم یې دا وو چي په اسلام کي خو به داخل سوي وه لکن نیت به یې ضعیف ؤ، نو رسول الله ﷺ ودوی ته یو څه مال ورکاوه تاچي اسلام یې په زړو کي ښه قرار ونسي لکه عیینه بن بدر والاقرع بن حابس والعباس بن مرداس، او بل قسم مسلمانان وه او نیت یې هم قوي ؤ لکن دوی په قوم کي شریف او مشران کسان وه، نو علیه الصلوٰة والسلام ودوی ته مالونه ورکول لپاره د ترغیب د امثالو ددوی و اسلام ته، نو اوس هم امام المسلمین ته روا ده له خمس الخمس څخه د غنیمت ودوی ته څه مال ورکول مگر

د زکوة له مال څخه دې نه ورکوي، او دوهم قسم له مؤلفة القلوب څخه هم مسلمانان وه او په مقابل کې يې کفار وه لکن داسې ځای واقع وه چې د مسلمانانو د فوج و هغه ځای ته په ډېر مشقت ور رسېدی او دوی به د کافرانو سره جهاد نه کاوه، اما لضعف نيتهم او لضعف حالهم، نو امام المسلمين ته روا ده چې دغسې کسانو ته ورکړي له برخې څخه د غازيانو من مال الصدقة.

په يوه روايت کې راغلي دي چې عدي بن حاتم رضي الله عنه له صدقاتو او زکاتو د خپل قوم درې سوه اوښان و ابوبکر رضي الله عنه ته راواستول، نو ابوبکر رضي الله عنه دېرش اوښان و عدي رضي الله عنه ته ورکړه هرچه کافران د مؤلة القلوب دي نو امام څه د خمس الخمس ورکوي يا د خوف له شره د هغو او يا لپاره د ترغيب و اسلام ته لکه عليه الصلوة والسلام چې د خمس الخمس څخه څه مال و صفوان بن اميه ته ورکړی چې دده ميل يې و اسلام ته محسوس کړی. دا خو د مؤلة القلوب حال وُ په ابتدا کې د اسلام، واما اليوم فقد اعزالله الاسلام ولله الحمد فلا يعطی مشرک بحال تألفاً، ډېر علما او فقها رحمهم الله چې د مؤلفة القلوب برخه قطعه ده او ساقطه ده وبه قال عکرمه وهو قول الشعبي وبه قال مالک والثوري واسحاق بن راهوية رحمهم الله، مظهري د حنيفيانو څخه تعبير په اصحاب الرائ سره کړی دی ولقد بئس ذالک التعبير.

**درويش وايي**: چې کمال الدين ابن الهمام رحمه الله چې د حنيفيانو يو نوموړی محدث او فقيه دی په فتح القدير شرح هدايه کې وايي چې سهم د مؤلة القلوب ساقط دی، او په دليل کې يې د طبراني قول په سند سره دا قول د عمر بن الخطاب رضي الله عنه راوړی دی چې عيينة بن حصن چې د مؤلفة القلوب څخه وُ د خپلې تنخوا لپاره راغلی، عمر رضي الله عنه ورته وويل الحق من ربکم فمن شآ فليؤمن ومن شآ فليکفر، او ابن ابي شيبة له شعبي څخه روايت کړی دی چې مؤلفة القلوب په زمانه کې د عليه الصلوة والسلام وه "ولما ولي ابوبکر رضي الله عنه انقطعت قال ابن الهمام جآ عيينة والاقرع يطلبان صدقةً الی ابي بکر رضي الله عنه" نو ابوبکر رضي الله عنه خط ورنوشته کړی عمر رضي الله عنه چې خط ولیدی څيري يې کړی، او وه يې ويل چې دا داسې شی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم تاسې ته نه درکاوه ليتألفکم علی الاسلام والآن

فقد اعز الله الاسلام واغنی عنکم، نو که تاسي پر اسلام کېږئ خو بنه خبره ده او که اسلام نه قبلوئ نو زموږ او ستاسي تر منځ توره ده، نو دوی بیرته ابوبکر ﷺ ته ورغله چي ته خلیفه یې او که عمر؟ ابوبکر ﷺ ورته وویل دی کې خوښ وي ولم ینکر علیها احد من الصحابة ﷺ فکان اجماعاً انتهی قول ابن الهمام رحمه الله.

مظهري رحمه الله وایي چي د عمر ﷺ قول خو ناسخ د قرآن نه سي کېدای انتهی، فتفکر في قول المظهري وقول ابن الهمام وانعقاد الاجماع علی قول عمر

**درویش وایي:** چي علامة الوسي رحمه الله په روح المعاني کې وایي وفي الهدایة ان هذا الصنف عن الاصناف الثمانية سقط وانعقد اجماع الصحابة علی ذالک في خلافة ابی بکر ﷺ کما مر قریباً، آلوسي رحمه الله وروسته ویلي دي چي په دې کي اختلاف دی چي د مؤلفة القلوب برخه په قرآن سره ثابته ده نو څرنګه ساقطېږي په قول د عمر ﷺ لکه مظهري چي وویل؟ وروسته یې ځواب داسي ورکړی دی چي بعض فقها رحمهم الله وایي چي نسخ د ماثبت بالکتاب په اجماع سره روا ده، بناء علی ان الاجماع حجة قطعية کالکتاب لکن آلوسي ویلي دي چي دا صحیح مذهب نه دی ثم اجاب وطول البحث فیه فارجع الی روح المعاني.

**درویش وایي:** چي حکم شرعي ګاهي پای ته رسېږي په انتها د علت د حکم کالمسح علی الخفین بنزع الخفین والتیمم بوجدان الماٗ والمسح علی الجبیرة ببرا الجرح فیمکن انیکون اسقاط خط المؤلفة القلوب بانتها الضرورة الیهم لعزة الاسلام وغلبته بدون النسخ والله ﷻ اعلم بمراده في کتابه.

وَفِي الرِّقَابِ

یعني په خلاصولو کي د رقبو د مکاتب مریانو له مال کتابت څخه د مالک ددوی عند ابي حنیفة والشافعي واحمد رحمهم الله.

**پوه سه:** چي مکاتبین خامخا فقرا دي وان کان عندهم نصاب لا یکفی في فک رقابهم قال الله تعالی "فکاتبوهم ان علمتم فیهم خیراً وآتوهم من مال الله الذي آتاکم.

**نکته:** روح المعاني او مظهري وایي چي په فقرا، مسکاینو، عاملینو او

مؤلفة القلوب کي يې کلمه د لام راوړل او په څلورو باقي کي يې کلمه د في ده، ظرف راوړه لپاره د اعلام په دې سره چي اربعة اخيرة ارسخ په استحقاق کي د تصدق پر دوی تر اربعة الاولی، ولي کلمه د في د ظرفيت لپاره ده، نو ګويا دوی ظروف دي د وضع د صدقاتو.

**فائده:** اول څلور اختيار لري چي مال د صدقې په هر شي کي چي يې صرفوي صرف دې کړي، لکن اخيري څلور اختيار نه لري، ولي چي مکاتب خو مالک د مال نه دی يصرفه كيف يشأ بل يملك المال مولاه وكذا المديون ما في يده للدائن لايصرفه المديون الى غير ذالک وكذا المجاهد في سبيل الله لا يصرفه الا في الجهاد وقطع المسافة وشرآ آلات الجهاد.

وَالْغَارِمِينَ

او هغو کسانو ته يې ورکوئ چي پر دوی پور باندي وي که څه هم نصاب لري لکن د پور غاړه يې نه وځي، په فتاوی ظهيريه کي وايي چي د صدقې ورکړه وپوروړي ته اولی ده تر ورکړي وفقير ته، ولي چي مديون خو مطالب لري د بندګانو له خوا څخه وهو الدائن او فقير يې نه لري. لکن فقهأ رحمهم الله دا قيد ورسره وايي چي دا پور به ده په معصيت کي نه وي کړی لکه شراب چي يې په رانيولي وي او يا يې د اسراف لپاره پور کړی وي. لکن نووي رحمه الله په منهاج کي وايي که يې پور د معصيت لپاره کړی وي لکن وروسته يې له هغه څخه توبه کښلې وي صدقه دي ورکوي او که سړي پور کړی وي لپاره د يو معروف في الشرع لکه د مسجد د تعمير لپاره يا د دوو مرورو د پخلا کېدو لپاره ودې کسانو ته دي هم صدقه ورکوي که څه هم اغنيأ وي. او امام اعظم رحمه الله وايي چي هر مديون ته دي صدقه ورکوي چي مالک د نصاب کامل فاضل عن وفأ دينه نه وي لعموم اللفظ.

وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ

او په لاره کي د خدای جل جلاله، امام ابو يوسف او امام شافعي وايي چي مراد له في سبيل الله څخه منقطع الغزاة دي يعني چي په غزا کي يې د لاري خرڅ خلاص سوی وي وهذا مذهب جمهور العلمأ ايضاً. او امام محمد او امام احمد وايي چي

مراد ځندي منقطع الحاج دي يعني چي د حج په سفر کي يې نفقه خلاصه سوې وي وان كان له مال في وطنه، وقيل مراد ځندي طالبان د علم دي، فتاوی ظهيريه په صرف طلبة العلم ذکر کړي دي لکن په بحر رائق کي وايي چي په هر تفسير کي فقر شرط دی.

وَابْنِ السَّبِيلِ

او مسافر ته دي زکوة ورکوي.

**پوهنه**: چي که د مسافر سره دومره مال نه وي چي مانع د زکوة سي، خو زکوة ورته روا دی اتفاقاً، او که د مسافر سره دومره روپۍ وي چي دی تر هغه ځایه چي دده ورته قصد رسوی یې، نو زکوة بالاتفاق ورته ناروا دی، او که چيري مسافر په وطن کي مال کثير درلودی لکن دی په اثنا کي د سفر ؤ او دومره مبلغ نه ؤ ورسره چي نصاب دي ځندي جوړ سي او يداً فقير ؤ او د وطن ربو ته يې لاس نه رسيدی يعطى له الزكوة وهو المراد بابن السبيل عند الامام الاعظم رحمه الله

**قانون**: لازکوة للمزکی، زکوة ناروا دی و هغه چا ته چي پر دغه خپله زکوة فرض وي وان کان من نوع آخر، مثلاً یو سړي اوښان درلوده چي نصاب ته رسيدل ودغه سړي ته د بل د نقودو زکوة نه دی روا وبالعکس وعلی هذا فقس بالاتفاق، او د امام ابو حنيفه رحمه الله په نيز غني هغه سړی دی چي فاضل نصاب تر حوائجو اصليه وو لري.

**مسئله**: که فقير پر کسب قادر ؤ چي کفايت د عيال يې کيدی، نو د زکوة دفع ورته روا ده لعموم قوله تعالى للفقرا لکن سوال نه دی ورته روا.

**مسئله**: مديون ته چي د يو نصاب مالک وي زکوة روا دی چي نصاب يې فاضل تر دين نه وي وكذا الغازي، او ابن السبيل چي آس لري چي قيمت يې نصاب ته رسيږي زکوة ورته روا دی.

**مسئله**: عالم که دومره کتابونه درلوده چي قيمت يې نصاب ته رسيدی لکن دی په درس او مطالعه کي هغو ته محتاج ؤ، زکوة ورته روا دی، لکن مراد ځندي کتابونه د علوم شرعيه وو دي لکه تفاسير، احاديث او شروح د هغو يا د

فقهي كتابونه او شروح د هغو لكن يوه يوه نسخه او يا ما يتوقف عليه العلوم الشرعية كالنحو والصرف وعلم اللغة وعلم المعاني. حاصل دا چي كتابونه كه د منطقو وه يا د رياضي ؤ او يا د حكمت طبعي الى غير ذالک او قيمت يې نصاب ته رسيدى هغه عالم ته زكوة نه دى روا، وحاصل بيان هذه المصارف في القرآن العزيز.. ماقيل:

حق تعالى چون درقسمت كشاد ........ هركسى را هرچى مى بايست داد
نيست واقع اندران قسمت غلط ........ بنده راخواهى رضاخواهى سخط

**مسئله**: د حضرت امام شافعي رحمه الله مذهب دادى چي د زكات مالک به صرف زكات وټولو اصنافو ته وركوي كه موجود وه، او په هر صنف كي به يې درې كسو يا بالا ته وركوي كه چېرې پيدا كېدله. او د حنيفيانو مذهب دادى چي مالک د زكات اختيار لري. كه يې يوه صنف ته وركوي او كه دوو صنفو يا بالا ته يې وركوي. او داغه رنګه په يوه صنف كي كه يې يوه نفر ته وركوي، موږ وايو چي مقصود په قرآن كي بيان د هغو صنفو دى چي زكات ورته روا دى لاتعيين الدفع الى كلهم لقوله تعالى "وتوتوها" اى الزكوة "فهو خير لكم" حيث ذكر الفقرأ فقط.

فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝

**يوه سه**: چي "فريضة" مصدر مؤكد دى لمقدر مفهوم من الكلام اى فرض الله لهم الصدقات فريضة، او ابو البقأ رحمه الله وايي حال دى له ضمير مستكن ځنځه في قوله تعالى "للفقرأ" والتقدير انما الصدقات كائنة لهم (اى لهذه الاصناف) حال كونها فريضة اى مفروضة من الله او خداى جل جلاله ښه عالم دى په احوالو او مراتبو د خلكو، او حكيم دى چي عبث كار نه كوي.

**تنبيه**: د اوسنى زمانې ځيني ملايان سره د معلومي غنى د زكوة واخستلو ته تيارسى دي.

**مسئله**: مقتدي كه ملا ته وويل چي دغه نقود وغيرها په زكوة كي واخله مقتدى نه ؤخبر چي ملا صاحب غني دى د مقتدي غاړي خو خلاصي دي لكن چونكه ملا صاحب غني ؤ ده ته د زكوة اخستل ناروا دى. لكن ملا صاحب ته حلال

او حرام فرق نه لري، فويل لهؤلاء العلماء لايخشون الله. ولا يعملون بعلمهم.

**پوښتنه:** و اقاربو ته د عليه الصلوة والسلام چي په اوسنی زمانه کي سادات کرام دي زکوة يا نفلي صدقات چي دوی مسکينان او فقيران وي روا دی که څرنګه؟

**ځواب:** درويش وايي: چي په دې مسئله کي قديماً وحديثاً لوی اختلاف دی. اول قول جواز دی مطلقاً که فريضه وي او که نافله وي ﴿وهذه رواية عن الامام الاعظم رحمه الله ورواية ورواية عن مالك رحمه الله. والدليل لهذا المذهب ان رسول الله ﷺ خمس الخمس د غنيمت و خپلو اقاربو ته تاکلی ؤ په عوض کي د صدقاتو وروسته تر وفات د عليه الصلوة والسلام هغه خمس الخمس ساقط سو باعتبار بعض العوارض باجماع فسقط حرمة الصدقة مطلقاً﴾ دوهم قول عدم جواز د صدقاتو دی مطلقاً که فرضي وي او که نفلي ﴿وبه قال ابو يوسف ومحمد واختاره ابو جعفر الطحاوي و کمال الدين ابن الهمام رحمهم الله والدليل على هذا القول قول النبي ﷺ انا آل محمد لا ناكل الصدقة وفي رواية لايحل لنا الصدقة﴾ رواه مسلم والطبراني.

دريم قول جواز د فريضة الزكوة دی دون النافلة ولم يذهب اليه غير مالك رحمه الله دی وايي چي فريضه د زکوة څو حق لازم دی، نو په اخستلو سره دوی ته ذلت نه متوجه کېږي، څلورم مذهب جواز د نافله صدقې دی ﴿دون الفريضة وهو المشهور من مذهب ابي حنيفة والصحيح عند الشافعي والحنابلة ورواية عن مالك رحمهم الله، دوی وايي هغه حديث چي په تحريم کي د صدقې راغلي دي محمول پر صدقه مفروضه دي دون النافلة. والدليل على جواز الصدقة لهم مطلقاً﴾ ما رواه الطحاوي من حديث ابن عباس رضي الله عنهما چي يوه قافله راغله مديني منورې ته. نو عليه الصلوة والسلام د هغه قافلې والو څخه يو متاع په پور رانيوی بيا يې په يو څو اوقيو په ګټه خرڅ کړی هغه يې خيرات کړه پر کونډيانو د بني عبد المطلب الى اخير الحديث.

**درويش وايي:** چي اصل اختلاف په دې کي دی چي علت د حرمت د صدقه مفروضه شرف د نسب د ساداتو کرامو دی، ولې چي مفروضه زکوة له اوساخ

څخه د خلګو دی، او یا علت د حرمت یې سقوط د خمس خمس الغنیمت دی، اظهار النظر، په اوربدلو اقوالو او مذاهبو کي دائره د اظهار نظر فراخه سوه.

**درویش وایي:** چي زما خپله شخصي نظر دادی چي نه څوک خپل په قول مکلفوم او نه څوک د اعتراض حق پر ما لري چي ساداتو کرامو ته صدقه مفروضه یعني زکوة یا نافله رواده په اوسني زمانه کي، ولي سید چي فقیر وي که یې څوک په نسب خبر سي مزدوري نه ورکوي د ادب له لاري نو باید سید د لوږي له کبله د هلاک سره مخامخ سي که زکوة د خلګو هم پر بند سي؛

یو عالم جید چي په قوم سید ؤ په یوه مناظره کي د نورو علمأ کرامو سره چي هغه د صدقې او زکوة د حرمت قائل وه و ساداتو ته، نو دې عالم داسي یوه په زړه پوري خبره وکړه چي سید ته خو به زکوة روا نه وي فرضاً ده وویل چي زکوة تنه ورځ اجر ذلیل دی چي علمأ او اماماتو ته یې خلګ ورکوي آیا سید ته اجر ذلیل هم نه دی روا، والله اعلم بالصواب، وکتبت هذا الحکم فیما بین الخوف والرجأ.

**درویش وایي:** چي له سدي رحمه الله څخه روایت دی چي یو څو کسه له منافقانو څخه چي خلاص بن سوید او نحشي بن حمیر او ودیعة بن ثابت پکښې وه دوی سره وویل چي راځئ چي د محمد غیبت وکړو او بهتان پر ووایو، نو یوه ونورو ته وویل چي موږ بېرېږو چي دا زموږ خبري محمد ته ونه رسېږي نو دی به بیا ستاسي بیان وخلګو ته وکړي، نو بعض ددوی وویل انما محمد اذن نحلف له ماقالوا فیسمع ویصدقنا بلکې که موږ هرڅه په ده کي ووایو چي بیا ورسو منکر به سو پر ماقلنا او قسم به ورته واخلو دی خالص خوږونه دی یعني د هر چا خبره اوري او زموږ تصدیق کوي فانزل هذه الآیة.

وَمِنْهُمُ الَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ النَّبِيَّ وَيَقُوْلُوْنَ هُوَ اُذُنٌ

او بعض له منافقینو څخه هغه کسان دي چي ازاروي علیه الصلوة والسلام یعني غیبت یې کوي او بهتان پر وایي او داسي خبري د نبي په شان کي کوي چي نه ښایي "ویقولون" دا خبري مه کوئ چي نه بایده چي ده ته ونه رسېږي "هو اذن" دی یعني النبي ﷺ خالص غوږونه دی یعني یسمع ما یقال له او تصدیق یې کوئ.

نو دده مبارک تسمیه په یوه جارحه ددوی له خوا مبالغه ده حتی چي دده مبارک
توله جسد غوږ دی. نو چي آله د سماع ده لکه چي جاسوس ته وايي هو عين يعني
خالص سترګي دی او يا يي حمل په وساطة د ذو دی ای ذو اذن سامعة.

ابن ابي حاتم له عباس رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي نبتل بن حارث چي به
راغلی د علیه الصلوة والسلام سره په کښېنستی او دده خبري به يي واورېدلې
او منافقينو ته به يي رسولې. محمد بن اسحاق رحمه الله وايي چي د نبتل ببر سرۍ
سرې سترګې يې وې تور بارخوګان يې وه نهايت بدرنګه ؤ حتی چي علیه
الصلوة والسلام به ويل چي که د چا خوښه وي چي شيطان ته وګوري نبتل ته
وګوري. نبتل د علیه الصلوة والسلام د خبرو شيطانت و نورو منافقانو ته کاوه.
نو که به چا نبتل ته وويل چي دا کار مه کوه ده به ويل انما محمد اذن هر څه چي
زه دده په باره کي ووايم چي ورسم قسم به ورته واخلم دی يې مني فانزل الله
تعالی هذه الآية المذکورة.

**درويش وايي:** چي ولا منافات بين هذ الشان للنزول والسابق. خدای جل جلاله په
ځواب کي د منافقانو دا وايي.

قُلْ أُذُنُ خَيْرٍ لَّكُمْ

من اضافة الموصوف الى الصفة مثل رجل صدق ای رجل صادق. حاصل د
ځواب دادی چي نعم هو اذن لکن نعم الاذن هو، او يا معنا داده چي دی اورېدونکی
د خير ستاسي دی نه د شر ستاسي او فساد مطلب دا چي عذر د معتذر قبلوئ چي
پر حق وي ولا يسمع الغيبة والنميمة کما زعمتم ايها المنافقون.

"قال رسول الله صلی الله علیه وسلم المؤمن غر کريم (يعني ساده او پاک دله) والفاجر خبث
لئيم" (رواه ابو داود والترمذي)

**ژباړه:** مؤمن حق ساده لوح وي او کريم النفس وي، او فاجر يعني منافق چم
بازوي او خبيث النفس وي.

يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَيُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِينَ

دا نبي تصديق لري پر خدای جل جلاله او تصديق کوي د هغه چا چي اظهار د

ایمان وده ته وکړي بناء علی حسن الظن، لان علم قلوب الناس موکول الی الله تعالی، او بعض اهل تفسیر وایي چي تصدیق کونکی د مؤمنانو مخلصانو نه ده منافقانو لکن عذر یې قبلوي اعراضاً عنهم، والتفسیر الاول اولی یطابق الآحادیث الشریفة.

﴿وَرَحْمَةٌ لِّلَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ ۚ وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ رَسُولَ اللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾

او د علیه الصلوة والسلام وجود یعني حیاً کان او میتاً رحمت دی. د هغه کسانو لپاره چي ایمان یې راوړی قلباً ولساناً او د من اظهر الایمان لساناً فقط هم رحمت دی حیث لایکشف سره. او هغه کسان چي ازاروي رسول د خدای ﷺ یعني لکه منافقان دوی لره عذاب دی دردناکه یعني جهنم، او دوی ته فائده نه کوي تسلیم د علیه الصلوة والسلام ددوی د عذر باطل.

**یوه سه:** چي مقاتل او کلبي رحمهما الله تعالی وایي چي یوه ډله د منافقینو چي د تبوک له غزا څخه یې ځانونه پاته کړي وه، نو علیه الصلوة والسلام چي له تبوکه راستون سو، نو دوی عذرونه ورته کول او قسمونه یې اخستل پر خپلو عذرونو باندي فنزل.

﴿يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ لِيُرْضُوكُمْ وَاللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَقُّ أَن يُرْضُوهُ إِن كَانُوا مُؤْمِنِينَ﴾

دوی قسمونه اخلي په خدای پر صدق د خپلو عذرونو، و تاسي ته ای مؤمنانو فالخطاب للمؤمنین، او خدای ﷻ حقدار دی چي دوی یې راضي کړي یعني بالطاعة والاخلاص، ولي چي رضا د خدای ﷻ خو په کاذبو قسمو سره راځي لانه تعالی عالم الغیب والشهادة بلکي بالاخلاص.

**سوال:** دمخه خدای او رسول دواړه ذکر سول، لکن ضمیر یې مفرد ورته راجع کړی؟

**ځواب:** اهل ظاهر علماً وایي چي افراد د ضمیر په تاویل د کل واحد دی لکن محققین وایي چي رضا د خدای او د رسول یوه شئ ته راجع ده فکان رضاهما واحد لانه ورد من اطاع الرسول فقد اطاع الله.

"ان کانوا مؤمنین" دا شرط دی جزا یې له ماقبل څخه فهمیږي یعني ان کانوا مؤمنین صدقاً فلیرضوا الله ورسوله دون المؤمنین فقط.

اَلَمْ يَعْلَمُوٓا اَنَّهٗ مَنْ يُّحَادِدِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

آیا نه پوهیږي کافران خصوصاً المنافقین چې شان دادی چې څوک چې مخالفت وکړي د خدای او له رسول څخه د خدای په معصیت سره او په تخلف سره له غزا څخه د تبوک او یا بله غزا.

فَاَنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدًا فِيْهَا ذٰلِكَ الْخِزْيُ الْعَظِيْمُ ﴿۶۳﴾

نو په تحقیق ده لره اور د جهنم دی چې همیشه به په اور کې وي او دغه د جهنم دخول خالداً رسوایي ده لویه.

يَحْذَرُ الْمُنٰفِقُوْنَ اَنْ تُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ سُوْرَةٌ تُنَبِّئُهُمْ بِمَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ

د آیت معنا داده بیریږي منافقان له دې څخه چې نازل به سي پر مسلمانانو یو سورت چې مسلمانان به خبر کړي په هغه شي چې ددوی په زړونو کې سته من النفاق والحسد والعداوة للمؤمنین، او ددوی پرده د نفاق به ورڅیري کړي.

**پوه سه**: چې د "علیهم" ضمیر ډیر مفسرین رحمهم الله وایي چې و مسلمانانو ته راجع دی او داغه رنګه د "تنبهم" ضمیر و مسلمانانو ته راجع دی، او د "قلوبهم" ضمیر و منافقانو ته راجع دی، او مظهري، روح البیان او روح المعاني دا هم وایي چې احتمال لري چې ضمائر دې ټوله و منافقینو ته راجع وي.

**سوال**: نزول د سورت پر منافقینو نه ؤ؟

**ځواب**: نازل پر مسلمانانو لکه نازل پر دوی دی، ولې چې داغه سورت مسلمانانو ودوی ته قرائت کاوه او دلیل به یې پر دوی وایه چې تاسي په غیاب کې داسي کلمات د کفر او نفاق سره کوئ.

**پوښتنه**: منافقانو خو د علیه الصلوة والسلام اقوال دروغ بلله او له وحي څخه منکر وه فکیف یحذرون نزول السورة علی المؤمنین الکاشف لحالهم؟

**ځواب**: بعض په نبوت د علیه الصلوة والسلام ښه پوهیدل لذکر نبوته ﷺ في کتابهم التورة لکن مشرکان چې به سره یو ځای سوه دوی به عناداً او حسداً اظهار

کفر کاوه کما في قوله تعالی یعرفونه کما یعرفون ابنائهم، او عبدالله بن سلام ﷺ چي یهودي ؤ اسلام یې راوړی، نو عمر ﷺ له ده څخه پوښتنه وکړه چي تا علیه الصلوٰة والسلام په نبوت داسي پېژندی لکه خپل زوی؟ عبدالله ﷺ ورته وویل بل معرفتي بنبوة محمد ﷺ اشد من معرفة ابني. عمر ﷺ ورته وویل چي څرنګه. عبدالله ﷺ ورته وویل چي د علیه الصلوٰة والسلام نبوت په تورات سره ماته ثابت ؤ تورات چي کتاب الله دی مجال د کذب نسته پکښي، او زما د زوی حال خو پر ظاهر مبني دی لکن دا احتمال سته چي مور دې خیانت کړی وي یعني الزنا. بل ځواب دادی چي د بعضي منافقانو په نبوت کي د علیه الصلوٰة والسلام متردد او شک ؤ. نو ددغي ډلي خو احتمال د نزول الوحي په زړه کي ؤ. نو دا ډله بېرېدل چي نزول د وحي زموږ په شان کي ونه سي، او بعض مفسرین ﷺ وايي چي دا خبره یعني ان تنزل علیهم په خپل مابین کي به یې د پسخند سره ویل ویؤیده قوله تعالی.

قُلِ اسْتَهْزِءُوا إِنَّ اللَّهَ مُخْرِجٌ مَّا تَحْذَرُونَ ﴿٦٤﴾

ته ورته ووایه چي تاسي پسخند وهئ او په تحقیق خدای ﷻ مظهر د هغه شي دی چي تاسي ځندي بېرېږئ من نزول السورة في بیان کفرکم ونفاقکم. ابن عباس ﷺ وايي چي خدای پاک په نزول د قرآن ذکر د اوویا کسانو د منافقانو په نومانو او په نومانو د پلرو ددوی وکړی. لکن وروسته ذکر د نومانو یې منسوخ سو رحمةً علی المؤمنین. ولي چي زامن ددوی مؤمنان وه یعني چي زامنو ته یې څوک پېغور ورنه کړي. او بغوي ﷺ وايي چي دا آیت په هغو دوولسو منافقانو کي نازل سو چي علیه الصلوٰة والسلام د تبوک له غزا څخه ستون سو او پر یوې غونډۍ چي د عقبه په نامه یادېږي او لاندي تر غونډۍ ژوره شېله وه. نو دغو دوولسو کسانو مشوره سره وکړه چي موږ به مولونه ووهو مخان به پټ کړو علیه الصلوٰة والسلام چي د غونډۍ سره ته راورسېږي موږ به یې د اوښي سره وشېلې ته پرې وهو او قتل به یې کړو. جبرائیل و علیه الصلوٰة والسلام ته ددوی د غدر او کار کولو خبر ورکړی.

**درویش وايي:** چي قصه یې ډېره اوږده ده چي حاصل یې دادی چي دوی خو

پر عقبه ورته ولاړ وه او علیه الصلوة والسلام ته نهایت درد ورغلی او نېږه ورسره وه ددوی اوښان یې په وهله او دا یې ویل الیکم الیکم یا اعداً الله. او علیه الصلوة والسلام حذیفه رضي الله عنه ته امر وکړی چي دوی رد کړه، دوی په دې وپوهېدل چي زموږ چم ناکامه سو چابک چابک یې اوښان وشړلې ته ور وه څول او په نورو خلګو ګډ سوه، وللتفصیل کتب المغازي لکه کتاب محمد بن اسحاق او محمد بن عمر په حدیث شریف کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام په غزوه کي د تبوک روان ؤ چي ترده دمخه یو څو کسه سپاره روان وه له منافقانو څخه چي په قرآن او په علیه الصلوة والسلام یې پسخند واهه او دوی سره ویل چي تاسي دې سړي یعني محمد ته وګورئ چي اراده یې کړې ده چي د شام قلاوي او کوټې به زه فتح کړم هیهات هیهات لېري او لېري ده دا فتح او دا یې هم وویل چي د محمد دا ګمان دی چي جنګ د بني الاصفر یعني رومیانو سره یو ساتېری دی او دوی وویل چي دا ګمان کېږي یعني زموږ دا خیال دی چي صبا به دده اصحاب په غرو کي سره تیک وپرک څغلي، نو خدای پاک علیه الصلوة والسلام ددوی په دغو خبرو خبر کړی، نو علیه الصلوة والسلام مسلمانانو ته وویل احسبوا علي الرکب داغه سپاره تر ماپوري راولئ، نو دوی چي راغله علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي تاسي دغسي او دغسي ویناوي کولې.

وَلَئِن سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلْعَبُ

دوی ورته وویل لا والله ماکنا في شئ من امرک و امر اصحابک انما کنا نخوض و نلعب موږ ستا او ستا د اصحابو په کار کي هیڅ نه دي ویلي بلکې موږ مسخرې سره کولې او سات مو تېراوه یعني په دغه خبرو موږ سفر پر ځان لنډاوه لکه مسافران چي دا عادت لري چي تیوکي او ټکالي سره کوي. نو دوی چي منکر سوه د استهزاً او له تخفیف څخه د علیه الصلوة والسلام. نو خدای جل جلاله و علیه الصلوة والسلام ته وویل.

قُلْ أَبِاللَّهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنتُمْ تَسْتَهْزِئُونَ ﴿٦٥﴾

ووایه یا محمد صلی الله علیه وسلم ودوی ته د سر زنش له لاري او ددوی و عذر ته اعتبار مه

ورکوه، آیا په خدای او په آیاتو د خدای او په رسول د خدای ﷺ تاسي پسخندونه وهل او په دې مو سات سره تېراوه.

**پوه سه:** چي په دې آیت کي توبیخ پر استهزا ددوی دی په داسي شیانو سره چي هغه محل د استهزا نه دی، نو دوی داسي وګرځول چي دوی خو له نفس استهزا څخه نه دي منکر، نو ځکه يې پر نفس استهزا توبیخ ورنه کړی بلکې پر محل د استهزا، یعني چي خدای او آیات د خدای او رسول د خدای د ساتېري او مسخرو او پسخند ځایونه نه دي.

**درویش وایي:** چي بعض جاهل طالبان د قرآن یو آیت ووایي او غلطه او ناوړه ترجمه يې وکړي او نور پر خاندي مثلاً العیاذ بالله یو طالب وبل ته د مسخرو او خندا لپاره ووایي چي د پشي غول پاک دي که نه؟ هغه بل ورته ووایي نعوذ بالله من ذالک چي په قرآن کي راغلي دي چي د پشي غول پاک دي اشاره بل تصریح په دې آیت وکړي في شغل فاکهون، دا نور پر خاندي نو دغه ویونکی او خندا کونکي ټول له کافران سوه وامثال ذالک کثیرة فالحذر فالحذر.

**پوه سه:** چي ددې سورت یو نوم فاضحه دی یعني رسوا کونکی چي منافقان يې ټول له رسوا کړل.

لَا تَعْتَذِرُوا قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ

تاسي عذر مه وایاست په اعذار کاذبه وفانها معلومة الکذب، قد کفرتم یعني تاسي ظاهر کړی هغه کفر مبطن خپل په ازارولو د علیه الصلوة والسلام او طعن ویل پرده، بعد ایمانکم یعني وروسته تر ایمان باللسان فقط لانهم لم یکونوا مؤمنین بالقلب ولکن کانوا منافقین.

إِنْ نَعْفُ عَنْ طَائِفَةٍ مِنْكُمْ

که موږ عفوه وکړه د یوې ډلي ستاسي څخه یعني وروسته تر توبې او اخلاص، محمد بن اسحاق رحمه الله وایي چي له دې څخه مراد فحشي بن عمیر دی ولي چي منافقینو پر علیه الصلوة والسلام طعن وایه ده په صرف خندله او باطلي خبري به يې په شان کي د علیه الصلوة والسلام نه کولې او د طعن

ویونکو څخه به گوښه روان ؤ، او ددوی پر بعض خبرو به یې انکار کاوه، نو چې دا آیت نازل سو تاب عن نفاقه او دا یې وویل اللهم همېشه به زه اورم هغه آیتونه چې زما سترگې په خونکې کېږي اللهم وفاتي قتلاً في سبیلک خواست یې خدای قبول کړی په ورځ د یمامې شهید سو.

**درویش وایي**: چې پر قول د محمد بن اسحاق اطلاق د طائفې پر یوازي فحش مجاز دی لان المتعارف اطلاقها علی الکثیر، لکن د مفسرینو له عباراتو څخه داسي فهمېږي چې تائبین توبة النصوح له نفاق څخه ډېر منافقین وه.

نُعَذِّبْ طَآئِفَةًۢ بِأَنَّهُمْ كَانُوا۟ مُجْرِمِينَ ﴿٦٦﴾

موږ به عذاب کوو یوه ډله یعني د منافقانو، په دې سبب چې دوی وه مجرمان یعني ټینگ پر نفاق او ازارولو د علیه الصلوة والسلام او استهزا دده.

**فائده**: علیه الصلوة والسلام ته مسلمانانو وویل چې دا د مصرینو پر نفاق اجازه راکړه چې قتل یې کړو، علیه الصلوة والسلام چې کامل العقل او دوربین شخصیت ؤ دوی ته یې وویل که موږ دوی قتل کړو زما او د اسلام رنگ بدېږي. ناخبره خلگ به وایي چې محمد خپل اصحاب وژني، ولي چې په ظاهره خو دغه منافقان مسلمانان دي.

**پوه سه**: چې د مذکوره آیتو فائدې دادي:

(۱) منافقان که څه هم عقیده ولري په نزول د وحي پر علیه الصلوة والسلام او عقیده د نبوت دده ولري لکن عناداً او حسداً له نبوت څخه منکر وي ایمان لساني دوی له کفر او نفاق څخه نه خلاصوي.

(۲) که یې داسي وویل چې زه تول انبیاً منم لکن په آدم ﷺ نه یم خبر چې نبي ؤ او که نه کافر کېږي.

(۳) که چا داسي وویل چې آنحضرت ﷺ زه منم چې نبي دی لکن په دې نه پوهېږم چې خاتم الانبیاً دی او که نه او په دې نه پوهېږم چې دین دده به تر قیامته باقي وي منسوخ کېږي به نه لایکون مؤمناً.

**پوه سه**: چې خدای ﷻ سبب د عذاب د یوې طائفې د منافقانو دا وواېه بانهم

کانوا مجرمين، نو بايد د جرم ارتکاب مسلمان ونه کړي. جلال الدين رومي په خپل کتاب مثنوي کې وايي.

چونکه بد کردی بترس ایمن مباش ..... زانکه تخمست برویاند خداش
چند گاهی او بپو شاند که تا..... آیدت زان بد پشیمان وحیا
بارها پو شد پی اظهار فضل..... باز گیرد از پی اظهار عدل
تا این هر دو صفت ظاهر شود..... آن مبشر گردد و این منذر شود

(۴) استهزا په خدای ﷻ او په رسول ﷺ او په آیاتو قرآنیه وو کفر دی که قولاً او که فعلاً وي او که اشارةً وي.

## اَلْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ بَعْضُهُمْ مِّنْ بَعْضٍ

ترآن منافقان او ښځي منافقات بعض ددوی له جنس څخه د بعض دي في الشرک والنفاق والبعد عن الایمان. په دې آیت سره خدای پاک تکذیب وکړی ددوی د قسم انهم لمنکم او دمخه آیت تقریر وکړی وماهم منکم. او دا وروسته آیت لکه دلیل پر دې مدعی.

## يَأْمُرُوْنَ بِالْمُنْكَرِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوْفِ

دوی امر کوي خلګ په بد کار يعني الکفر والنفاق. او دوی خلګ نهي کوي له ښه کار څخه لکه ایمان قلباً ولساناً وطاعة الرسول في الغزوات خصوصاً عن غزوة تبوک حیث یقولون لامثالهم لاتنفر في الحر. او حق عکس ددوی د عمل دی یعني الامر بالمعروف والنهي عن المنکر.

## وَيَقْبِضُوْنَ اَيْدِيَهُمْ نَسُوا اللّٰهَ فَنَسِيَهُمْ

دوی مټ نیولي دي لاسونه خپل له انفاق في سبيل الله څخه وقبض اليد کناية عن البخل، دوی هېر کړی دی خدای ﷻ، یعنې ددوی له کرداره دا معلومېږي چې ګویا دوی علم نه لري چې زه خو خالق لرم چې زموږ څخه په ورځ د قیامت بازخواست وکړي زموږ د اعمال خبیثه وو، نو خدای ﷻ دوی هېر کړي دي یعني ترکهم عن الهداية جبراً في الدنيا ورحمته في الدنيا وترکهم في العذاب المخلد في دار البوار جهنم.

إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿٦٧﴾

په تحقیق منافقان دوی دي فاسقان یعني له دائرې څخه د ایمان او طاعت کما هو معنی الفسق في اللغة. کمافي قولهم فسقت التمرة اذا خرجت عن غلافها.

وَعَدَ اللّٰهُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۗ هِيَ حَسْبُهُمْ ۚ وَلَعَنَهُمُ اللّٰهُ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿٦٨﴾

خدای ﷻ وعده کړې ده د منافقینو او منافقاتو او د نفس کفار سره (هذا تعمیم بعد تخصیص) د اور د دوږخ چي همېشه به وي دوی په دې اور کي دا اور ددوی بس دی. او خدای ﷻ پر دوی لعنت کړی دی یعني د خپل رحمت عامه څخه ایستلی دی او دوی لره دی عذاب دائم چي نه قطع کېدونکی دی.

**پوه سه:** چي دا خو ددوی عذاب دی په اخرت کي او په دنیا کي هم لوی بار د عذاب ددوی پر وږو پروت دی چي له مسلمانانو څخه بېره ده او د رسوایي د نفاق لوی پېټی یې پر زړو پروت دی. شپه او ورځ په دې سودا کي دي چي که مسلمانان په موږ خبر سوه زموږ سره به څه وکړي الی غیر ذالک من مصائب النفاق.

كَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ كَانُوْٓا اَشَدَّ مِنْكُمْ قُوَّةً وَّاَكْثَرَ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا ۗ

خبر د مبتدأ محذوفي دی نو محلاً مرفوع دی ای انتم ایها المنافقون مثل الذین کانوا من قبلکم یعني کفار د تېرو امتو یعني په روی ګرداني د احکامو د خدای ﷻ او لعنت پر هغو. هغه کفار د امم ماضیه وو ډېر سخت وه تر تاسي په قوت کي د اجسامو او په ډېر والي کي د تابعانو. او هغه کفار اکثره له جهته څخه د اموالو ظاهره وو او له سبب څخه د ډېرو اولادو.

فَاسْتَمْتَعُوْا بِخَلَاقِهِمْ فَاسْتَمْتَعْتُمْ بِخَلَاقِكُمْ

نو دوی نفع واخستل په خپله برخه سره من الدنیا ولذاتها حسب ما قدر الله لهم. او تاسي اې منافقانو فائدې واخستې په خپلو برخو سره حسب ما قدر الله لکم في الدنیا ولذائذها.

كَمَا اسْتَمْتَعَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ بِخَلَاقِهِمْ وَخُضْتُمْ كَالَّذِيْ خَاضُوْا

لکه چې نفع اخستې وه هغه کسانو چې تر تاسې دمخه وه په خپلو لذائذو دنیو یه وو سره. هذا تاکید لقوله تعالی فاستمتعوا بخلاقهم كما لا يخفى.

**پوه سه**: چې خوض غلط او باطل بحث كول دي يعني دخلتم في الباطل واللهو لکه خوض د هغو کسانو چې دوی خوض په باطل کې کاوه.

**سوال**: الذي خو مفرد دی نو ضمیر د خاضوا چې جمع دی څرنګه ورته راجع سو؟

**ځواب**: د نحو په کتابو کې وايي چې الذين جمع د الذي نه ده والا لكان في حالة الرفع بالواو كما هو قانون الجمع بلکې الذين ذو الزيادة دی لکن زيادة الحروف يدل على زيادة المعنى ولهذا يستعمل الذين في الجمع والحاصل چې په الذي کې جمع او مفرد برابر دي ولهذا رجع اليه ضمير خاضوا. او بعض مفسرين موصوف د الذين ای الفوج مقدر بولي والفوج مفرد لفظاً جمع ده معنی كالقوم والرهط فافهم.

أُولَٰٓئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۖ وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿٦٩﴾

او دغه کسان لغوه دي اعمال ددوی په دنیا او اخرت کې يعني لم يستحقوا عليها ثواباً في الدارين. او دغه کسان په تاوان کې دي حيث خسروا الدنيا والآخرة. له ابي سعيد الخدري ﷺ څخه روايت دی چې عليه الصلوة والسلام وويل لتتبعن سنن الذين من قبلكم شبراً بشبر وذراعاً بزراع، حتى لو دخلوا جحر (يعني فرضاً تامل) ضب تتبعوهم قلنا يا رسول الله اليهود والنصارى قال فمن، وفي رواية لو ان احدهم جامع امرئته في الطريق لفعلتموه (تاسې به متابعت کوئ يعني يو وخت د عاداتو د هغه کسانو چې ترتاسې دمخه دي لوېشت په لوېشت او ګز په ګز. حتى كه دوی ننوتل په غار د سمساري تاسي به هم پسي ورننوزي، موږ ورته وويل يا رسول الله اليهود والنصارى ده مبارک وويل نو څوک يادوم يعني هم دوی مي مراد دي. حتى که يو سړي ددوی که يې په لار کې د خپلې ماينې سره جماع کولې تاسي به يې هم کوئ.

**درويش وايي**: چې والله لقد صدق رسول الله ﷺ په اوسنی زمانه کې مصداق ددې حديث نبوي ښکاره دی، درويش به هغه حکايات چې په متابعت



Scanned by CamScanner

کي مسلمانان للنصاری والیهود په تفسیر کي درج نه کړي لاحتمال الصدق والکذب في تلک الحکایات. البته هغه شیان د متابعت د نصاری وو بالخصوص الامریکین به درج کړي چي په ستر گو درویښ لیدلي وي.

اول چونکه د یهودانو او نصاری وو په کباړي شیانو کي چي د غریبو ممالکو د مسلمانانو تاجران یې واردوي ځیني داسي د ښځو قمیصان ددوی وارد سوي دي چي په نامه د سینه لڅ یادېږي چي د ښځو تر نیمایي تیو پوري لڅ وي، د مسلمانانو ښځو چي دا سینه لڅ کالي ولیدل دوی خپل نوي قمیصان هم پر هغه نقشه جوړل شروع کړل، او داغه رنګه په کباړي کي دوی د ښځو داسي قمیصان ولیدل چي د پرتوګاښ تر ځای یې بارچاک وي، نو دوی هم خپل نوي کالي په یوه بره جوړ کړل، او داغه رنګه چونکه د امریکایانو وېښتان سره ته مائل دي، نو د مسلمانانو ښځو هم خپل او خپل د کوچنیانو نجونو سرونه په نکروزو هغسي ورسره کړل متابعةً ومشایعةً لهم، بلکي بعض بچه مرد هلکان بلکي ځوانانو هم خپل وېښتان ورته سره کړل، او نور ورته کارونه په متابعت د نصاری وو په مسلمانانو کي جاري تجربه شاهد حال ده، نو ځکه درویښ که څه هم لام موطئه د قسم راوړی صریح قسم یې هم ورسره ذکر کړی.

أَلَمۡ يَأۡتِهِمۡ نَبَأُ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ قَوۡمِ نُوحٖ وَعَادٖ وَثَمُودَ

آیا نه دی راغلی و منافقینو ته خبر د هغو کسانو چي تر دوی دمخه وه یعني کافرانو چي دوی به مخالفت زموږ د رسولانو وکړی یعني خبر یې دادی چي هغه یې په عذاب د دنیا اخته کړه او هلاک یې کړه، له دې څخه مطلب دادی چي منافقان باید د هغو کفارو له حال څخه عبرت واخلي او مخالفت د علیه الصلوة والسلام او استهزاً او غیبت دده پرېږدي. سعدي شیرازي رحمه الله:

پند گیر از مصائب دیگران ........ تا نگیرند دیگران زتو پند

بیا خدای پاک ذکر د هغو کفارو وکړی، قوم د نوح علیه السلام چي په طوفان سره هلاک سو، او عادیان چي په ریح صرصر سره هلاک سوه، او ثمودیان چي په نعره د جبرئیل علیه السلام او د ځمکي په زلزلې هلاک سوه.

وَقَوۡمِ إِبۡرَٰهِيمَ وَأَصۡحَٰبِ مَدۡيَنَ

د ابراهيم ﷺ قوم چي نمروديان وه سره د نمروده خداى پاک هلاک کړه، او مدين والا چي قوم د شعيب ﷺ چي د اور په باران هلاک سوه.

وَٱلۡمُؤۡتَفِكَٰتِۚ أَتَتۡهُمۡ رُسُلُهُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِۖ

او قريه د لوط ﷺ چي مځکه پر چپه سوه او د ډبرو باران پر وسو، چي دوى ته راتګ کړى رسولانو په معجزاتو ظاهره وو سره او دي قومو ددوى تکذيب وکړى. نو موږ دوى هلاک کړل.

فَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيَظۡلِمَهُمۡ وَلَٰكِن كَانُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ يَظۡلِمُونَ ٧٠

يعني عادت د خداى ﷻ نه دى چي دوى دي په عذاب کړي بېله جرم او کفر، لکن دوى دي چي پر خپلو ځانو يې ظلم وکړى چي تکذيب د رسولانو يې وکړى او ځانونه يې عذاب الهي ته وسپارل، نو منافقان بايد نصيحت واخلي چي پر دوى به هم هلاک او عذاب الهي مسلط سي.

وَٱلۡمُؤۡمِنُونَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتُ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ يَأۡمُرُونَ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَيَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤۡتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَيُطِيعُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓۚ أُوْلَٰٓئِكَ سَيَرۡحَمُهُمُ ٱللَّهُۗ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٞ ٧١

او منافقان نر او مؤمنات ښځي بعض د بعض دوستان دي يعني ولاء الاخوة الاسلامية نو يو د بل تائيد کوي او خلګ امر کوي په معروف في الشرع کي، يعني الايمان بالله ورسوله واطاعتهما في الاوامر، او خلګ منع کوي له بدو کارو څخه لکه شرک او نفاق او اتباع د شهواتو او معصية الرسول ﷺ او پيڼځه وخته لمونځونه پر شرع برابر کوئ، او که اغنياء وه زکاتونه ورکوئ او فرمانبرداري د خداى ﷻ او د رسول ﷺ کوي په کولو سره د مامور به من جانبهما او په ترک سره د مانهيا عنه، او دغه کسان ژر دى چي خداى ﷻ پر دوى رحم وکړي.

**پوه سه**: چي کلمه د سين لپاره د تاکيد ده يعني دا رحم به خامخا کېږي بناً على

عادته تعالی بلا وجوب علیه، او خدای ﷻ غالب دی هر کار ته چي یې اراده وکړي هغه به حتماً کېږي څوک یې مانع نه سي کېدای، او حکیم دی چي عبث کار نه کوي.

وَعَدَ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَمَسٰكِنَ طَيِّبَةً فِيْ جَنّٰتِ عَدْنٍ

خدای پاک وعده کړې ده د مؤمنین او مؤمناتو سره د جنتو چي بهېږي به لاندي تر درختو او قصورو ولې یعني څلور (۱) شدي (۲) عسل (۳) اوبه (۴) شراب، همېشه به وي دوی په دغو جنتو کي او ځایونه د اوسېدلو چي طیب به وي یعني د طبائع به د پر خوښ وي په جنتو کي د عدن.

**پوه سه:** چي د عدن یوه معنی لغوي ده چي اقامت او ستقرار او خلود دی، روح المعاني د جزء عاشر په تفسیر کي وایي وعلی هذا الجنات کلها جنت عدن ای الخلود، او مظهري هم اولاً په لفظ د قیل تفسیر په اقامت او خلود سره کړی دی، او یوه علمي معنی ده یعني چي یومعین جنت نوم دی، ابن جریر ﷫ له ابي درداؓ څخه روایت کړی دی چي رسول الله ﷺ وویل چي عدن دارُ الله دی "التي لم ترها عین ولم یخطر علی قلب بشر لا یسکنها الا ثلثة النبیون والصدیقون والشهدا یقول (یعني خدای ﷻ وایي) طوبی لمن دخلک" او صاحب المدارک وایي چي عدن علم دی په دلیل ددې قول د خدای ﷻ جنات عدن التي وعد الرحمن، او دی وایي چي نحات وایي چي التي او الذي صفت د معارفو واقع کېږي فهي مدینة في الجنة آه.

**درویش وایي:** چي توجیه د قول د مدارک داده چي په هر جنت کي یو قصر مخصوص د پر زیبا سته دده په نبز عدن نوم ددغه قصر دی، نو توفیق د ټولو اقوالو حاصل سو په دې معنی چي هر مؤمن او مؤمنة لره جنت په معنی جنسي سته، او عدن په معنی علمي شخصي سره د انبیا او صدیقینو او شهدا لپاره دی، او عدن په معنی د علم جنس په هر جنت کي د مقام مخصوص نوم دی چي هغه په هر جنت کي اعلی مقام دی، ویومی الی ماقلنا قول المدارک هي مدینة في جنة، حاصل د ماقلنا دادی چي د عدن یوه معنا جنسي ده چي دار الاقامة والخلود چي پر

هر جنت صادقېږي، او بله معنا يې علميت شخصي ده چي د انبيا عليهم السلام الخ ځاى دى او بله معنا يې علميت جنسي ده چي په هر جنت كي د يوه مخصوص عالي قشنگ ځاى نوم دى وهذا كما قال النحاة ان لفظ الاسد اسم جنس ولفظ اسامة المرادف له علم جنس وكل واحد من اللفظين يطلق على كل فرد من افراد الاسد الا ان لفظ اسد موضوع للحيوان المفترس بلا لحاظ تعيينه، ولهذا يوصف لفظ اسد بالنكرة ولايصح توصيفه بالمعرفة، ولفظ اسامة موضوع لذالك المعنى مع ملاحظة التعيين فيه فلذا يوصف لفظ اسامة بالمعارف دون النكرة، والحاصل ان علم الجنس امر اعتباري لضرورة الاحكام كاتوصيف بالمعارف.

**درويش وايي**: چي دا جمع له سوانح څخه د وخت دى وقل من يتنبه لهذا التحقيق والله الموفق والمعين، والحمد لله رب العالمين، والصلوة والسلام على سيد المرسلين وآله وصحبه اجمعين.

**فائده**: امام قرطبي رحمه الله په خپل تفسير كي وايي چي جنتونه اووه دي:

(١) دار الخلد (٢) دار الجلال (٣) دار السلام (۴) جنت عدن (۵) جنة المأوى (٦) جنة النعيم (٧) جنة الفردوس.

**درويش وايي**: چي دا خو د جنتو نومان وه لكن په معنى لغوي هر جنت دار الخلد يعني ځاى د همېشه والي، او هر جنت دار الجلال دى يعني د عزت ځاى، او هر جنت دار السلام دى يعني د سلامتيا ځاى د ټولو آفاتو څخه او هر جنت جنت عدن دى يعني د اقامت دائمي لپاره او هر جنت جنت مأوى دى يعني د پناه ځاى، او هر جنت جنت نعيم دى يعني د نعمتو ځاى، او هر جنت جنت الفردوس دى يعني تر عرش الرحمن لاندي دى.

وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ أَكْبَرُ

يعني لوى رضى د خداى جل جلاله بالا ده نعمةً تر ټولو نعمتو، ولي چي ټوله نعمتونه د اخيرت او جنتونه اثار د رضا د خداى جل جلاله دي، له ابي سعيد الخدري رضي الله عنه څخه روايت دى چي بخاري او مسلم دواړو راوړي دي، ابو سعيد رضي الله عنه وايي چي عليه الصلوة والسلام وويل چي خداى جل جلاله اهل جنت ته وو وايي يا اهل الجنة

دوی ووایي لبیک ربنا وسعدیک خدای ﷻ ورته ووایي آیا تاسي راضي یاست دوی ورته ووایي ولي به موږ نه یو راضي تا موږ ته راکړي هغه نعمتونه چي هیڅ چا ته د عالمیانو دي نه دي ورکړي، خدای پاک ورته ووایي چي تر دې ټولو نعمتو افضل شی زه وتاسي ته درکوم، قالوا وما افضل من ذالک؟ خدای پاک ورته ووایي احل علیکم رضواني فلا اسخط علیکم ابداً زه تاسي ته خپله رضا درکوم چي بیا غضب او غصه نه کوم پر تاسي تر ابده پوري.

ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِیْمُ

دا رضوان الله یا ټوله ماتقدم لویه کامیابي او بری دی اللهم ارزقنا ذالک الفوز الاکبر بحرمة القرآن العظیم، یو عارف وایي:

یکی میخواهد از تو جنت و حور ..... یکی خواهد که از دوزخ شود دور
ولیکن ما نخواهم این وآن جست..... مراد من همین خوشنودي تست
چو تو خوشنود گردی دردو عالم ..... همین مقصود بس والله اعلم

یٰۤاَیُّهَا النَّبِیُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَ الْمُنٰفِقِیْنَ وَ اغْلُظْ عَلَیْهِمْ ؕ وَ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ؕ وَ بِئْسَ الْمَصِیْرُ

اې نبي جهاد کوه د کفارو سره یعني بالسیف او د منافقانو سره یعني په ژبه او رفق و نرمي مه ورسره کوه او سختي خبري ورته کوه، او ځای ددوی یعني کفارو او منافقانو په ورځ د قیامت جهنم دوږخ دی او بد ځای د ورتګ دی جهنم، عطا رحمه الله وایي چي دې آیت ټوله عفوه او صفح ختمه کړل.

**پوه سه:** چي ابن جریر رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام ناست وُ د یوې درختي و سایې ته، نو یې وویل چي اوس به یو سړی راسي چي په سترګو د شیطان به ګوري، که مو کتل یو سړی راغلی شنې سترګي یې وې، نو علیه الصلوة والسلام ورو بولی او ورته وه یې ویل چي پر څه شي ته او ستا ملګري ماته ښکنځل کوئ، هغه سړی ولاړی ملګري یې راوستل، نو ټولو قسم بالله واخستی چي موږ تاته ښکنځل نه دي کړي، علیه الصلوة والسلام ومنل او عفوه یې ورته وکړه فانزل الله تعالی هذه الآیة.

يَحۡلِفُونَ بِٱللَّهِ مَا قَالُواْ

دوی قسم اخلي په خدای ﷻ چي موږ په تا کي څه بد نه دي ویلي.

**پوه سه:** چي جلاس بن سوید بن الصامت چي په غزا کئ د تبوک د علیه الصلوة والسلام څخه پاته سوی ؤ یعني تبوک ته نه ؤ ورسره تللی، داسي يې خپل ملګرو ته وویل ان کان هذا الرجل صادقًا في دعوی النبوة یعني محمدا ﷺ لنحن شر من الحمیر، نو موږ بد یو تر خرو، ولي موږ خو يې نه منو، نو عمیر بن سعد ﷺ دا خبره و علیه الصلوة والسلام ته ورسول نو جلاس مذکور سره د ملګرو قسم واخستی چي موږ دا خبره نه کړې یعني مخبر تاته دروغ ویلي دي. فانزل الله هذه الآیة. راویان وايي چي جلاس مذکور وروسته توبه وکښل او توبه يې له صدق څخه وه.

**پوه سه:** چي بغوي ﷫ د کلبي ﷫ قول رانقل کړی دی چي علیه الصلوة والسلام په تبوک کي خطبه وویل یوه ورځ، نو د منافقینو ذکر يې وکړی او دا يې وویل چي دوی نجس دي فقال جلاس لئن کان محمد صادقاً لنحن شر من الحمیر دا خبره عامر بن قیس ﷺ واورېدل او جلاس ته يې وویل هو ای محمد ﷺ صادق او تاسي بد یاست تر خرو، څه وخت چي علیه الصلوة والسلام مدینې ته راستون سو عامر بن قیس ورته راغلی او د جلاس هغه خبره يې و علیه الصلوة والسلام ته وکړه فقال الجلاس کذب علي، پر ما يې دروغ ویلي دي یعني عامر بن قیس، نو جلاس او عامر دواړه و علیه الصلوة والسلام ته راغله چي په نېز د منبر نبوي بعد العصر به قسم اخلي. نو اول جلاس ولاړ سو فحلف بالله الذي لا اله الا هو ماقاله ولقد کذب او پر ما يې دروغ ویلي دي، بیا عامر ﷺ ولاړ سو فحلف بالله الذي لا اله الا هو لقد قاله دا خبره جلاس کړې ده او ما دروغ نه دي پر ویلي، بیا عامر لاسونه پورته کړه د اسمان پر خوا یعني دعا يې وکړه یا الله انزل علی نبیک الصادق منا الصدق فقال رسول الله ﷺ والمؤمنین آمین فنزل جبرئیل دمخه تردې چي جلاس او عامر لا نه وه سره جلا سوي الآیة فقرئه علیه الصلوة والسلام یعني دا آیت يې ودوی ته تلاوت کړی تر

دې ځايه پورې "فان يتوبوا ايک خيراً لهم آه" نو جلاس ولاړ سو فقال يا رسول الله ﷺ ما له خداي ﷻ ځخه واورېدل يعني په دغه ايت منزله کي چي ما يه ته يې توبه عرض کړه، عامر بن قيس صادق دی رشتيا چي ما دغه خبره کړې وه و انا استغفر الله واتوب اليه فقيل رسول الله ﷺ ذالک منه ثم تاب وحسنت توبته.

وَلَقَدْ قَالُوا كَلِمَةَ الْكُفْرِ وَكَفَرُوا بَعْدَ إِسْلَامِهِمْ وَهَمُّوا بِمَا لَمْ يَنَالُوا

چي د جلاس خبره وه، لئن کان محمد صادقاً لنحن شر من الحمير وقد مر بيانه تفصيلاً آنفاً. او بعض مفسرين وايي چي له کلمة الکفر ځخه مراد سب دي و نبي ﷺ ته وقد مر ايضاً قريباً. وقيل قول د عبد الله بن ابي رئيس المنافقين وخپلو هم عقيده ملګرو ته لئن رجعنا الى المدينة ليخرجن الاعز (دده مراد خپله ډله منافقان وه) منها الاذل (دده مراد عليه الصلوة والسلام او اصحاب وه) وسيجئ بيانه في سورة المنافقين ان شآ الله تعالى.

وترجمة الآية: او دوی کفر ښکاره کړی وروسته تر اظهار د ايمان نفاقاً. او دوی قصد کړی ؤ يو شي ته چي قتل د عليه الصلوة والسلام ؤ چي هغه يې نه کړی پيدا يعني په هغه قصد کي کامیابه نه سوه. دا هغه دوولس کسان وه د منافقانو چي عليه الصلوة والسلام له تبوک ځخه د مديني منورې و خواته راروان ؤ نو دوی مولونه وهلي وه پر عقبه ورته ولاړ وه چي عليه الصلوة والسلام له عقبه ځخه لاندي ژوري شېلې ته پرې وهي چي مړ سي، جبرئيل و عليه الصلوة والسلام ته خبر ورکړی او ورته وه يې ويل چي يو سړی ور واستوه چي ددوی د اوښانو مخ له عقبې ځخه واړوي، عليه الصلوة والسلام حذيفه ﷺ ته دا وظيفه ورکړه.

**درویش وايي:** چي دا قصه په تفصيل سره دمخه تېره سوه، او طبراني له ابن عباس ﷺ ځخه روايت کړی دی چي قصد کړی ؤ يو سړي چي اسود يې نوم ؤ چي عليه الصلوة والسلام قتل کړي لکن کامیابه نه سو.

وَمَا نَقَمُوٓا۟ إِلَّآ أَنْ أَغْنَىٰهُمُ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ مِن فَضْلِهِۦ

او دوی ته مبغوض نه ؤ يعني دوی داسي شی نه درلودی چي سبب د دومره عداوت د عليه الصلوة والسلام دي وای، او عليه الصلوة والسلام ددوی سره کوم بد نه وه کړي چي د هغو بدو کسات يې له ده څخه اخستلای. مگر نه دا چي خدای او رسول دده دوی غنيان کړل له فضله څخه د خدای يعني الرزق الکثير او دا خو احسان ؤ او حسان خو محبوب القلوب دی يوجب المحبة والانقياد دون النقمة والعناد، او جمله "وما نقموا" حال ده له فاعل څخه د "هموا" او په دې آيت کي تنبيه ده پر کمال شر او پر خبث باطن ددوی چي په مقابل کي د احسان يې انتقام مختار کړی. او تر سپيانو دوی بد تره سوه، ولي سپي ته چي مالک ډوډی، او غوښي ورکوي، نو که هر څو دا مالک بلکې کوچنی اولاد دده د مالک که هر څو دا سپی ووهي حمله نه پر کوي.

**سوال**: دا استثنا څرنگه صحيح کېږي چي احسان دي له نقمة څخه استثنا سي؟

**ځواب**: د معاني په کتابو کي وايي چي گاهي د صفت مدح لـه ذم څخه مستثنی کوي بلغاً مبالغةً کما في قول الشاعر:

ولاعيب فيهم غير ان سيوفهم .......... بهن فلول من قراع الکتائب

نو په آيت کي چونکه په خدای او په رسول کي سبب د نقمت د منافقانو نه ؤ نو په سبب موجب د انقياد او د محبت ځني استثنا کړی چي احسان دی او دا له مبالغاتو څخه د شعراؤ او بلغاؤ ده چي ډېري انواعي لري.

**درويش وايي**: چي حاسد به بيا پر دې ځای سترگې له بېخه راوکاږي چي په دې خبرو طالبان بلکې بعض امامان هم نه پوهېږي، نو د راوړلو يې څه فائده ده؟

**ځواب**: د درويش غرض تصحيح او بيان د استثنا ده في هذه الآية که څوک په پوهېږي لکه اهل علم او که نه په پوهېږي لکه تاغوندي امام حاسد يا کتاب فروش.

فَإِن يَتُوبُوا۟ يَكُ خَيْرًا لَّهُمْ ۖ وَإِن يَتَوَلَّوْا۟

که دوی يعني منافقين توبه وکاږي له کفر او نفاق څخه يعني لکه جلاس چي توبه وکښل کمامر عنقريب نو دا توبه به خير وي ددوی په دنيا او اخرت کي، او

که دوی روی گرداني وکړه له توبې او اخلاص څخه بلکې پر نفاق ټينګ وي.

**سوال**: "یک" څو جزاً د "ان" ده چي مجزوم به وای لکن علامه د جزم څو اسقاط د حرف علت یا حرکت دی په اخیر د کلمې. نو کلمه د نون په "یک" کي څرنګه حذف سوه؟

**ځواب**: چونکه باب د کان کثیر الاستعمال دی په عربي ژبه کي، نو د غایت تخفیف لپاره چي جازم پر یکون داخل سو حرکت د نون یې حذف کړی، وروسته التقاً د ساکنینو په منځ د نون او واو راغله واو یې حذف کړی وروسته یې نوم هم حذف کړی التشبیه بحرف العلة. په قرآن مبارک کي څو ځایه "یک" راغلی دی لکن عام استعمال یې بقاً د نون ده نحو لم یکن فافهم.

يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ عَذَابًا أَلِيمًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۚ وَمَا لَهُمْ فِي الْأَرْضِ مِنْ وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ۞

په عذاب به کړي خدای ﷻ دوی په عذاب دردناک سره په دنیا کي په رسوایي او یا قتل سره او په اخیرت کي په اور د جهنم او نسته دوی لره په ځمکه او په اخیرت کي یو دوست او نه کومکي.

**درویش وايي**: چي بغوي رحمه الله د وروسته آیت شان نزول په دې ډول راوړی دی چي ثعلبه بن حاطب الانصاري چي روح البیان دده په باب کي داسي ویلي دي په ابتداً کي د مسجد نبوي ملازم و لیلاً ونهاراً. نو له دې سببه به خلګو دی حمامة المسجد باله او دده تندی له ډېرو سجدو څخه پر تودو شګو داسي سوی و لکه د اوښ زنګون انتهی عبارة روح البیان، اوس بیرته د بغوي د روایت پر لور نو ثعلبه و علیه الصلوة والسلام ته راغلی فقال یا رسول الله ادع الله ان یرزقني مالاً نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي ته په رسول پسي د خدای ﷻ اقتداً حسنه نه کوې یعني ما فقر خوښ کړی دی ته هم په فقر راضي اوسه. علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي زما دي قسم په هغه ذات وي چي زما روح د هغه په قدرت کي دی که زه اراده وکړم چي غرونه دي زما سره د سرو زرو وي او زما سره دي روان وي، نو به را سره روان وای، په بل روایت کي راغلي دي "لکن اخترت جوع الدنیا علی شبعها"

وروسته بیا ثعلبه ورته راغلی فقال یا رسول اللهﷺ ادع الله ان یرزقني مالاً او زما دي قسم په هغه خدای وي چې ته یې رسول بالحق را استولی یې که ماته خدای ﷻ مال راکړی زه به یې ورکوم هر ذي حق ته حق دده یعنی من الصدقات المفروضة والمنذور به. فقال رسول اللهﷺ اللهم ازرق ثعلبة مالاً. نو ثعلبه یو څو مېږي رانیولې، نو دده مېږو او پسو په اثر د دعا د علیه الصلوة والسلام نما او زیاتوب والی شروع کړی لکه د خوشیو چینجیان نو یو څو میاشتي پیا کلونه وروسته د مدینې منورې کوڅې پر تنګي سوې، نو ده د مدینې دبادي په یوه شپله کي خېمې ودرولې او د ماپښین او د ماز دیګر د لمانځه لپاره به مسجد نبوي ته راتلی او درې لمونځونه به یې د پسو په ځای کي بې جماته کول، څو میاشتي وروسته هغه شپله هم پر تنګه سوه مېږي او پسونه یې مخ پر نما روان دي لکه چینجیان، نو خیر یوې لېرې پراخه شپلې ته ولاړی. نو یوه جمعه او بله جمعه په مسجد نبوي ته راتلی، د جمعې لمونځ چي به یې وکړی بیرته به ولاړی او پینځه سره د مسجد نبوي لمونځونه یې پرېښول. اخیراً پسونه ښخي سره ډېر سوه حتی چي ثعلبه تر پخوا لا یوې لېرې شپلې ته ولاړی او د جمعې لمونځ یې هم پسي پرېښو، نو د جمعې په ورځ چي په خلګ د جمعې د لمانځه لپاره مسجد نبوي ته راتله، نو د جمعې د لمانځه وروسته چي په هغه خلګ خپلو کورو ته ولاړل نو به ثعلبي د مدینې او د علیه الصلوة والسلام د احوالو پوښتنه څندي کوله. یوه ورځ علیه الصلوة والسلام له خلګو څخه پوښتنه وکړه مافعل ثعلبة؟ خلګو ورته وویل چي د هغه مالونه اوس دومره پسونه اوښان ډېر دي چي په یوه شپله کي یې نه سي ځایولای، فقال رسول اللهﷺ یا ویح ثعلبة یا ویح ثعلبة یا ویح ثعلبة (دا کلمه د ترحم ده یا د افسوس وهغه چاته ویل کېږي چي په یوه مهلکه کي واقع وي) په دې دوران کي د صدقاتو یعني زکوٰة آیت نازل سو، نو علیه الصلوة والسلام یو نفر د بني سلیم او بل نفر د جهینة د قبیلې عامل پر را جمع کولو د زکاتو د پسو او اوښانو وګمارل. او دوی ته یې د زکوٰة د هر مال نصاب او د زکوٰة خط ورنوشته کړی، او دې دوو کسانو ته یې وویل چي ثعلبه ته هم د زکوٰة لپاره ورسئ، نو دوی له مدینې څخه ووتل او ثعلبه ته

ورغله او د زکوة غوښتنه یې څنډي وکړه او د علیه الصلوة والسلام مکتوب یې ورته ووایه، نو ثعلبه ورته وویل ما هذه الا جزیة او ماهذه الا اخت الجزیة، عرض یې دا وچې زکوة نه دی بلکې دا جزیه ده چې له کفارو څخه اخستل کېږي، نو ثعلبه ورته وویل چې تاسي له نورو صدقاتو څخه ځان فارغه کړئ بیا به ماته راسئ، نو د بني سلیم یو مالدار سړی و هغه په خپلو اوښانو کي هغه ښه اوښان عاملانو ته راواستل، عاملانو ورته وویل چې زکوة خو میانه مال د مالک وي تاخو خیار اوښان راوستل دا خو پر تا نه وه لازمه، هغه ورته وویل خذاه فان نفسي بذالک طیبة، واخلئ دا ښه اوښان زما نفس په دغو ښوو اوښانو خوشاله دی، خیر نورو خلکو خپل خپل زکاتونه ورکړل اخیر ثعلبه ته راغله ثعلبه ورته وویل چې تاسي هغه مکتوب رانبکاره کړئ، نو ثعلبه په خپله مکتوب ووایه، بیا ده هغه مخنی کلام استعمال کړی ما هذه الا جزیة آه.

او دوی ته یې وویل چې تاسي ولاړسئ زه به د خپل ځان سره فکر ووهم، نو هغه دوه کسه چې راغله دمخه تر دې چې دوی د ثعلبه حال و علیه الصلوة والسلام ته بیان کړي علیه الصلوة والسلام وویل ویح ثعلبة ویح ثعلبة ویح ثعلبة فانزل الله فیه.

وَمِنۡهُم مَّنۡ عَٰهَدَ ٱللَّهَ لَئِنۡ ءَاتَىٰنَا مِن فَضۡلِهِۦ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿٧٥﴾

او د دوی څخه یعني د منافقینو هغه کسان دي چې د خدای سره عهد او پیمان کړی وي، چې دلته مرد څنډي ثعلبه دی چې که چېري خدای ﷻ ماته راکړي بعض له مال څخه، پوه سه! چې لام د "لئن" موطئه دی اصل د لنصدقن لنتصدقن و تا یې په صاد کي مدغمه کړه، او هر آئینه به زه ګرځم له صالحانو بندګانو څخه. له ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چې زه په عمل د اهل صلاح کوم زکوة به ورکوم صله رحمي به کوم او نفقات واجبه او مندوبه به ورکوم او په جهاد في سبیل الله کي به کومک کوم وغیر ذالک.

فَلَمَّآ اٰتٰىهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ بَخِلُوْا بِهٖ وَتَوَلَّوْا وَّهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۷۶﴾

نو څه وخت چي خدای ﷻ ودوی ته ورکړي له فضله څخه یعني له ماله، دوی بخل مختار کړي یعني حق الله زکوة یې منع کړی او دوی مخ واړاوه د خدای او د رسول له اطاعت څخه. او دوی یعني مناققان قوم کوي چي عادت یې اعراض دی.

**سوال:** ثعلبه بن ثابت خو یو سړی ؤ، نو ضمائر د جمع څه معنا لري؟

**خواب:** د قرآن مجید آیت که څه هم په یوه شخص کي نازل وي لکن احکام یې عام وي.

فَاَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِيْ قُلُوْبِهِمْ اِلٰى يَوْمِ يَلْقَوْنَهٗ بِمَآ اَخْلَفُوا اللّٰهَ مَا وَعَدُوْهُ وَبِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ ﴿۷۷﴾

نو عاقبت د امر ددوی چي بخل یې په زکوة سره وکړی خدای ﷻ وګرځاوه، بد اعتقاد ددوی په زړو کي چي د زکوة مفروضه من عند الله له فرضیت څخه منکر سوه او زکوة یې اخت الجزیة وباله، تر هغه ورځي چي دوی د خدای ﷻ سره ملاقي کیږي په مرګ سره یا په بعث بعد الموت سره په ورځ د قیامت یعني خدای ﷻ خپل لطف له دوی څخه منع کړی او مرګ ددوی یې پر نفاق وګرځاوه "بما اخلفوا" با سببیه ده او کلمه د ما مصدریه ده ای بسبب خلافهم د دوی د خدای ﷻ سره په هغه شي کي چي دوی وعده کړې وه یعني ثعلبه، او په سبب ددې چي دروغ یې ویله. روح البیان او مظهري رحمه الله وایي چي دا آیت چي نازل سو په شان کي د ثعلبه، نو بعض اقارب د ثعلبه دلته حاضر وه دا آیت یې واوریدی، او روح البیان وایي چي عمر رضي الله عنه پر آس سپور سو، نو یا قریب د ثعلبه یا ثعلبه ته ورغلی فقال ویحک یا ثعلبة لقد انزل الله في شانک کذا وکذا حتی قرائه الآیة فخرج ثعلبة حتی اتی النبي ﷺ، نو علیه الصلوة والسلام ته یې وویل چي زما صدقه قبوله کړه. علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي زه خدای ﷻ منع کړی یم له قبول څخه د صدقې ستا. نو ده پر سر خاوري باد کړې، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل هذا عملک قد امرتک فلم تطعني، نو چي علیه الصلوة والسلام یې صدقه نه کړه قبوله ثعلبه خپل کور ته

ولاړی، او وروسته چي علیه الصلوة والسلام وفات سو، ثعلبه و ابوبکر خلیفة المسلمین ﷺ ته راغلی چي زما صدقه قبوله کړه، ابوبکر ﷺ ورته وویل چي ستا صدقه علیه الصلوة والسلام نه کړه قبوله زه به یې قبلوم. ابوبکر ﷺ چي وفات سو بیا خلیفه ثاني امیر المؤمنین عمر ﷺ ته راغلی هغه ته یې وویل چي زما صدقه قبوله کړه، عمر ﷺ ورته وویل چي علیه الصلوة والسلام نه کړه قبوله او خلیفه اول نه کړه قبوله زه به یې قبلوم؟ انکار یې وکړی له قبول څخه د صدقې د ثعلبه، بیا چي عمر ﷺ وفات سو، نو حضرت عثمان ﷺ ته راغلی چي زما صدقه قبوله کړه هغه هم انکار وکړی. او د عثمان ﷺ په خلافت کي ثعلبه مړ سو.

**پوښتنه**: ثعلبه که منافق هم ؤ خو توبه یې په حضور کي د علیه الصلوة والسلام وکښه، نو څرنګه یې توبه نه سوه قبوله. او جلاس چي هم منافق ؤ چي توبه یې وکښل توبه یې قبوله سوه کمامر عنقریب؟

**ځواب**: د جلاس توبه عن صدق القلب وه. نو ځکه قبوله سوه او د ثعلبه توبه نفاقانه وه نو ځکه نه سوه قبوله.

**سوال**: د زړو مالک خو خدای ﷻ دی. نو دا علیه الصلوة والسلام ته څه معلومه سوه چي د ثعلبه توبه منافقانه ده؟

**ځواب**: خدای ﷻ علیه الصلوة والسلام خبر کړی بقوله تعالی "فاعقبهم نفاقاً في قلوبهم الی یوم یلقونه آیة"

أَلَمْ يَعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَىٰهُمْ وَأَنَّ ٱللَّهَ عَلَّٰمُ ٱلْغُيُوبِ ﴿٧٨﴾

آیا علم نه لري منافقان او هغه څوک چي خلاف د وعدې خپل یې ښکاره کړی لکه ثعلبة المذکور. او استفهام لپاره د توبیخ او سرزنش دی. په تحقیق خدای ﷻ خبر دی په پټو حالاتو ددوی چي نفاق او قصد د خلاف العهد دی لکه د ثعلبه. او په هغو خبرو چي یو د بل سره یې کوي په کوږني مجلس کي چي طعن پر علیه الصلوة والسلام او پر دین د اسلام وایي او یا زکوة جزیه بولي. او په دې نه دي خبر چي خدای ﷻ ښه خبر او علم لري پر پټو کارو فلا یخفی علیه شيء مما یریدون اخفائه.

اَلَّذِيْنَ يَلْمِزُوْنَ الْمُطَّوِّعِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ فِي الصَّدَقٰتِ وَالَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ اِلَّا جُهْدَهُمْ فَيَسْخَرُوْنَ مِنْهُمْ

هغه کسان چي عيب وايي رغبت کونکي له مسلمانانو څخه "في الصدقات" اى في اکثارها، او هغه کسان چي نه لري مايتصدقون مګر نه په قدر د طاقت يعني مال قليل، نو منافقان په دغو متصدقينو پسخند واهه.

**اعراب**: الذين يا مبتدأ ده خبر يې سخر الله منهم دی. او يا مرفوع محلاً دی په مقام کي د ذم اى المنافقون الذين، او يا منصوب محلاً دی په تقدير د اعني د "المطوعين" اصل متطوعين ؤ تا يې په طأ مدغمه کړه.

**شان نزول**: بغوي وايي چي مفسرين رحمهم الله وايي چي عليه الصلوة والسلام په مسلمانان باعثه کول پر صدقه لپاره د غزأ د تبوک، نو عبدالرحمن بن عوف څلور زره درهمه راوړه، نو عليه الصلوة والسلام ته يې وويل چي اته زره درهمه ما درلوده څلور زره مي تاته راوړه فاجعلها في سبيل الله، او څلور زره مي د عيال د نفقې لپاره وګرځول، عليه الصلوة والسلام ورته وويل بارک الله فيما اعطيت وما امسکت. ددې دعا نبوي نتيجه دا سوه چي په مال کي د عبدالرحمن رضي الله عنه خدای جل جلاله دومره برکت پيدا کړی چي دی وفات کېدی دوې مايني يې درلودې او زامن يې هم درلوده چي په دې صورت کي دواړي په يوه ثمن المال سره شريکاني دي، نو دده د مال ثمن چي حساب ورته وسو يو سل او شپېته زره درهمه سوه چي يوې مايني ته يې چي نوم يې تماضره وه د خپل ثمن څخه چي تولـه مال نقود وغيرها کي حق ؤ پر اتيا زره درهمه نقد يې د ورثه سره صلح وکړه او دا ددې تر حق په تولـه مال کي کم ؤ او په دغه ورځ عاصم بن عدي سل وسق خورما راوړه چي .و وسق شپېته کاسې کېږي. او يو مسکين سړی چي ابو عقيل انصاري يې نوم ؤ يوه کاسه خورما يې راوړه او عليه الصلوة والسلام ته يې وويل چي ما ننه شپه تولـه مزدوري وکړه دوې کاسې خورما مي برابره کړه او يوه مي تاته راوړه او يوه مي کورته پرېښول، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي د خورما وو په صدقه کي يې واچوه، نو منافقانو د خدای او د رسول دښمنانانو د

دغو مطوعینو آه په عیب ویلو چې معنی د لمز ده خولې یې وازې او ژبې یې درازې کړې چې عبدالرحمن او عاصم چې دا دومره ډېره صدقه یې راوړه صرف د ریا لپاره، او عقیل چې یوه پیمانه خورما راوړه خدای او رسول دده د یوې پیمانې څخه مستغني وه دده غرض دا و چې دوی په متصدقینو کې ځان داخل کړی بله ورځ چې صدقات وېشل کېږي ده ته به هم برخه ورکړل سي.

**درویش وایي:** چې دې منافقانو په مضمراتو د زړو گویا ځانونه خبر بلل هیهات هیهات. دوی ظواهر نه پېژندل چې معجزات د علیه الصلوة والسلام دي والا لآمنوا بالصدق والاخلاص وترکوا النفاق فاني لهم العلم بالضمائر.

**یوه سه:** چې له مطوعینو څخه مراد عبدالرحمن او عاصم دی او الذین لایجدون آه مراد ابو عقیل دی.

**فائده:** ددې قصې روایت په قول د مظهري. احمد او ابن جریر رحمهما الله له ابن عباس رضي الله عنهما څخه یې روایت کړی دی.

**درویش وایي:** چې دا قصه سره د یو څه تفصیله روح البیان هم راوړې ده لکن اسناد او راویان یې نه دي ذکر کړي کما هو عادته في نقل الاحادیث غالباً والله اعلم بالصواب.

سَخِرَ اللّٰهُ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ ۝

خدای پسخند وواهه په دوی او دوی لره دی عذاب درد ورکونکي.

**درویش وایي:** چې نسبت د سخریه وخدای جل جلاله ته مجازاً دی د جزاً د سخر یو د منافقینو وعبر بالسخریة لوقوعه بعد یسخرون کما في قوله تعالی "جزاً سیئة سیئة بمثلها "الیم" مؤلم کما في قول الشاعر:

امن ریحانة الداعي السمیع (ای مسمع) یورقني واصحابی هجوع

دا عذاب الیم په سبب د کفر او استهزاً ددوی خدای جل جلاله ورکوي، قال البیضاوي چې په یوه روایت کې راغلي دي چې عبدالله چې د عبدالله بن ابي منافق زوی و او دی په خپله مخلص مسلمان و علیه الصلوة والسلام ته راغلی په وخت کې د پلار د مرض موت چې زما وپلار ته طلب د بخښنې له خدای جل جلاله

څخه وکړه، نو عليه الصلوة والسلام هم دغسي وکړه لپاره د خوشالى د ابن ابي د زوی عبد الله فنزلت هذه الآية.

**اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ**

ته طلب د بخښي وکړه او يا يې مه کوه.

**درويش وايي**: چي معنى د امر او نهي دلته اخبار دى په دې سره چي استغفار د رسول الله ﷺ او عدم استغفار سره برابر دي عدم نفع له لکه خداى ﷻ چي په دې قول کي تصريح په وکړه.

**اِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ**

که ته بخښنه وغواړې ددوى لپاره اوويا واره هرگز يې خداى ﷻ نه بخښي.

**پوه سه**: چي اکثره مفسرين رحمهم الله پر دې دي چي مراد له ذکر څخه د سبعين مجرد تکثير دى تحديد او تعيين د سبعين نه دى روح البيان وايي وهذا کما يقول القائل (لشخص سائل لقضا حاجته) لوسئالتني سبعين مرة لم اقضها لايريد انه اذا زاد على السبعين قضى حاجته انتهى.

**درويش وايي**: چي په پښتو کي ورته مثال سته چي يو سړى وبل سړي ته ووايي چي فلانى کار وکړه، هغه ورته ووايي چي اوويا واره ته راته ووايه زه يې نه کوم.

**سوال**: په حديث شريف کي راغلي دي چي دا آيت چي نازل سو عليه الصلوة والسلام وويل اسمع الله وقد رخص لي فيهم فوالله لا ستغفرن اکثر من سبعين مرة لعل الله ان يغفر لهم، نو له دې حديث څخه خو داسي فهمېږي چي مقصود تعيين د سبعين دى مجرد تکثير نه دى؟

**ځواب**: بيضاوي وايي چي رسول الله ﷺ له سبعين څخه عدد مخصوص وفهماوه، لانه الاصل فجوز لفرط شفقته لانه رحمة للعالمين ان يکون ذالک حدا يخالفه حکم ما ورائه اى الزائد على السبعين فلهذا قال ما قال لاستغفرن اکثر من سبعين آه فبين له (اى بالوحي الخفي) المراد به التکثير دون التحديد انتهى بزيادة.

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ ۗ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِينَ ۝٨٠

د نا اميدئ له مغفرت څخه د منافقانو چي ابن ابي دلته مراد دی، په سبب ددې دی چي دوی کفر کړی په خدای او په رسول سره د خدای ﷻ يعني سبب دا نه دی چي په خدای ﷻ کي ذميمه د بخل سته. او نه له قصور څخه په تاکي بل لعدم قابليتهم للمغفرة بسبب الکفر والموت عليه لانه صارف عن المغفرة.

فَرِحَ الْمُخَلَّفُونَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلٰفَ رَسُولِ اللّٰهِ

خوشحاله دي هغه کسان چي د تخلف اجازه يې تر لاسه کړه په اعذار باطله وو سره په غزا کي د تبوک بقعودهم، نو مقعد مصدر ميمي دی، بعد رسول الله ﷺ کذا قال ابو عبيدة في تفسير الخلاف.

وَكَرِهُوا أَنْ يُجَاهِدُوا بِأَمْوٰلِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَقَالُوا لَا تَنْفِرُوا فِي الْحَرِّ

او دوی يعني منافقان مکروه بولي يعني بد وړي له دې څخه چي دوی دي جهاد وکړي په مالو سره خپل او په ځانو سره خپل په لار کي د خدای ﷻ. يعني په غزوه تبوک کي په دې بيان کي د حال د منافقانو اشاره ودې ته ده چي حال د مخلصو مسلمانانو دغه نه دي بلکې دوی لپاره د رضا الهي هم تر مالو تېر دي او هم تر خپلو سرو تېر دي کما سبق من احوال المؤمنين المخلصين. او منافقان يو ر بل ته وايي بلکې مؤمنانو ته به يې هم ويله چي مه وزئ له مدينې څخه په دې سره گرمۍ کي وجنگ ته د تبوک، او د تبوک د غزا وخت عين په دوبي کي و.

قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ أَشَدُّ حَرًّا ۚ لَوْ كَانُوا يَفْقَهُونَ ۝٨١

ته ورته ووايه دوی ته چي اور د دوږخ چي پر تقدير د تخلف عن غزوة تبوک وتاسي ته درکړه کېږي سخت دی په گرم والي تر گرمۍ د دوبي د دنيا، ولي يو خو دوږخ اور دی چي په ډېرو بلېږي او د دوبي گرمي په دنيا کي گرم والی د هوا چي ساتنه د ځان ځني ممکنه ده بخلاف جهنم، او بل چي د تبوک د غزا گرمي خو موقت او متناهي ده او د دوږخ گرمي خو ابدي ده، نو يو سړی چي له موقتي گرمۍ څخه

ځان ساتي او په مؤبده ګرمی کي ځان واقع کوي او د هوا له ګرمیه ځان ژغوري او په سختو لمبو کي د دوزخ ځان دروي اجهل دی من کل جاهل، که دوی پوهېدای جزا محذوف ده ای لم یختار والنار المؤبدة علی حرارة هوا الصیف الموقتة.

مقام عیش میسر نمیشود بی رنج ..... بلی بحکم بلا بسته اند حکم الست
من از دیار حبیبم نه ازدیار غریب ..... مهیمناً بعزیزان خود رسان باشم

**فَلْيَضْحَكُوا قَلِيلًا وَلْيَبْكُوا كَثِيرًا جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿٨٢﴾**

منافقان دي خاندي چي دوی په دې خوشاله سول چي په غزوه کي د تبوک د علیه الصلوة والسلام سره نه ولاړه قلیلاً یعني ضحکاً قلیلاً، نو مفعول مطلق په حذف د موصوف او زماناً قلیلاً نو ظرف دی د یضحکوا وعلی التقدیرین فالضحک في الدنیا هو المراد مدة عمرهم لان عمر الدنیا بالنسبة الی الآخرة قلیل وعمر المنافقین في الدنیا اقل من عمر الدنیا فعمر المنافقین اقل من قلیل او دوی دي ژاړي کثیراً ای بکاءً کثیراً او زماناً کثیراً وعلی التقدیرین، فالمراد بالبکا البکا في الآخرة.

**یوه سه:** چي بکا او ضحک یا محمول پر حقیقت دی او یا کنایه د سرور او غم څخه دی.

**یوه سه:** چي دا دوې صیغې خو امر دی لکن مقصود اخبار دی له حال څخه د دوی في الدنیا والآخرة عدول وصیغې ته د امر لپاره د دلالت پر دې ده چي دا ضحک او بکا خامخا کېدونکې ده، ولي چي امر د قادر مطلق چي الله ﷻ دی حتمی الوقوع دی، جزا مفعول مطلق د فعل محذوف دی ای یجزون جزا پر هغه فعل او قول چي دوی په دنیا کي کاوه من الکفر والنفاق والمعاصي.

**درویش وایي:** چي امام نواوي رحمه الله په شرح کي د یوه راوي د حدیث په باره کي وایي چي دغه راوي هیڅ چا په هیڅ حال کي یعني هر رنګه عجب شی چي به یې ولیدی دده خندا چا نه ولیدل. دده څخه چا پوښتنه وکړه چي ته ولي نه خاندې ده په ځواب کي ورته وویل هغه چا ته چي دا نه وي معلومه چي زه له اهل جنت څخه یم یا د اهل النار نو څرنګه به هغه خاندي. څه وخت چي دا راوي وفات سو

غاسلانو غسل ورکاوه ده خندل، ولې چې پرده پورته سوه حال معلوم سو چې من اهل الجنة يم، ولې چې په وخت کې د زکندن ملائکه زېرى ورکوي بما في القرآن المجيد "ياايها النفس المطمئنة ارجعي الى ربک راضية مرضية الآية" په يو حديث کې چې روايت يې احمد، بخاري، مسلم، ترمذي او نسائي رحمهم الله له انس رضي الله عنه څخه کړى دى چې رسول الله ﷺ وويل "لو تعلمون ما اعلم لضحکتم قليلاً ولبکيتم کثيراً (که تاسي خبر سئ او علم ولرئ پر هغه څه چې زه علم پر لرم من سکرات الموت وعذاب القبر واهوال الآخرة، نو تاسي په خندلاى لږ او ژړلاى به مو ډېر ولهذا کان حاله ﷺ التبسم فقط عند رؤية العجب.

ديدى آن قهقهه کبک خرامان حافظ... که زسر پنجه شاهين قضا غافل بود

فَإِن رَّجَعَكَ اللَّهُ إِلَىٰ طَائِفَةٍ مِّنْهُمْ فَاسْتَأْذَنُوكَ لِلْخُرُوجِ فَقُل لَّن تَخْرُجُوا مَعِيَ أَبَدًا

که ته خداى ﷻ سالم راوستلې مدينې ته و يوې ډلې ته د متخلفينو يعني المنافقين، وانما قال الى طائفة منهم، ولې ټول متخلفين خو منافقين نه وه بلکې اصحاب عذر من العمي والزمانة وعدم زاد السفرهم، په مختلفينو کې وه، نو دوى له تا څخه اجازه وغواړي د خروج وبلې غزا ته بعد تبوک، نو ته ورته ووايه چې تاسي نه سئ وتلاى زما سره يعني و غزا ته تر ابد پورې.

وَلَن تُقَاتِلُوا مَعِيَ عَدُوًّا ۖ إِنَّكُمْ رَضِيتُم بِالْقُعُودِ أَوَّلَ مَرَّةٍ فَاقْعُدُوا مَعَ الْخَالِفِينَ ۝

او هرگز تاسي جنگ نه سئ کولاى زما په فوج کې د هيڅ دښمن سره. په تحقيق تاسي راضي سواست په ناسته سره يعني په تخلف سره اول وار يعني في غزوة تبوک، نو اوس هم کښېنئ سره د پاتو کسانو يعني ښځي او کوچنيان او مريضان او شلان وغير ذالک من المعذورين لعدم لياقتهم للجهاد. حاصل دا چې دوى له ديوان څخه د غزا ساقط سوه ابداً "انکم رضيتم آه" تعليل دى د عدم خروج مع النبي ﷺ.

بخاري او مسلم له ابن عمر رضی الله عنه څخه روايت کړی دی چي څه وخت چي عبدالله بن ابي وفات سو دده زوی چي نوم يې عبدالله ؤ (او مخلص مسلمان و) راغلی و عليه الصلوة والسلام ته چي دا ستا قميص ماته راکړه چي زه يې خپل پلار ته کفن کړم. عليه الصلوة والسلام قميص ورکړی وروسته يې وويل چي لمونځ هم ورکړه.

**درويش وايي:** چي د عبدالله بن عبدالله بن ابي دا خيال ؤ چي د عليه الصلوة والسلام د قميص په برکت به او په سبب د جنازې د لمانځه به زما پلار له عذاب څخه خلاص سي او خدای پاک به يې وبخښي، نو عليه الصلوة والسلام چي د عبدالله بن ابي د جنازې پر لمانځه درېدی عمر رضی الله عنه ترکالو ټينګ کړی يعني لمونځ مه ورکوه، فقال عمر رضی الله عنه يا رسول الله اتصلي عليه وقد نهاک ربک ان تصلي على المنافقين. نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ماته خدای پاک اختيار راکړی دی وقال استغفر لهم او لا تستغفر لهم ان تستغفر لهم سبعون مرة فلن يغفر الله لهم الاية. کمامر، عمر رضی الله عنه وويل چي دی خو منافق ؤ خير لمونځ يې ورکړی فانزل الله تعالى هذه الآية.

## وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰٓ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِۦٓ

مراد په صلوة سره دعا د استغفار ده وميت ته فيشمل صلوة الجناز ايضاً لانها مشتملة على الدعا والاستغفار. او ته د جنازې لمونځ مه ورکوه و يوه ته د دوی يعني منافقينو چي مړه سي ابداً او مه درېږه وقبر ته ددوی چي د عليه الصلوة والسلام دا عادت ؤ چي سړی به يې ښخ کړی وقبر ته به يې ودرېدی او دعا به يې ورته وکړه. که څه هم قيام القبر خو منهي عنه نه ؤ بالذات لکن چونکه د دعا لپاره ؤ او دعا و منافق ته نه وه روا، نو ځکه خدای جل جلاله له قيام څخه نهي وکړې.

## إِنَّهُمْ كَفَرُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَمَاتُوا۟ وَهُمْ فَٰسِقُونَ ﴿٨٤﴾

تعليل للنهي، ولي چي دوی کفر کاوه له خدای جل جلاله څخه او دوی مړه سوه په داسي حال کي چي دوی فاسقان وه. بغوي رحمه الله ويلي دي چي راوي وايي چي نبي صلی الله علیه وسلم خبري وکړې په باره کي د قميص ورکولو او د لمانځه د جنازې ورکولو او داسي يې وويل وما يغني عنه قميصي وصلاتي" ده ته فائده نه رسوي زما

قمیص او زما لمونځ من الله یعني من عذاب الله. والله اني کنت ارجو ان یسلم به الف من قومه. راوي وايي چي رشتیا زر کسو ایمان راوړی له قوم څخه د عبدالله بن ابي چي دوی ولیدی تبرک په قمیص د علیه الصلوة والسلام او د قمیص د ورکولو بخاري دا سبب بیان کړی دی، چي عباس ﷺ چي په د بدر په بندیانو کي راوستل سو او قمیص یې نه ؤ یوازي لنګ یې وهلی ؤ، نو عباس ﷺ چونکه جګ سړی ؤ د هیڅ صحابي قمیص نه پر اصل کېدی، د عبدالله بن ابي قمیص پر اصل سو، نو عبدالله بن ابي خپل قمیص عباس ﷺ ته ورکړی، نو علیه الصلوة والسلام خپل قمیص په مکافات کي د هغه قمیص ورکړی والله اعلم.

**وَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ وَأَوْلَادُهُمْ إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُعَذِّبَهُمْ بِهَا فِي الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ أَنْفُسُهُمْ وَهُمْ كَافِرُونَ ﴿٨٥﴾**

تا دي په تعجب کي وانه چوي مالونه ددوی یعني المنافقین او اولادونه ددوی، په دې معنا چي دا منافقین خو د خدای ﷻ هغه اغلط دښمنان دي، نو خدای پاک د تعجب وړ مالونه او اولادونه ورکړي دي.

**پوه سه:** چي انما کلمه د حصر ده په معنا د لا او الا ده یعني د خدای اراده ده چي دوی ته یې مالونه او اولادونه ډېر ورکړي دي، حصر ده په دې کي چي خدای په عذاب کي دوی ددغو مالو او اولادو په ورکړه سره په دې دنیا او روحان به قبض سي او وی کافران وي.

**پوه سه:** چي په جمع کولو کي د مالو ډېر مشقت او کړاونه وي او سفر کول حتی و ملکو ته د کافرانو لکه په اوسنی زمانه کي بعض خلګ د جمع المال لپاره امریکا ته ځي بعض لندن ته بعض کوریا ته الی غیر ذالک او هورې ډېر د ذلت او خواری او سپیتاني ژوندي تېروي او د کافرانو په چوپړ شپه او ورځ اخته وي او په رشتیا او په درواغو او په سود وغیره مالونه جمع کوي چي جمع یې کړه بیا یې په ساتنه او حفاظت کي له هر چا څخه بېرېږي چي دا سړی ما یا عیال مي ونه تښتوي او بیا به ډېر مبلغ راځخه وغواړي کما هو الشائع في هذا الزمان في پاکستان او دي عمل ته (اغوا) وايي، او پر کور یې کلاشنکوف والا پهره

کوي، او د اولادو په حفاظت کي هم د ډېرو کړاوو سره مخامخ وي حتی چي اولادونه چي مدرسو يا ښوونځيو يا اسکولو وغيره ته استوي په محفوظ موټر کي يې استوي چي په هغه کي به کلاشنکوف والا هم ورسره وي او د مسلمانانو زامن پر خپلو پښو مدرسو يا اسکولو وغيره ته روان وي بېله خوفه او ډاره.

**درويش وايي:** چي دا خو د ننني زماني د حال بيان ؤ، د منافقانو حالات په جمع المال وحفظه وحفظ الاولاد به ورته کړاو ته مجبوره وه، او په اخير کي به روحان ددوی له جسدو څخه ووزي يعني مره به سي او حال دادی چي دوی به کافران وي، نو ددوی په شان کي بايد سړی ووايي چي دوی خسر الدنيا والآخرة دي، سعدي شيرازي قدس سره چه خوش گفته:

دراول چو خواهی کنی جمع مال..... بسی رنج برخويش بايد گماشت
پس از بهر آن تابماند بجای..... شب وروزی بايدت پاس داشت
وزين جمله آن حال مشکل تر است..... که آخير بحصرت ببايد گذشت

**وَإِذَآ أُنزِلَتْ سُورَةٌ أَنْ ءَامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَجَٰهِدُوا۟ مَعَ رَسُولِهِ ٱسْتَـْٔذَنَكَ أُو۟لُوا۟ ٱلطَّوْلِ مِنْهُمْ وَقَالُوا۟ ذَرْنَا نَكُن مَّعَ ٱلْقَٰعِدِينَ ﴿٨٦﴾**

او چي نازل سي يو سورت که پوره سورت وي او که بعض القرآن وي په دې سره چي ايمان راوړي پر خدای ﷻ.

**پوه سه:** چي مراد د ايمان بالله سره امتثال د امر د خدای ﷻ په جهاد کولو کي او په دې سره چي تاسي جهاد ته ځئ سره د رسول سره د خدای ﷻ ستا څخه اجازه غواړي په تخلف کي هغه کسان چي خاوندان د غنا او وسعة الرزق وي يعني عذر د فقر او مسکنت نه لري له دوی څخه يعني من المنافقين او دوی وايي چي موږ پرېږده چي موږ اوسو په خپلو کورونو کي د ناستو خلگو سره يعني په سبب د عذر پر کور ناست دي.

**رَضُوا۟ بِأَن يَكُونُوا۟ مَعَ ٱلْخَوَالِفِ وَطُبِعَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُونَ ﴿٨٧﴾**

دوی راضي وي په دې چي د پاته سونکو سره وه اوسېږي يعني النسا يخلفن في البيوت، خوالف جمع ده د خالفة لکه ضوارب جمع د ضاربة ده، او مهر وهل

کړه سوی دی پر زړو ددوی یعنې خدای پاک په سبب د فرط شقاوت او نفاق ددوی او معصیت الرسول ددوی پر زړو مهر وهلی دی، نو په سبب د هغه دوی د حسن د حسناتو او بد والی د سیئاتو ادراک نه سي کولای، وبما قلنا اندفع سوال الجبر.

**درویش وایي:** چي اوس خدای پاک د مؤمنانو حال بالقلب واللسان بیانوي.

لٰكِنِ الرَّسُوْلُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ جٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ ۭ وَاُولٰۗىِٕكَ لَهُمُ الْخَيْرٰتُ ۡ وَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۸۸﴾

لکن رسول یعنې محمد ﷺ او هغه کسان چي ایمان یې راوړی دده سره یعنې المخلصین في الایمان بالله ورسوله، دوی جهادونه کړي دي او کوي یې په خپلو مالو سره او په خپلو ځانو سره دوی لره خیرات یعنې ثوابونه سته او دوی دي مفلحون یعنې له عذاب څخه د رب ﷻ په دنیا او په اخیرت کي خلاصون مندونکي دي.

اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۸۹﴾

اراسته کړی دی خدای پاک ددوی لپاره یعنې په اخرت کي جنتونه او باغونه د قسم قسم میوو چي بهیږي به لاندي تر درختو د هغو جنتو ځلور ویالې او هم دغه دی لوی بری او کامیابي.

وَجَاۗءَ الْمُعَذِّرُوْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ لِيُؤْذَنَ لَهُمْ

راغله هغه کسان چي عذر یې وواید په مسکنت سره او په کثرة العیال سره له صحرا نشینانو څخه چي اجازه د قعود عن غزوة تبوک یې وغوښتل. محمد بن عمر وایي چي دا اعراب هم منافقین وه او د علیه الصلوة والسلام څخه یې اجازه د تخلف وغوښتی بیله عذر واقعي بالعذر المذکور، او علیه الصلوة والسلام هم اجازه ورکړه بناه علی ظاهر عذرهم، محمد بن عمر وایي چي دوی دواتیا (۸۲) کسه وه د بني غفار له قبیلې څخه. او ضحاک ؒ وایي چي دا معذورون د عامر بن طفیل له قبیلې څخه وه.



Scanned by CamScanner

**یوه سه:** چې اصل د معذورون معتذورون ؤ تا یې په ذال بدله کړه او په ذال کې یې مدغمه کړه او د تا حرکت یې و عین ته نقل کړی. نو معذورون شو.

وَقَعَدَ الَّذِينَ كَذَبُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ ۚ

او کښېنستل له جنګه هغه کسان چې دروغ یې ویله و خدای او رسول ته دده په دعوه کې د ایمان وهم المنافقون، والظاهر ان المراد بهؤلاء هم الاولون یعنی اعراب کما قال محمد بن عمر رحمه الله وقد سبق.

سَيُصِيبُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٩٠﴾

ژر دی چې وه به رسېږي و هغو خلګو ته ددوی یعنی الاعراب، ددې قید فائده داده چې بعض د اعرابو خو منافقان کافران وه او بعض د کسل د لارې اجازه غوښتنه کافران نه وه، او بعض یې بېله تکلفه د عذر پر خپل سر کښېنستلي وه جرئة علی الله وهم بعض المنافقین.

لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضَىٰ وَلَا عَلَى الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يُنفِقُونَ حَرَجٌ إِذَا نَصَحُوا لِلَّهِ وَرَسُولِهِ ۚ مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِن سَبِيلٍ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٩١﴾

نشته پر ضعیفه کسانو، ابن عباس رضی الله عنهما وایي چې مراد له ضعفا څخه ګوډیان او سپین ږیري یا عاجزه کسان دي لکه کوچنیان او یا ښځې. نه پر مریضانو خصوصاً العمیان، او نه پر هغو کسانو چې نه لري کوم شی چې په لار کې د غزا یې نفقه کړي لفقرهم "حرج" ای ضیق في القعود عن الغزو، چې دوی مخلصان او خیرخواه د خدای او د رسول دده وي یعنی بالایمان في السر والعلانیة، نشته پر محسنانو یعنی مخلصانو في الایمان لار د عتاب او سرزنش او خدای جل جلاله بخښونکی دی د ګناه کارانو فکیف لا یغفر المحسن المخلص، بغوي رحمه الله وایي چې دا آیت په عابد بن عمر واصحابه کې نازل شوی دی، او ضحاک رحمه الله وایي چې په عبدالله بن ام مکتوم کې نازل سوی دی چې په سترګو ړوند ؤ، بخاري او ابن سعد له جابر رضی الله عنه څخه روایت کړی دی چې علیه

الصلوة والسلام له تبوک څخه رجوع وکړه او مدینې ته رانژدې شو داسې یې وویل ان بالمدینة اقواماً ماسرتم سیراً ولا قطعتم واد الا کانوا معکم قالوا یا رسول الله وهم بالمدینة قال وهم بالمدینة حبسهم العذر.

**ژباړه**: په تحقیق په مدینه کې داسې قومونه سته چې تاسې هیڅ ځای تګ نه دی کړی او نه مو قطع کړې ده یوه شېله مګر نه دوی ستاسې ملګري دي یعني په ثواب کې، خلګو ورته وویل یا رسول الله ﷺ وهم بالمدینة دوی په مدینه کې دي. علیه الصلوة والسلام ورته وویل په مدینه کې دي عذر پاته کړي دي.

وَّلَا عَلَى الَّذِيْنَ اِذَا مَآ اَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَآ اَجِدُ مَآ اَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ

او نه پر هغو کسانو حرج سته چې دوی راسې تاته چې ته دوی ته د سفر دواب ورکړې تاچې دوی په غزا کې د تبوک شامل سي، ته ورته ووایه چې زما سره څو دومره دواب نسته چې تاسې پر سپاره کړم پر هغو باندې.

**یوه سه**: چې قلت په تقدیر د قد حال ده له کاف څخه د آتوک. موږ تقدیر د قد ووایه له دې سببه چې په نحو کې وایي چې په حالیت کې د ماضي قد شرط دی یا لفظاً یا تقدیراً.

تَوَلَّوْا وَّاَعْيُنُهُمْ تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا اَلَّا يَجِدُوْا مَا يُنْفِقُوْنَ ۝

دوی راهې سي په داسې حال کې چې سترګې ددوی بهېږي له اوښکو څخه یعني اوښکې یې بهېږي.

**یوه سه**: چې ظاهراً یې نسبت د بهېدو وسترګو ته وکړی او په حقیقت کې اوښکې تر سترګو بهېږي مبالغةً في سیلان الدمع، یعني ګویا له ډېرې ژړا څخه یې سترګې بهېږي. نو دا عبارت د قرآن معجز ابلغ دی تر داسې عبارت چې تسیل دمعها ګویا سترګې یې اوښکې سوې دي او بهېږي فافهم.

**یوه سه**: چې "حزنا" مفعول له دی د "تولوا آه" والمعنی دوی له دې سببه ژاړي چې غم کوي پر دې چې دوی نه لري هغه څه چې دوی یې نفقه کړي په غزا کې د تبوک.

**درویش وایي**: چې ما ینفقون عام دی تر سفر خرڅ او د دوابو د رانیولو څخه لفقرهم.

**فائده**: د دغو کسانو بعض په اتفاق د رواتو او بعض په اختلاف سره دادی (۱) سالم بن عمیر من بني عمر بن عوف (۲) وعلیة بن زید (۳) ابو لیلی بن عبدالرحمن (۴) وهرمی بن عبدالله (۵) عرباض بن ساریة (۶) عمرو بن حمام بن جموع (۷) عبدالله بن مغفل (۸) سلمة بن صخر (۹) عمرو بن عتبة بن عدي (۱۰) عبدالله بن عمرو المزني (۱۱) عبدالرحمن بن زید من بني حارثه (۱۲) حرمی بن عمر من بني ماذن (۱۳) عمرو بن عوف (۱۴) معقل بن یسار (۱۵) حرمی بن مبارک بن البخار (۱۶) عبدي بن عبدالرحمن (۱۷) سالم بن عمرو الواقفي وغیرهم رضوان الله تعالی علیهم اجمعین، ابن اسحاق رحمه الله روایت کړی دی چي علیه بن زید رضي الله عنه چي نه یې په خپله راحله درلوده او نه د علیه الصلوة والسلام راحله پیدا کړه، نو د شپې یې نفل وکړه الی ماشا الله وروسته یې وژړل او داسي یې وویل چي خدایه تا امر بالجهاد کړی دی او زما هم جهاد ته رغبت سته لکن خو کار نه سو جوړ، نو زه خیرات کوم پر هر مسلمان د هر ظلم چي دده له خوا شخه پر ماسوی وي من مال او جسد او عرض، چي سهار سو علیه الصلوة والسلام تر لمانځه وروسته وویل این المتصدق هذه اللیلة فلم یقم الیه احد، نو علیه بن زید ور ولاړ سو او د شپې قصه یې ورته وکړه، نو رسول الله ﷺ ورته وویل چي زیری مي دربانديفوالذي نفسي بیده لقد کتبت في الزکوة المتقبلة.

**پوه سه**: چي بخاري او مسلم له ابو موسی اشعري رضي الله عنه شخه روایت کړی دی چي زه خپلو ملګرو و علیه الصلوة والسلام ته ورواستولم چي موږ ته د سپرتیا اوښان راکړه، نو علیه الصلوة والسلام ته چي ما دا خبره وکړه ده مبارک راته وویل والله لا احملکم علی شئ وما عندي ما احملکم علیه په داسي حال کي ما دا خبره ده ته وکړه چي دی ډېر غضبان ؤ او زه په غضب نه وم خبر، ابو موسی رضي الله عنه وایي چي زه ډېر غمجن سوم من منع رسول الله ﷺ او له دې شخه وېرېدم چي دی مبارک په غصه سوی دی ماته په زړه کي، نو ملګرو ته راغلم دوی ته مي خبر ورکړی بالذي قال رسول الله ﷺ ثم جيئ رسول الله ﷺ بنهب ابل فلم البث الاسویعة اذ سمعت بلالا رضي الله عنه ینادی این عبدالله بن قیس چي د ابو موسی

اشعري ﷺ نوم ؤ فاجبته ای بلالا نو بلال ﷺ راته وویل احب رسول الله ﷺ یعني تا بولي، زه چي ورغلم ده مبارک راته وویل خذ هذين القرنين هذين القرنين وشپږو اوښانو ته يې اشاره وکړه. او دا اوښان ورو له خپلو اصحابو ته او دوی ته ووایه ان الله يحملكم او ان رسول الله ﷺ يحملكم على هؤلاً فاركبوهن. ابو موسی ﷺ وايي چي اوښان راهي کړه وملګرو ته وقلت لهم ان رسول الله ﷺ يحملكم على هؤلاً ولكن والله لا اودعكم حتى ينطلق معي بعضكم الى من سمع مقالة رسول الله ﷺ حين سئالته لكم ومنعه في اول مرة ثم اعطائه اياي بعد ذالک لئلا تظنون اني حدثتكم شيئاً لم يقله فقالوا الي والله انک عندنا لمصدق ولنفعلن ما احببت فانطلق ابو موسى ﷺ بنفر منهم حتى آتو الذين سمعوا مقالة رسول الله ﷺ منعه اياهم ثم اعطائه اياهم بعد ذالک فحدثوا بمثل ماحدثهم ابو موسى ثم قلنا والله لا يبارک لنا (يعني چي عليه الصلوة والسلام خو قسم واخستی اوس يې لکه چي قسم هېر ؤ) فرجعنا فقلنا لرسول الله ﷺ (يعني دده قسم مو ورپیاد کړی) فقال انا ماحملتكم ولكن الله حملكم ثم قال والله ان شآ الله لا احلف على يمين فاری غيرها خيراً منها الا اتيت الذي هو خير وكفرت عن يميني؛ عليه الصلوة والسلام ورته وویل چي زه پر یو شي قسم واخلم او خلاف د هغه کار خیر وي زه قسم پر ځان ماتوم او هغه د خیر کار کوم او د قسم کفاره ورکوم.

**ترجمه**: قوله لا احملكم آه:- قسم په خدای ﷻ چي نه تاسي ته حموله درکوم نه زما سره ستاسي د حموله سته قوله ثم جیئ آه بیا راتګ سوی ؤ علیه الصلوة والسلام ته بنهب يعني په غنيمت سره د اوښانو، ابو موسی ﷺ وايي ما درنګ نه وو کړی مګر نه داسي لږ ساعت چي د بلال ﷺ څخه مي واورېده تاري يې وهلې چېري دی عبد الله بن قبس ما د بلال اجابت وکړی يعني چي زه حاضر يم ده وویل اجب رسول الله ﷺ يعني قبلونه وکړه د بلني د عليه الصلوة والسلام يعني هغه دي غواړي، زه چي ورغلم عليه الصلوة والسلام راته وویل چي بوزه دغه دوه اوښان چي یو ځای سره ولاړ دي، بوزه دوه نور اوښان چي یو ځای سره ولاړ دي مطلب دا چي شپږ اوښانو ته يې اجاره وکړه او ملګرو ته دي ووايه چي خدای

تاسي سپروي يعني په سفر كي پر دغو اوښانو، په بل روايت كي راغلي دي چي رسول الله ﷺ تاسي ته حموله دركوي شپږ اوښان، نو پر دغو اوښانو سپاره سئ ابو موسى ﷺ وايي ما ملگرو ته وويل چي تاسي نه پريږدم چي زما سره بع بعض ستاسي چي وهغو كسانو ته چي منع د رسول الله ﷺ يې اورېدلي وي چي ما سوال د حمولې ځني اول وار دده غرض داو چي دفع د توهم د درواغو له ځانه څخه وكړي، هغو ورته وويل چي ته زمونږ په نېز تصديق شده يې خو بيا هم درسره ولاړ سو الى اخير الحديث.

إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ وَهُمْ أَغْنِيَاءُ ۚ رَضُوا بِأَن يَكُونُوا مَعَ الْخَوَالِفِ

لار د ملامتيا او عذاب الهي پر هغو كسانو ده چي دوى ستا څخه اجازه د تخلف غواړي، او حال دا وي چي دوى اغنيا وي چي طاقت او توان د سفر خرڅ او د حموله هم لري. دوى په دې راضي وي چي سره د خوالفو كښيني له غزا څخه.

**پوهه**: چي جمله د "رضوا آه" مستانفه ده بيان د سبب د استيذان بېله عذره حاصل يې دادى چي دوى طبع د نې لري، نو ځكه ځانونه په ښځو او كوچنيانو كي حسابوي.

وَطَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ

خداى ﷻ يې په سبب د عصيان د امر الهي او د امر نبوي ﷺ يې پر زړو مهر لګولى دى چي دوى يې غافله ګرځولي دي له درانه بار او عاقبت څخه د خپلو عملو. چي دوى نه پوهېږي چي د قعود عن الجهاد وموافقة الرسول عاقبت په دنيا او اخرت كي څه وي.

**درويش وايي**: چي تولي ښېګڼې په اطاعت كي د مولى سبحانه او په اطاعت د رسول اكرم ﷺ كه د دنيا وي او كه د اخيرت پيدا كېږي او په طاعاتو د اخلاص چي احسان يې هم بولي عمده شرط دى په دې سورت كي احوال د منافقانو واورېدل سوه مسلمانانو ته لوى موعظت دى چي نفاق قلبي يا عملي هيڅ په ښه نه دى. خواجه عبدالله انصاري هروي قدس سره وايي:

ای طالب که دعوی عشق خدا کنی ..... بر غیر او نظر بمحبت چرا کنی
از جستجوی خلق تو بیگانه شو اگر ..... خواهی که دل بحضرت او اشنا کنی
حقا که شور و ولوله دراسمان فتد ..... آندم که توزبیم خدا پاک ندا کنی
ملک دوعالم ازتوشود گرزروی عجز ..... خودرا فدای خاطر یک بینوا کنی
انصاریا چوروزشوی روشن از شبی ..... خودرا بعجز بردرسبحان گدا کنی

**درویش وایي:** چي په لوی توفیق د رب العزت تفسیر د لسم جزء د قرآن عزیز په شپه د جمعې اول د میاشتي د ذو القعدة الحرام قریب و وخت د صبح وپای ته ورسېدی، و لله الحمد والمنة والصلوة والسلام علی خیر البریة وعلی آله وصحبه الکملة.

درویش وایي:

غرض نقشیست کزما یادماند ......... که هستی رانمی بینم بقایی
مگر صاحبدلی روزی زرحمت ......... کند درحق این مسکین دعایی

اللهم اختم لي بالخیر والسعادة والایمان ومحبت المولی سبحانه ومحبت رسوله ﷺ بیت

چاز چیز آورده ام شاها که درگنج تو نیست
عاجزی و مسکینی فقر گناه آورده ام

اللهم اغفرلي ولوالدي وارحمهما کما ربیاني صغیراً. السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته ایها الناظرین في التفسیر.



## د تفسير ايوبي حنفي د مضامينو فهرست


| شمېر | مضمون | مخ | شمېر | مضمون | مخ |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | سريزه | ۳ | ۳۰ | "واعدوا لهم ما استطعتم آه" | ۲۷۰ |
| ۲ | د قال الملأ، تفسير | ۷ | ۳۱ | سوال او ځواب | ۲۸۰ |
| ۳ | درويش وايي | ۲۱ | ۳۲ | "الئن خفف الله عنكم" | ۲۸۴ |
| ۴ | تاريخي واقعه | ۴۱ | ۳۳ | د سورة التوبة پيل | ۳۰۱ |
| ۵ | تجربه غريبه | ۴۳ | ۳۴ | درويش وايي | ۳۰۹ |
| ۶ | تبصره | ۴۶ | ۳۵ | مسائل | ۳۱۸ |
| ۷ | درويش وايي | ۶۳ | ۳۶ | حكايت | ۳۲۳ |
| ۸ | "والذين عملوا السيئات" | ۸۹ | ۳۷ | درويش وايي | ۳۳۰ |
| ۹ | ښهانه فائده | ۱۰۰ | ۳۸ | تنبيه | ۳۳۸ |
| ۱۰ | "ومن قوم موسى" | ۱۰۴ | ۳۹ | د حنين د غزا، قصه | ۳۵۰ |
| ۱۱ | درويش وايي | ۱۲۱ | ۴۰ | فوائد ښتنى | ۳۵۱ |
| ۱۲ | "وتل عليهم نبا، الذين" | ۱۲۸ | ۴۱ | درويش وايي | ۳۵۹ |
| ۱۳ | قصه | ۱۲۹ | ۴۲ | اختلاف او جمع | ۳۶۰ |
| ۱۴ | "ولله الاسماء الحسنى" | ۱۳۹ | ۴۳ | "وعذب الذين كفروا" | ۳۶۳ |
| ۱۵ | مسله | ۱۴۰ | ۴۴ | حكايت | ۳۶۶ |
| ۱۶ | "وممن خلقنا امة" | ۱۴۲ | ۴۵ | درويش وايي | ۳۶۹ |
| ۱۷ | "فلما آتهما صالحا" | ۱۵۲ | ۴۶ | ښهانه فائده | ۳۷۷ |
| ۱۸ | درويش وايي | ۱۵۳ | ۴۷ | د هجرت نبوي ﷺ قصه | ۴۲۰ |
| ۱۹ | د سورة الانفال پيل | ۱۷۱ | ۴۸ | "وجاهدوا باموالكم وانفسكم آه" | ۴۳۶ |
| ۲۰ | تفريع | ۱۷۵ | ۴۹ | فائده مهمه | ۴۳۹ |
| ۲۱ | سوال او ځواب | ۱۷۹ | ۵۰ | پوښتنه او ځواب | ۴۴۶ |
| ۲۲ | "وما جعله الله الا بشرى" | ۱۸۹ | ۵۱ | "ولاتعجبك اموالهم و اولادهم" | ۴۹۵ |
| ۲۳ | ښهانه فائده | ۱۹۹ | ۵۲ | فائده | ۵۰۰ |
| ۲۴ | تتمة قتل ابوجهل | ۲۰۰ | | | |
| ۲۵ | "ياايها الذين آمنوا لاتخونوا" | ۲۰۹ | | | |
| ۲۶ | پوه سه | ۲۱۷ | | | |
| ۲۷ | د لسمي سپارې پيل | ۲۳۴ | | | |
| ۲۸ | مسئله مهمه | ۲۳۹ | | | |
| ۲۹ | درويش وايي | ۲۴۱ | | | |

تفسیر ایوبي حنفي۸ ټوک

د نصیراحمد احمدي لخوا

سکین او pdf سـو.

تاریخ. ۲۰-۱۱-۱۳۹۸

واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعـا محـتـاج احـمـدي!